# د تحریك یادښت

د افغانستان ملي تحریك د (۱۳۹۳ ل) کال په پیل کې له خپلو ګرانو هېوادوالو سره ژمنه کړې وه، چې د دې کال په بهیر کې به (شل عنوانه) بېلا بېل دیني، علمي، ادبي او ټولنیز اثار خپلې ټولنې ته وړاندې کوي. ملي تحریك دا ژمنه د یاد کال د کب پر (۲۸)مه نېټه پوره او د یوې پرتمینې غونډې په ترڅ کې یې شل عنوانه علمي اثار هېوادوالو ته وړاندې کړل. ملي تحریك په یاده غونډه کې ژمنه وکړه، چې د (۱۳۹۴ ل) کال په بهیر کې به انشاء الله د خدای (ج) په نصرت ټول ټال سل (۱۰۰) عنوانه بېلابېل علمي اثار ټولنې ته وړاندې کوي. طبیعي خبره ده چې دا اسانه کار نه دی، ډېر زیات زیار او زحمت ته اړتیا لري، خو ملي تحریك ټینګ هوډ کړی چې خپله دا ژمنه به هم د تېرې ژمنې په څېر عملی کوي. دا اثر چې ستاسو په لاس کې دی د همدې (سل عنوانه) ژمنه کړو اثارو له جملې څخه دی، چې د چاپ جامه اغوندي. ملي تحریك هیله لري چې له دې اثر څخه به زموږ هېوادوال په زړه پورې ګټه پورته کړي. ملي تحریك له ټولو هغو لیکوالو، ژباړونکو، سمونچارو، مالي او معنوي مرستندویانو او چاپ چارو څخه چې ددې اثارو د چاپ په دې ټول بهیر کې یې یو بل سره مرسته او ملګرتیا کړې او دا فرهنګي بهیر یې بریالی کړی، د زړه له کومې مننه کوي او کور ودانی ورته وایي.

د هېواد د فرهنګ د ښېرازۍ په هیله
د افغانستان ملي تحریك فرهنګي څانګه

# د لومړي چاپ یادښت

دا کتاب ما (یون) پـر (۱۳۹۱ل) کـال د (پوهنـوالۍ) علمـي رتبې لپـاره لیکلی و او پر همغه مهال د یادې رتبې لپاره ومنل شو. تاکل شوې وه پر همغه کال چاپ شي، خو ما غوښتل له خپلو نورو اثارو سره یې په یو ځایي ډول چاپ کړم، نو ځکه خو درې کالـه راسره پـاتې شو. اوس چې زه خپل څو عنوانه نور اثار چاپوم او هم ملي تحریـک غـواړي سل عنوانه علمي، ادبي، دیني او تـاریخي اثـار چـاپ کـړي، نو غـواړم دا اثر هم په دې لړ کې چاپ شي او د لوستونکو د ګټې وړ وګرځي. طبعي خبره ده چې دا اثـر بـه خپلې خپلې نیمګړتیـاوې هـم ولـري، خـو ډېرې تېروتنې تر چاپ وروسته په عملي ډګر کې څرګند ېږي. هیلـه ده درانـه لوستونکي او محصلین یې د لوستلو او کتلو پـر مهال هغـه څرګنـدې او راپـه ګوتـه کـړي، چـې پـه بـل چـاپ کـې هغـه نیمګړتیـاوې سـمې او نورې زیاتونې هم ورسره مل شي.

په درناوي

محمد اسمعیل یون

# د سر خبرې

څو لسيزې کېږي چې د کابل پوهنتون په ګډون د هېواد د لوړو زده کړو موسسې د منظمو درسي مفرداتو او همدارنګه چاپي اثارو له نشتوالي څخه کړېږي. په ځينو برخو کې که مفردات شته هم، ډېر زاړه دي او وخت پر وخت نوي شوي نه دي. د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي پښتو څانګه هم دا مشکلات لري. خو په دې وروستيو کلونو کې پښتو څانګې وټاکله چې پر خپلو ټولو درسي مفرداتو بيا کتنه وکړي. (د کره کتنې) مضمون هم په دې بيا کتنه کې شامل و. ما له نورو استادانو سره په مشوره د کره کتنې مضمون تېر مفردات وکتل، همغه مو سره کره کړل. د همدې مفرداتو پر بنسټ مې د (پوهنوالۍ) علمي رتبې لپاره د اثر ليکلو کار پيل کړ. اکثره ضروري اثار مې ورپسې وپلټل او په نتيجه کې دغه اثر رامنځته شو. زه خوشاله يم، هغه مفردات چې پښتو څانګې د دې مضمون لپاره غوره کړي هغه تر ډېره حده په دې اثر کې تشريح شول. ګران استاد پوهاند محمد صابر خويشکی، پوهاند ډاکتر عبدالقيوم قويم، پوهنوال احمد شاه زغم، استاد بخت مير وزيري، د پښتو څانګې له نورو استادانو او ګران ورور عطاالله حيران څخه مننه کوم، چې ما سره يې د دې اثر په بشپړاوي کې مرسته وکړه. ګران ورور ضياءالرحمن ضياء څخه هم ډېره مننه کوم، چې په ډېرې اوسپلې يې د دې اثر د کمپوز چارې سمبال کړې. څرنګه چې ما د دې کتاب په سريزه کې هم يادونه کړې چې دا اثر د درسي مفرداتو په رڼا کې ليکل

شوی او له لوستونکو مې هیله څرګنده کړې چې تر چاپ وروسته د اثر په باب خپل نظریات راته راولېږي. دلته یو ځل بیا یادونه کوم، چې زه به خپله هڅه او هاند کوم چې دا اثر د تدریس پر مهال نور هم پوره او بشپړ کړم او ټول هغه مسایل چې د کره کتنې په برخه کې نوي راپیدا کېږي، هغه ورسره یوځای کړم او په دې ډول د محصلینو او درنو لوستونکو اړتیاوې تر یوه بریده پوره کړم.

په درناوي

پوهندوی محمد اسمعیل یون

تـقریـظ

# ((کره کتنه)) زموږ د ادبیاتو یوه مهمه اړتیا

استاد پوهندوی محمد اسمعیل یون د پښتو څانګې د ډېرو تکړه استادانو له جملې څخه دی، چې د لیکوالۍ په برخه کې نږدې (۲۵) کلنه کاري تجربه لري. (کره کتنه) د استاد یون لومړنی اثر نه دی، ده تر دې د مخه هم په لسګونو عنوانه اثار لیکلي او چاپ کړي دي. په لیکوالۍ کې دی د افغانستان په کچه یو مطرح لیکوال دی. (کره کتنه) اثر هم د استاد یون یوه پخه تجربه ده. پوهندوی یون په ژبو او ادبیاتو پوهنځي کې ډېره موده د (ادب تاریخ) او (خوشال پېژندنه) مضمونونه تدریس کړي، په دې برخه کې هم د کافي تجربې خاوند دی. (ادبپوهنه) چې د ژبو او ادبیاتو پوهنځي یو بل مهم مضمون دی، دا ډېر کلونه کېږي چې په لومړیو ټولګیو کې د استاد یون له خوا

تدريسېږي. (کره کتنه) او (ادب تاريخ) او همدارنګه (ادب تيوري) درې واړه د ادبپوهنې اساسي څانګې دي. څوک چې د ادبپوهنې مضمون تدريسوي، د هغې پر درېواړو څانګو احاطه لري. (کره کتنه) او (ادب تيوري) ددې ترڅنګ چې په (ادبپوهنه) کې د هغې د څانګو په توګه تدريسېږي، د (ادب تاريخ) په څېر د جلا جلا مضامينو په توګه هم تدريسېږي.

استاد يون ددې دواړو په باب هم ځانګړې تدريسي تجربه لري. هغه وخت چې استاد يون په پښتو څانګه کې د (پوهنوالۍ) علمي رتبې لپاره دا موضوع (کره کتنه) غوره کړه. نو د څانګې استادانو يې تود هر کلی وکړ. علت دا و چې له ډېرو کلونو راهيسې (کره کتنه) د يوه مضمون په توګه تدريسېدله، خو دا تدريس لا تر دې دمه پورې اکثره د نوټونو، لکچرنوټونو په بنه و، داسې يو منظم سيستماتيک اثر چې د څانګې تدريسي مفردات دې هم په پام کې ونيسي او د يوه منظم تدريسي کتاب بڼه دې ولري، لا تر دې دمه يې په پښتو څانګه کې کمی احساسېده. څرنګه چې د (پوهنوالۍ) علمي رتبې اثر بايد تدريسي بڼه ولري، نو موږ هيله لرله چې استاد يون به په بشپړه توګه دا اړتيا پوره کړي.

لکه څنګه چې زموږ هیله وه، استاد یون تر یوه اوږده کار او زیار وروسته د کره کتنې په برخه کې داسې یو اثر ولیکه چې زموږ له هیلو سره سمون خوري. په (یوولسو څپرکو) کې یې اکثره هغه څه وڅېړل او راونغاړل چې په (کره کتنه) کې ورته اړتیا وه. دا اثر په خپل ډول کې په پښتو کې تقریباً لومړنی اثر ګڼل کېږي، چې تدریسي بڼه لري او د محصلینو اړتیاوې تر ډېره حده پوره کولای شي. زه استاد یون ته د دغه ګټور اثر د لیکلو له امله مبارکي وایم، د پوهنوالۍ علمي رتبې لپاره یې دا اثر پوره او کره ګڼم او له ټولو اړوند مقاماتو څخه هیله کوم، چې ده ته ددې اثر له امله د (پوهنوالۍ) علمي رتبه منظور کړي. څرنګه چې دا یو ډېر ګټور اثر دی، زه له مربوطه ارګانونو څخه هیله من یم، چې ددې اثر د چاپ په برخه کې ژر اقدام وکړي.

په درناوي

پوهاند محمد صابر خویشکی

د پښتو څانګې استاد

تقریظ:

# یک اثر مهم تدریسی

حدود بیست سال میشود که محمد اسمعیل یون به حیث استاد، دیپارتمنت پشتو پوهنځی زبان و ادبیات پوهنتون کابل ایفای وظیفه مینماید. استاد یون در این معیاد مضامین، (خوشالشناسی)، (ادبشناسی) و (تاریخ ادبیات) را در دیپارتمنت پشتو وهمچنان مضمون تدریس زبان پشتو را در دیپارتمنت مختلف فاکولته ادبیات و پوهنځی های دیگر تدریس نموده، تجربه کافی را در زمینه تدریس بدست اورده است. استاد یون چندین عنوان اثار را نیز تالیف نموده، که یک تعداد آن به حیث اثار تدریسی و ممد درسی در رشته مربوط قابل استفاده است.

مضمون (نقد ادبی) یکی از مهم ترین مضامین است که در دیپارتمنت دری و پشتو تدریس میگردد. استاد پوهندوی محمد اسمعیل یون ضروریات و متقضیات دیپارتمنت خویش را در نظر گرفته، مطابق مفردات تدریسی این مضمون، موضوع (نقد) را غرض ترفیع علمی رتبه (پوهنوالی) خویش انتخاب نموده. استاد

یون مدت زیادی بالای این موضوع کار کرد و در نتیجه این اثر قابل ستایش را به رشته تحریر در اورد.

این کتاب در یازده فصل تنظیم شده، بر علاوه یک مقدمه و یک نتیجه یا ارزیابی اخری دارد. در این اثر معنی لغوی و اصطلاحی نقد، اهمیت، ضرورت، حدود و اداب نقد ادبی تشریح شده، تاریخچه نقد از یونان باستان شروع تا اواخر قرن بیستم بیان گردیده، انواع و مکاتب نقد تشریح شده و جریان نقد ادبی را در زبان و ادبیات پشتو نیز تشریح و توضیح گردیده. علاوه بر این، اصول و معیارهای نقد ادبی تشریح شده، فواید نقد و اوصاف نقاد نیز مشخص گردیده.

در این اثر این موضوع که: (چرا ما از نقد میترسیم؟) هم توضیح گردیده و در اخر، اثار مستقل نقد که به زبان پشتو چاپ گردیده به طور منظم و مسلسل معرفی شده اند. استاد یون در تحریر این اثر از منابع موثر داخلی و خارجی استفاده نموده، تحلیل و نظریات خود را نیز بالای آن علاوه نموده، در نتیجه یک اثر را به وجود اورده که جنبه تدریسی و اموزشی دارد. ما به نوبه خود این اثر مفید را به ترفیع علمی (پوهنوالی) مثبت ارزیابی مینمایم، از بارگاه خداوند(ج) برای استاد پوهندوی محمد اسمعیل یون ارزوی موفقیت مزید

مینمایم و از همه مقامهای مربوط و زیربط خواهش مینمایم که ترفیع علمي رتبه (پوهنوالی ) را به استاد یون منظور نماید. چون این یک اثر علمی میباشد ، چاپ ان نیز بسیار ضروری میباشد ، از مسولین محترم نشراتی تقاضا مینمایم، در زمینه چاپ این اثر اقدام نماید !

با احترام

پوهاند دوکتور عبدالقیوم قویم

استاد دیپارتمنت دری

پوهنځی زبان و ادبیات

تقریظ:

# دا اثر یوه ګټوره هڅه

(کره کتنه) د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په پښتو څانګه کې د یوه مهم مضمون په توګه تدریسېږي. څو لسیزې کېږي چې پښتو څانګه له نوټونو او لکچر نوټونو کارېږي. که څه هم په تېرو څو کلونو کې د پښتو څانګې استادانو زیار وویست چې په هره برخه کې دا سې ځانګړي اثار ولیکي، چې تدریسي بڼه ولري او په دې برخه کې پخوانۍ پرتې ستونزې تر یوه حده حل کړي، خو بیا هم نور کار او زیار ته اړتیا ده. په دې وختونو کې پښتو څانګې وپتېیله، چې خپلې ټولې اړتیاوې په خپله د څانګې د استادانو له خوا پوره کړي. یوه اړتیا هم له درسي مفرداتو سره سم د (کره کتنې) په برخه کې د یوه منظم تدریسي اثر لیکل و. استاد یون چې په پښتو څانګه کې (ادبپوهنه) او (ادب تاریخ) مضمون تدریسوي، ددې اړتیا د پوره کولو لپاره راودانګل، ده د (پوهنوالۍ) علمي رتبې لپاره همدا

موضوع (کره کتنه) وټاکله، موږ ټولو ځکه تائید کړه، چې له ډېرو کلونو راهیسې دا مضمون د نوټ او متفرقه لکچرنوټونو په بڼه تدریسېده او د محصلینو په لاس کې یو منظم تدریسي کتاب نه و.

استاد یون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې د دې مضمون له درسي مفرداتو سره سم، ډېره موده پر دې اثر کار وکړ. له ګڼو اخځونو، تحلیلونو او څېړنو څخه یې ګټه پورته کړه، ځان یې خورا ستړی کړ. په دې اثر کې کره کتنه له لغوي او اصطلاحي پلوه څېړل شوې، د کره کتنې تاریخ بیان شوی، اړتیا یې په ګوته شوې، ګټې یې بیان شوي دي. د دې ترڅنګ په پښتو ژبه کې د کره کتنې مسیر تشریح شوی دی.

دا اثر د یوه تدریسي اثر په بڼه لیکل شوی دی. زه هیله لرم هغه خلا چې په پښتو څانګه کې له کلونو راهیسې د (کره کتنې) په برخه کې د یوه منظم تدریسي اثر د نشتوالي له امله موجوده وه، ددې اثر په رامنځته کېدو سره اواره شي. دا اثر به نه یوازې په پښتو څانګه کې د یوه تدریسي اثر په توګه تدریس شي، بلکې د هېواد نورو پوهنتونو اړوندې څانګې هم ترې ګټه پورته کولای شي.

زه ددې اثر لیکنه نه یوازې د استاد یون یوه ګټوره هڅه او بری ګڼم، بلکې د ټولې پښتو څانګې یو بری یې ګڼم. استاد پوهندوی محمد

اسمعیل یون ته ددې اثر له امله مبارکي وایم، هیله لرم چې قلم یې نور هم همداسې تاند او هڅاند وي او د پښتو څانګې د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په ګډون، له ټولو اړوند مقامونو څخه هیله کوم چې استاد یون ته ددې علمي اثر له امله د (پوهنوالۍ) علمي رتبه منظور کړي همدارنګه زه د نشراتي چارو له مسولینو څخه هیله من یم چې ددې اثر د ګټورتیا له امله ددې اثر د چاپ لپاره هڅه وکړي.

په ډېر درنښت

پوهنوال احمدشاه زغم

د پښتو څانګې استاد

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

کره کتنه د ادبپوهنې یوه خورا مهمه څانګه ده. دنده یې دا ده چې ادبيات، د ادبیاتو له اساسي مسیره بلې خواته لاړ نه شي. (ادبيات) د (ادبیاتو) په توګه مطالعه شي، لوستونکي، لیدونکي، کتونکي، اوریدونکي او په خپله د ادبي پدیدې پنځونکي ته روښانه لاره وښيي، له تېروتنې یې بچ او د پرمختګ څراغ ورته بل کړي. د لیکوال وړه تېروتنه د هغه لویه خواري په سیند لاهو کولای شي. همدا کره کتونکی دی چې د لیکوال د فکر ثمر له خطره ژغوري. کره کتنه د (اوزون) د طبقې په شان هغه فلتر دی، چې د لمر وړانګې تصفیه کوي، د لمر خطرناکې وړانګې په همدې طبقه کې فلتر یږي. یوازې هغه وړانګې یې ځمکې ته راځي، چې ټول بشري ژوند ته

ثمر لري، خو خطر نه لري، که د اوزون دا طبقه نه وای، نو د لمر وړانګو به ځمکه ان د ژوند له نعمته هم ایستلې وای. کره کتنه هم داسې یو فلتر دی، چې د یو ادبي اثر نیمګړې او کمزورې برخې فلتر کوي او لوستونکو یا کتونکو ته یو روڼ او مثمر اثر وړاندې کوي. هر هغه لیکوال چې نه غواړي اثر یې له دې فلتره تېر شي، طبعاً چې له تېروتنې سره مخامخ دی. کره کتنه نه یوازې په ادبي برخه کې د ادبپوهنې د یوه مهم عنصر په توګه د کارونې وړ ده، بلکې په ټولنیز ډګر کې هم د اساسي توکي په توګه کارول کېږي. انتقاد، نیوکه او په ټوله مانا کره کتنه د ولسواکۍ د یوه اساسي او رغنده توکي په توګه د بشري ټولنې د پرمختګ یو لوی لامل دی. زموږ ټولنه لکه څنګه چې په نورو برخو کې له پرمختللو ټولنو څخه شاته پاتې ده، په دې ډګر کې هم لا مطلوبې پایلې ته نه ده رسېدلې.

په نړۍ کې د ادبي کره کتنې په باب تر شمېره وتي اثار لیکل شوي، چې د هرې ټولنې کره کتونکو پرې د خپلو ټولنو ادبیات د لا پرمختګ لوري ته برابر کړي، خو زموږ په ټولنه کې زموږ د ادبیاتو د ټولیز حجم په انډول د کره کتنې برخه کمه ده، په بله وینا د ادبي اثارو په انډول د ادبپوهنې د اثارو شمېر کم دی. دا طبیعي خبره هم ده، ځکه په ټولنه کې لیکوال او ادیبان زیات، خو د ادبپوهانو شمېر کم دی. ادبپوهنه یوه کسبي او مسلکي پوهه ده او د ادبیاتو پنځونه بیا د ځینو کسبي زده کړو ترڅنګ خدایي، طبیعي او فطري پوهې، استعداد او ذوق ته هم اړتیا لري.

داسې هم نه ده، چې زموږ په ټولنه کې د کره کتنې په برخه کې هېڅ اثار نه دي ليکل شوي؛ د هېواد د بېلابېلو ليکوالو له خوا په پښتو او دري ژبه يو شمېر داسې کره کتنيز اثار ليکل شوي، چې د نظري او عملي کره کتنې دواړه برخې رانغاړي، وروسته به يې موږ په ترتيب سره معرفي کړو. په کوزه پښتونخوا کې هم د کره کتنې يو شمېر ځانګړي اثار ليکل شوي، دې اثارو زموږ د ادبياتو په رڼاوي کې خپله خپله ونډه لرلې ده، خو لا هم ددې اړتيا شته چې په دې ډګر کې لازيات کار وشي او نور سيستماتيک اثار رامنځته شي. له هغې ورځې چې په هېواد کې د ژبو او ادبياتو پوهنځی او بيا وروسته پوهنځي رامنځته شوي، نو ادبپوهنه د يوه ځانګړي مضمون په توګه په دې پوهنځيو کې تدريسېږي. دا پوهه نه يوازې د يو ځانګړي مضمون په توګه لوستل کېږي، بلکې د هغې درې واړه اساسي څانګې (ادب تاريخ، ادبي کره کتنه او ادب تيوري) هم د جلا جلا مضامينو په توګه تدريسېږي. د ادب تاريخ څو بېلابېل اثار، چې د پښتو ادب بېلابېلې دورې تشريح کوي، ليکل شوي دي. دا اثار تر يوه حده د محصلينو اړتياوې پوره کولای شي او په دې برخه کې نورو اثارو ته هم اړتيا شته، خو د ادبي کره کتنې او ادب تيورۍ په باب لا هم د نورو داسې اثارو کمی احساسېږي، چې له نويو علمي ميتودونو سره سم ليکل شوي وي؛ تدريسي بڼه ولري، د تحصيلي نصاب له مخې جوړ شوي وي او د ادبياتو پوهنځيو د ادبپوهنې د يوې برخې په توګه دې تدريس شي. دا اثر چې اوس ستاسو په لاس کې دی، تر ډېره حده په کې کوښښ شوی

چې په دې ډګر کې زموږ د علمي او فرهنګي ټولنې اړتیاوې تر یوه حده پوره کړي. ما په دې اثر کې هڅه کړې چې محصلین خپله هم په کار ولوېږي او د کره کتنې په برخه کې عملي او نظري کار وکړي. دې کې هم شک نه شته چې د کره کتنې په برخه کې یو ځانګړی اثر ټولو اړتیاوو ته ځواب نه شي ویلای، خو په تحصیلي ډګر کې به دا اثر د محصلینو یو څه غوښتنې او اړتیاوې ځواب کړي. لازمه به وي چې د تدریس پرمهال ددې اثر نیمګړتیاوې څرګندې او هغه اړتیاوې هم په ګوته شي، چې په دې برخه کې احساسېږي. ددې اثر د بیا بیا چاپ په صورت کې به هغه نیمګړتیاوې پوره کېږي او همدارنګه د کره کتنې د مضمون په برخه کې به ددې اثر ترڅنګ، د نورو نویو اثارو لیکلو هدف ته زموږ د رسېدو لاره لنډه کړي. تر چاپ وروسته د هېواد له ټولو لیکوالو، قلموالو، کره کتونکو، د ادب پوهنځیو استادانو او ګرانو محصلینو څخه هیله کوم، چې ددې اثر د بشپړتیا او غځونې لپاره ماته خپل ګټور او کره کتنیز نظریات راولېږي.

په همدې هیله

پوهندوی محمد اسمعیل یون

# لومړی څپرکی

## کره کتنه

د ادب، ادبپوهنې، ټولنپوهنې، بشرپوهنې او نورو ټولنيزو علومو تعريفونه د ساينسي علومو په شان کانکريټي نه دي، چې سل په سلو کې پرې توافق راځي. د ټولنيزو علومو او هنري پديدو تعريفونه نسبي توافق ته نږدې وي؛ د منطق، حقيقت او واقعيت يو لړ څرګند معيارونه په پام کې نيول کېږي او د همدغو معيارونو په رڼا کې تعريفونه جوړېږي. کره کتنه هم د ادبپوهنې د يوې مهمې څانګې په توګه د تعريف له دې حالته مستثنى نه ده. د کره کتنې پر تعريف هم لکه د نورو ادبي پديدو په شان سل په سلو کې توافق نه شته، خو د نظري او عملي کره کتنې د خصلت او محتوا له مخې د کره کتنې جوهر، مانا او تعريف څرګند بدلای شي.

دلته به لومړی د کره کتنې لغوي، اصطلاحي مانا ، اهمیت او اړتیا یې ، حدود او اداب یې په ترتیب سره وڅېړو او بیا به د کره کتنې نورو برخو ته داخل شو.

## الف- د کره کتنې لغوي مانا:

(کره) په پښتو کې د (پوره) ، (بشپړ) یا (مکمل) مانا لري، چې ضد یې نیمګړی او نابشپړ دی. یا هغه څه چې نیمګړتیا او عیب ونه لري. (کتنه) هم د (لیدنې) یا (مشاهدې) مانا لري او یا د هغو نسبي مترادف، خو دواړه کلمې چې سره یوځای شي، نو یو شی، څیز، شکل یا محتوا ته د پوره کتنې یا پوره څېړنې او پلټنې مانا ورکوي. په پښتو کې د ادبي او نورو اثارو د ارزونې لپاره د (کره کتنې) نومونه یا اصطلاح په همدې نیت کارول کېږي، چې هغه موضوع یا شی په هر اړخیز ډول وڅېړل شي. کره کتنې ته په عربي ژبه کې (نقد) وایي. نقد کلمه په حدیث شریف کې هم راغلې ده، په یو حدیث شریف کې راغلي چې: ((زید بن ارقم او براء بن عازب سپین زر په نقدو او پور رانیول، نو کله چې دا خبره نبي کریم(ص) ته ورسېدله، هغه امر وکړ: څه چې په نقدو دي ویې منئ او څه چې په پور دي ور رد یې کړئ.)) (۲۷: ۱۲۲).

د (نقد ) کلمه نه یوازې د (نقدو ) په مانا ، بلکې وروسته د اصلي او جعلي یا اصلي او کوټه دینارو او درهمو د بېلولو په مانا هم وکارېدله او نقاد یې هم هغه چاته وایه چې اصلي دینار یې له کوټه دینارو څخه جلا کول. ځینو فرهنګونو یې لغوي مانا(( وینا پېژندنه، د خبرو سنجونه، ربښتینی قضاوت او د ادبي اثارو ارزښت معلومونه هم راخیستې ده. )) (۳۲: ۳۱ ).

په پخوا زمانو کې پیسې له لویه سره دوه ډوله وې: د سپینو زرو پیسو ته یې (درهم ) او د سرو زرو پیسو ته یې (دینار ) ویل، کله کله به یې په پیسو (دینار ) کې جعل کاري کوله او مس به یې ورسره ګډول، په دې ډول به د سرو زرو معیار (کچه او اندازه ) راټیټېده، تر یو څه مهاله به له سرو زرو سره د مسو دا ګډېدا په سترګو نه ښکارېده، تر یو څه وخت وروسته به مس لږ لږ تورېدل، ځکه به یې نو په غټو معاملو کې زر د صراف یا نقاد دکان ته وروړل، چې هغه یې د زرو د سوچه والي کچه وټاکي. په بازار کې به د صرافۍ ډېر دوکانونه وو، صراف یا نقاد به په محک ( د زرو د ازموینې توره ډبره ) وهل، د هغو کوټه او کره به یې سره معلومول.

د نقد کلمه په پخوانیو متونو کې د عیب لټولو، د یو شي د پټ پټ لیدلو او یوه شي ته د پټ پټ کتلو، یا یوه شي ته تر سترګو لاندې کتلو او همدا راز د څه کار په اړه د مناقشې په مانا هم راغلې

ده. نقد ته يې د ډېر ښه شي د غوره کولو، خبرتيا، فهم، موازنې او پرېکنده حکم ماناوې هم کارولې دي.

په دري ژبه کې کره کتنې ته د عربي په شان نقد ويل کېږي او کره کتونکي ته د (نقاد) کلمه کارول کېږي. که څه هم په فارسي کې (سخن سنجي) او (سخن شناسي) اصطلاحات هم کارول کېږي، په دري کې خو زياتره همدا د نقد کلمه کارول کېږي. ځينې کره کتونکي وايي ((د نقد لغوي مانا له ناکره و څخه د کره و بېلول دي.)) (۱۹: ۲۵).

((کره کتنې ته په انګرېزي کې Criticism)) په فرانسوي کې (Lacritque) او په الماني کې (Kritik) وايي. دا ټولې اصطلاحګانې د يوناني ژبې له (Krites) څخه، چې ((د حکم، نياوګر او قاضي)) مانا ورکوي، مشتق شوي دي. د (Kritneina) کلمه چې د قضاوت او تميز مانا ښندي، له همدغې مادې څخه را اخيستل شوې ده.

(کرتيکيوس) هغه چاته ويل کېږي چې قضاوت او کره کولو کې مهارت ولري.)) (۱۵: ۸).

د پښتو (کره کتنه) هم تصادفاً د (کرتيکيوس) له اصطلاح سره لفظي ورته والی لري.

د نقد کلمې د پورتنۍ مانا له مخې، دا کلمه د جعلي او اصلي دینارو له معلوملو څخه ورو ورو د علم او ادب نورو برخو ته ولېږدېدله. وروسته دا کلمه د لیکوالو او ادیبانو د کارونو د څارنې، تعقیب، ارزونې، د هغو د لیکنو د نیمګړتیاو د څرګندولو او هم د سمون لپاره وکارېدله، څرنګه چې د نقد کلمه له (کره درهمو ) څخه د (کوټه) هغو د لرې کولو لپاره کارېدله، نو په همدغه مانا د ادب د دواړو ډولونو: شعر یا نظم او نثر د کره کولو لپاره هم وکارېدله. په دې مانا چې د یو ادبي اثر نیمګړتیاوې څرګندوي، ګټورې او کره خواوې یې یوې خواته او نیمګړې یې بلې خواته سره جلا کوي او د عیبجنو برخو د سمون لپاره یې هڅه کوي. کره کتونکی بیا همغه چاته ویل کېږي چې دا عملیه تطبیقوي او بشپړوي یې.

## ب- د کره کتنې اصطلاحي مانا:

لکه څنګه چې په ټولنیزو علومو کې تعریفونه د ساینسي هغو په شان فکس نه دي، نو کره کتنه چې د ادبپوهنې یوه مهمه څانګه ده، ددې تعریف هم سل په سلو کې کوټلی او د ساینسي تعریفونو په شان فکس نه دی. موږ به دلته د بېلابېلو پوهانو له نظره د کره کتنې ځینې تعریفونه وړاندې کړو او بیا به په پای کې د هغو له منځه یو

نسبي او پراخ تعریف ته هم اشاره وکړو. ځینې ادبپوهان وايي:
[((کره کتنه، د شخصي ځکې یا د ښکلا پوهنې د متداولو معیارونو پر اساس د یوه هنري اثر اګاهانه ارزونې او کره کولو ته ویل کېږي.)) ډاکتر عبدالحسین زرین کوب، په خپل اثر (نقد ادبي) کې وايي: ((ادبي کره کتنه چې هغې ته وینا پېژندنه او د خبرو سنجونه هم ویل کېږي، د ادبي اثارو د ارزښت او قیمت پېژندنې او د هغو له شرحې او تفسیر څخه عبارت ده، په داسې ډول چې د هغو اثارو ښه او بد او منشا وپېژندل شي.)) (۱۷: ۵). (بریتا نیکا دایرة المعارف) د کره کتنې په باره کې نسبتاً جامع تعریف وړاندې کوي، داسې لیکي: ((کره کتنه د هنرونو په باره کې یوه مستدله او سیستماتیکه مباحثه ده، چې د هغو تخنیکونه او محصولونه توضیح او ارزیابي کوي. په دې ترتیب کره کتنه له استیتک کتنو، عکس العملونو او کره کولو سره توپیر لري.))

(امریکانا انسایکلو پېډیا) د کره کتنې په تعریف کې ایستیتکي تجربې ته ځای ورکړی دی. کره کتنه په دې ډول تعریفوي: ((د یوه هنري اثر تنقیح، ارزونې او له هغه څخه انطباع اخیستنه د ایستیتیکي تجربې یوه حتمي او ضروري برخه ده.)) د فرانسې نامتو لیکوال (ویکتور هوګو) د کره کتنې په باره کې وايي: ((دا اثر ښه دی که بد همدا د کره کتنې ساحه ده.))] (۱۵: ۸-۱۹).

انګرېزي کره کتونکی او شاعر (میتیو آرنلډ) ( Mathew Arnold ) وايي: (( په نړۍ کې چې د ېرې ښې خبرې شوې دي او یا کوم ښه او غوره اندونه رامنځته شوي دي، د هغو د بې پرې پېژندنې او عامونې د هیلې نوم کره کتنه ده. ))

[ په ایټالوي دایرة المعارف (Encyclopedia Italian) کې راغلي دي: ((کره کتنه د هغه عمل یا ذهني خوځښت نوم دی، چې د یوه شي یا ادبي ټوټې د هغو ځانګړنو امتیاز وکړي، چې ارزښت ولري. )) (اې اې. رچرډز) وايي: (( کره کتنه د یوه انصاف لرونکي لیکوال شننه، مدلله څېړنه او په پای کې د ښکلاییزو ارزښتونو په اړه پرېکړه کول دي. )) (ابرامز) وايي: (( ادبي کره کتنه د ادبي اثارو تعریف، توصیف، طبقه بندي، شننه او ارزونه ده )).

(کادن) وايي: ((ادبي کره کتنه هغه هنر یا علم دی، چې د ادبي اثارو پرتلنې، سپړنې او څېړنې، شننې، تفسیر او ځیرنې ته ځانګړی شوی دی. ))

(احمد امین) وايي: ((کره کتنه د ادبپوهانو په اصطلاح د هر هنري اثر، چې موضوع یې ادب، یا انځور یا موسیقي وي، درسته ارزونه، دهغه د خپل ځاني ارزښت سپړنه او د هنر په ورشو کې د هغه د کچې ټاکنه ده. هغه ملکه چې دغه ارزونه رامنځته کوي، ذوق دی او دا ذوق کوم بسیط او ساده شی نه دی، بلکې له ډېرو شیانو

ځخه مرکب دی، چې ځینې یې د عقل له قوې او ځینې یې د شعور لـه قوې ځخه عبارت دي.))

(دکتور هاشم صالح مناع) وایي: ((کره کتنه د هنري کار ارزول، له هر اړخه د هغه ارزښت ټاکل او پر هغه باندې د اغېز ښندونکو عواملو شنل، سپړل، علت ښودل، پېژندل او د هغه د مثبتو او منفي خواوو ځرګندول او بیا پر هغه باندې حکم کول دي.))

(پوهاند عبدالقیوم قویم) وایي: ((ادبي کره کتنه دنده لري، چې د ادبیاتو زېږونې تحلیل او ارزښت یې ځرګند کړي، د ادب د روان بهیر تاریخي ریښې مشخصې کړي. راتلونکې پرمختیا یې وټاکي او ځای او اغېز یې د ادبي وضعې د لوړاوي لپاره جوت کړي. ادبي کره کتنه په حقیقت کې د مهال د ډېرو مهمو ادبي پېښو پر وړاندې عکس العمل او د هغو د ارزښتونو ټاکنه ده.))] (۲۷: ۱۲۷-۱۳۱).

(استاد حبیب الله رفیع) وایي: ((کره کتنه د ادب ساه او ورح ده، که کره کتنه نه وي، ادب مري او که ژوند ولري هم، نو ادب ژوندی نه ګڼل کېږي، کره کتنه معراج او معیار ته د ادب د رسېدو لاره ده، که دا لاره شاړه وه، نو بیا له ادب نه د معیار توقع مه لرئ.))

روسي کره کتونکی (کولیشوف) وایي: [((کره کتنه د اوسنۍ زمانې او د هغې د ښېړنو روح جوړوي. اوس هر څه کره کتنې پورې اړه لري، ان په خپله کره کتنه.))

ستر روسي شاعر (الکساندر پوشکین) وايي: ((کره کتنه هغه پوهه ده چې په هنري ادبي اثارو کې ښکلاوې او نيمګړتياوې رابرسېره کوي.))

بل نامتو روسي کره کتونکی (ګريګوريوويچ بېلنيسکي) وايي: ((کره کتنه د ټولنيزو عقلي قوانينو روح دی. کره کتنه د ښکلا خوځوونکې او لمسوونکې ده، دغه خوځون بايد نه يوازې دا چې د هنري اثارو کچه وټاکي، بلکې په لوستونکو کې بايد د ذوق د روزنې دنده هم ولري.))[(۵: ۱۸). دا ټول او د پېته ورته نور تعريفونه که راټول کړو، نو د کره کتنې په باب ويلای شو: کره کتنه هغه علم دی چې په ناپېيلي ډول له هر پلوه د يو ادبي اثر، څېړنه، شننه، ارزونه او تلنه کوي، د هغه کره او ناکره خواوې سره بېلوي او د نيمګړو خواوو د کره کولو حل لارې هم په ګوته کوي.

## ج- د کره کتنې اهميت:

د کره کتنې اهميت د هغې له تعريف او يا له تعريفونو څخه ثرګندېږي. کره کتنه د يوه اثر ارزښت معلوموي او له بېلابېلو خواو هغه تحليلوي او ارزوي يې، کله چې د يوه هنري اثر ارزښت معلوم شو، بيا يې موږ پر ماهيت او اهميت پوهېږو، کره کتنه د يو اثر ليکوال له نيمګړتياوو او تاريکيو ژغوري او سمې لارې ته د هغه لارښوونه کوي، کره کتنه د اثر سم او بشپړ پوهاوي لپاره لاره

اواروي، له شاعر او ليکوال سره د هغه د کار په پرمختيا کې مرسته کوي، د يوه اثر عيبجنې برخې په ګوته کوي او حل لارې ورته ورښيي. د ايران نوميالی کره کتونکی (ډاکتر زرينکوب) وايي: ((که چېرې نيوکه په منځ کې نه وي د هنري اثارو رښتينی ارزښت نه معلومېږي، که چېرې په خپل وخت کې د هنر خطا و سير معين نه شي، ورو ورو ادب او هنر له ځنډ وخنډ سره مخامخېږي او دې سره د تقليد په پېچومو کې خپله لاره ورکوي.))(۱۷: ۲۸). د ټولنې د هر ډګر لپاره د کره کتنې شتوالی خورا مهم دی. هغه ټولنې چې ځان يې له کره کتنې سره روږدی کړی، ځانته يې د پرمختګ لارې پرانيستې دي. کره کتنه په اشخاصو، ټولنو، علمي او فرهنګي مرکزونو، پوهانو او ليکوالو کې د زغم روحيه روزي. د زغم روحيه او د يو بل زغمل په ټولنه کې د کړکېچ د مخنيوي سبب ګرځي، په ليکوالۍ کې هم د کره کتنې اهميت خورا زيات دی. کره کتنه دومره مهمه ده لکه يو زرګر چې زرو ته ځلا او ښکلا ورکوي، زر خو پرته له هغه هم زر دي، خو کله چې زرګر هغه ته اب يا ځلا ورکړي، نو ښکلا يې څو ځله زياته شي. که يو ادبي اثر هم د کره کتنې له فلتره تېر نه شي، نو که هر څومره محتوايي پانګه ولري، د ښکلا عنصر به يې کمزوری وي. کره کتنه نه يوازې د يو اثر شکلي اړخ ته پاملرنه کوي، بلکې محتوا يې هم څېړي، شکلي ښکلا او محتوايي سمون د کره کتنې پاتې کار دی. کره کتنه يو ادبي اثر داسې صيقلوي لکه زرګر چې

زرو ته ښکلا ورکوي. مخکې تر دې چې يو هنري ادبي اثر ولس ته وړاندې شي، بايد د کره کتنې له فلتره تېر شي. اکثره ليکوال چې د کره کتنې پر اهميت پوه دي، مخکې تر دې چې خپل اثر خپلې ټولنې ته وړاندې کړي، د کره کتنې عمليه پرې تطبيقوي. کره کتنه د يوه هنري ادبي اثر د تائيد، تثبيت او ثقه والي وروستی پړاو دی.

## د- د کره کتنې اړتيا:

په انساني ټولنه او د علومو په هره برخه کې هر شی د يوې اړتيا له مخې رامنځته کېږي، که په يوه ټولنه کې د يو شي ضرورت نه وي، اصلاً هغه شی رامنځته کېږي نه. کره کتنه هم د ادبياتو په ګډون د ژوندانه د ټولو ډګرونو يوه مهمه اړتيا ده. همدا کره کتنه ده چې د ادبي پديدې په ګډون د ژوند د هرې بلې ښکارندې د نيمګړتياوو مخه نيسي، د رڼاوي، پرمختګ او بشپړتيا لارې چارې ورته برابروي. د کره کتنې له ګټې سره سره بيا هم ځينې کسان شته چې د هغې په باب اعتراض لري او دا داسې يوه پديده ګڼي چې تر ګټې يې زيانونه زيات دي.

ځينې کسان کره کتنه يو تعميري عمل نه، بلکې يو تخريبي کړنه ګڼي او ځينې يې د ازاد تخليق پر وړاندې لوی خنډ ګڼي. خو له دې اند پښنو سره سره کره کتنه پر خپل وخت او ځای ډېر ارزښت لري، هر وخت ورته اړتيا وه، ده او وي به، که په سمه توګه وکارول شي، نو

تر زیانونو یې ګټه څو ځله زیاته ده. کره کتنه داسې یوه وسیله ده; چې حقایق راسپړي، لوستونکي او کتونکي د ادب روح ته ننباسي، د ادبیاتو روح او ماهیت تشریح کوي، ارزښتونه یې ټاکي، نیمګړې اړخونه یې بشپړوي او د لا بشپړاوي لپاره یې لارې چارې په ګوته کوي. کره کتنه نه یوازې د لوستونکو لپاره کار اسانوي چې د یوه اثر یا پدیدې تل ته کوز شي، بلکې خپله د لیکوال او پنځوونکي لپاره هم د لارښود حیثیت لري. لیکوال هم اړ دی چې یو څوک ورته لارښوونه وکړي. لیکوال اکثره د ولولو تر چتر لاندې یوه لیکنه رامنځته کوي او کره کتونکی د علم په وسیله یو اثر څېړي، چې په هغه کې د احساساتو برخه کمه او د علم برخه درنه ده، نو کره کتنه د یوه علم په توګه ددې زمینه برابروي چې لیکوال له تېروتنو وژغوري.

(هوراس) وايي: ((کره کتنه په ټولنه کې د هغه ګرځنده اعلان نوم دی چې د خلکو اشعارو او تالیفاتو ته پام کوي او خپل قام د هغو د اثارو کتنې او مطالعې ته هڅوي او د دوی د تالیفاتو ادبي او ثقافتي سویه برابروي.))

((کره کتنه په واقعیت کې پر عامه افکارو د اغېز له لارې، د لیکوالو او لوستوالو پر افکارو او عقایدو هم تاثیر کوي او په دې ډول د ادبي بدلون تګلوری څرګندوي او روښانوي.)) (۱۷: ۳۴).

## هـ- د کره کتنې بریدونه:

کله کله چې له کره کتنې څخه وېره احساسېږي، یو علت یې دا دی چې د کره کتنې حدود یا بریدونه تر پښو لاندې کېږي، د کره کتنې اصول نه مراعتېږي، معیارونو ته یې پام نه کېږي، کله چې د کره کتنې اصول تطبیق نه شي او د هغې تر بریدونو، حدودو او معیارونو پښه واوړي، نو طبیعي ده چې کره کتنه هم خپل ارزښت له لاسه ورکوي، نه یوازې مثبت تاثیرات نه لري، بلکې منفي اغېز هم ښندي او له غبرګون سره هم مخامخېږي. کله چې کره کتونکی پر یو ادبي اثر باندې بحث کوي، نو که پر اثر باندې د بحث پرځای د هغه پر لیکوال یا پنځوونکی بحث پیل کړي او کله که د هغه شخصي حریم ته داخل شي، نو دلته ویلای شو چې د کره کتنې حدود مات شول. د لیکوال پر کرکټر او چلند بحث یوه جلا موضوع ده او د هغه اثر یوه جلا ، البته کله کله داسې وي چې د لیکوال کرکټر په مستقیم او نامستقیم ډول د هغه په اثر کې ځلېږي، یا د هغه په اثر کې د راغلو کرکټرونو تر شا پټ وي، کله چې کره کتونکی ددې اتلانو شخصیت تشریح کوي او هغو ته منطقي ځوابونه پیدا کوي، مجبور دی د لیکوال د شخصیت څېړنې ته هم تم شي، له کرکټرونو سره د لیکوال پر روحي او اروایي رابطې پوهېدل هم د تشریحي کره کتنې لپاره ضروري ده، خو دا تشریح او توضیح تر هغه حده نه ده چې د اثر تر تشریح د لیکوال تشریح زیاته شي. کره کتنه د شخصیتونو

سپکاوي ته اجازه نه ورکوي، کره کتونکي ته یوازې د هغو پرنسپونو په رڼا کې د یوه اثر تشریح، توضیح، سمون او رغونې جواز شته چې د اثر له بشپړاوي سره مرسته کولای شي.

کله کله داسې هم پېښېږي چې د یوه اثر کره کتنه، د کره کتنې له محوره وځي او د نورو علومو برخې ته داخلېږي، د یوه اثر عاطفي هنري څېړنه چې خپله د یوه ادبي اثر بڼه خپلوي، هم د کره کتنې له بریده وځي. پر دې ټول متفق دي، چې کره کتنه علم دی او د یوه ادبي اثر پنځونه هنر- د ادبي اثر ژبه له علمي ژبې سره توپیر لري. په علم کې عواطفو، احساساتو، تخیل او زیاتو ولولو ته اړتیا نه شته، خو د یوه ادبي اثر په پنځونه کې دا توکي ضروري دي.

ناپېیلتوب، ناتبعیضي، څېرتیا، پوهه، د موضوع تعقیب او د پرنسیپونو تطبیق، د کره کتنې اصول، معیارونه او بریدونه دي. د کره کتنې پر وخت باید دا ټول په پام کې ونیول شي. که چېرې دا حدود عملي نه شي، نو کره کتنه خپل اصلي هدف ته نه شي رسېدلای.

## و- د کره کتنې اداب:

د کره کتنې اصلي هدف د یوه اثر سمون، ښکلا زیاتونه او د نیمګړتیاوو له منځه وړنه ده. توهین، تحقیر، سپکاوی د کره کتنې په آدابو کې ځای نه لري. د کره کتنې آداب دا دي چې یو اثر په داسې

توګه وارزول شي، چې لیکوال یا پنځوونکی هغه د اثر د بشپړاوي او سمون لپاره یوه نېکه هڅه وګڼي، نه د خپل ځان سپکاوی. هر کله چې لیکوال پر دې باوري شي، چې کره کتنه دده لپاره په ګټه ده، نو هغه هېڅکله له کره کتنې سره حساسیت نه ښیي. د کینې او حساسیت مسله هغه وخت رامنځته کېږي، چې د کره کتنې آداب مراعت نه شي، له موضوع وتل، د عقدې څرګندول، په قصدي ډول څنګزني مسایل مطرح کول او په شعوري توګه د یوه اثر غندل، نه د کره کتنې په اصولو کې راځي او نه یې په آدابو کې. لکه څنګه چې په ټولنیزو، سیاسي او مذهبي چارو کې سالم اخلاق د یوه رغنده عنصر په توګه مطرح دي، دغسې د کره کتنې په آدابو کې هم اخلاق یو مهم عنصر دی. له اخلاقو څخه هدف همغه ټولنیز قراردادونه دي، چې د هغو په مراعتولو سره په ټولنه کې عامه نظم ټینګېږي، د ټولنې د ټولو وګړو پرې توافق وي، په تطبیق سره یې بل چاته زیان نه رسېږي او هر شخص د هغو په رڼا کې خپل ځان خوندي احساسوي. د ټولنیزو او کره کتنیزو اخلاقو په رعیت سره تر کره کتنې لاندې شخص خپل هویت او شخصیت خوندي احساسوي او د کره کتنې پر وړاندې منفي غبرګون نه ښیي. بې ځایه خواخوږي او تر علمي اصولو د پورته احساساتو څرګندونه هم د کره کتنې په آدابو کې نه راځي. دا کار لیکوال بې ځایه غرور او کاذب شهرت ته هڅوي. خپله د کره کتونکي لپاره هم په دې پلمه چې څه نو د قلم

توره زما په لاس کې ده او هر څه چې وایم وروستی حد زه یم، دا هم د کره کتنې آداب او اصول زیانمنوي. همدا د کره کتنې له اصولو او آدابو څخه سرغړونې دي، چې د یو بل علم او عمل ضرورت هم رامنځته کوي، (پر کره کتنې کره کتنه). که په (لومړۍ کره کتنه) کې ټول اصول او آداب مراعت شي، نو دویمې هغې ته اړتیا نه پېښېږي. خو د ځینو کره کتونکو تېروتنو د بېته لاره اواره کړه، چې پر (کره کتنې) د (کره کتنې) اړتیا رامنځته شي.

د هېواد نومیالی کره کتونکی کاندید اکاډمیسین محمد صدیق روهي د کره کتنې د آدابو په باب وایي: [کره کتنه د اشتباهاتو د سمولو او د نیمګړتیاوو د لرې کولو یوه اغېزمنه او ګټوره طریقه ګڼل کېږي. هر هغه ثوک چې د خپل شخصیت له بشپړولو او تکامل سره علاقه لري، باید د خپل زړه دروازې د انتقاد لپاره خلاصې پرېږدي، هم پر خپل ځان انتقاد وکړي او هم د نورو انتقاد ته غوږ کېږدي، بشري تفکر همېشه د ودې په حال کې دی، هېڅوک په زغرده نه شي ویلای چې دده مفکوره وروستنۍ او بشپړه مفکوره ده. د بشري تفکر بهیر مخ پر وړاندې روان دی، علوم او هنرونه خپلې ساحې پراخوي او هر وخت د پوهې په سمندر کې نوې نوې مرغلرې لاس ته راځي. پر دې اساس هېڅوک ادعا نه شي کولای چې دی له اشتباه او تېروتنې څخه کاملاً مصئون دی.

یو چا په دې برخه کې ډېر ښه ویلي دي: ((پوه سړی هغه نه دی چې اشتباه ونه کړي، ځکه هر څوک اشتباه کوي، بلکې پوه شخص هغه دی چې د خپلې اشتباه تلافي وکړي.)) پښتانه یو متل کوي چې: (ارمان چې وروستی عقل ړومبی وای) د دې خبرې مانا داده؛ چې انسان د تجربې په اثر نوي معلومات ترلاسه کوي او پوهه تکامل کوي. سربېره پر دې انسان د نورو پر اعمالو هم قضاوت کوي او له قضاوت کولو څخه ډډه نه شي کولای. د هر فرد د ذهن په محکمه کې یو قاضي ناست دی، ځینې کارونه او حرکتونه ښه او ګټور بولي او ځینې نور بد او زیان رسوونکي بولي. موږ هرومرو په یوه پایله سوچه قضاوت او انتقاد کوو، دا شرط نه دی چې انتقاد دې هرومرو منفي اړخ ته متوجه وي. همدا چې له یوه هنري اثر څخه خوند واخلو په حقیقت کې مو پر هغه باندې له ځان سره یو انتقاد کړی دی. ادبي کره کتنه د ادبي اثارو په برخه کې اګاهانه او سیستماتیک قضاوت ته ویل کېږي، چې د هغې په وسیله د یوه اثر ښه والی او بدوالی، کره توب او ناکره توب، ښکلا او بدرنګي، خوندورتوب او بېخوندي څرګندېږي، ادبي کره کتنه ځانته ټاکلي موازین او معیارونه لري، که چېرې کره کتونکي د ادبي کره کتنې آداب مراعات نه کړي، کره کتنه به خپل ارزښت له لاسه ورکړي. هغه کره کتنه چې پر شخصي عقدو، کسات اخیستلو، د شخصیت سپکاوي، کنځلماری او ځان ښودنې باندې بنا شوي وي، ښایي

ډېره ژر رسوا شي. دغه ډول کره کتنه چې د یوه شخص د توهین او تعجیز په منظور نه وي لیکل شوې او هدف یې لارښوونه وي، د فرهنګ د سطحې په لوړولو کې مرسته کوي او د ادب او پوهې د ودې او پراختیا لپاره لاره هواروي. که داسې نه وي کره کتونکی به خپل مخ په هنداره کې وګوري او له انعکاس څخه به یې خوند وانخلي. ډېر ځله لیدل شوي چې یو مؤدبانه انتقاد په تشکر سره منل شوی دی او بالعکس ډېر معقول انتقادونه چې د تذلیل په غرض لیکل شوي دي، په کنځلو سره مقابله شوي دي. نو که چېرې موږ غواړو د کره کتنې دروازه خلاصه کړو باید د کره کتنې آداب په نظر کې ونیسو. د مثال په توګه، کله چې د یوه شخص نظر زموږ لپاره د منلو وړ نه وي ددې پرځای چې ووایو د پلاني نظر غلط دی، ویلای شو چې د محترم.... صاحب نظر زما په فکر د تامل وړ دی. یا دا چې د پلاني صاحب نظر داسې دی، خو زه په خپله بل ډول نظر لرم. له بده مرغه ډېر ځله لیدل شوي، چې په کره کتنه کې د مفکورو ترمنځ معارضه د شخصیتونو ترمنځ د مقایسې او مقابلې بڼه غوره کوي.] (۱۲: ۱۱۴۰-۱۴۳).

# د لومړي څپرکي لنډیز

کره کتنه: کره کتنه په پښتو کې د (پوره) (بشپړ) یا (مکمل) مانا ورکوي. د نقد کلمه په پخوانیو متونو کې د عیب لټولو، د یو شي د پټ پټ لیدلو او یو شي ته د پټ پټ کتلو، یا یو شي ته تر سترګو لاندې کتلو او همدا راز د څه کار په اړه د مناقشې په مانا هم راغلې ده. نقد ته یې د ډېر ښه شي، د غوره کولو، خبرتیا، موازنې او پرېکنده حکم ماناوې هم کارولې دي.

کره کتنه له اصطلاحي پلوه هغه علم دی، چې په ناپېیلي ډول له هر پلوه د یوه ادبي اثر څېړنه، شننه، ارزونه او تلنه کوي، د هغه کره او ناکره خواوې سره بېلوي او د نیمګړو خواوو د کره کولو لپاره یې حل لارې هم په ګوته کوي.

د کره کتنې اهمیت په دې کې دی، چې د یوه ادبي اثر ارزښت معلوموي، لیکوال له نیمګړتیاوو ژغوري او د یوه ادبي اثر په اړه سم پوهاوی رامنځته کوي.

د کره کتنې اړتیا په دې کې ده، چې لیکوال او لوستونکي دواړو ته لاره ښيي، که کره کتنه نه وي، د لیکوال د تېروتنو سمون به څنګه کېږي، د یو عالم په وینا: ((کره کتنه په ټولنه کې د هغه ګرځنده اعلان نوم دی، چې د خلکو اشعارو او تالیفاتو ته پام کوي او خپل

قام د هغو د اثارو کتنې او مطالعې ته هڅوي او د دوی د تاليفاتو ادبي او ثقافتي سويه برابروي.))

کره کتنه خپل بريدونه او معيارونه لري، ناپيېلتوب، بې تعصبي، ځيرتيا، پوهه، د موضوع تعقيب او د پرنسيپونو تطبيق، د کره - کتنې اصول، معيارونه او بريدونه دي. د کره کتنې پر مهال د کره کتنې د اصولو او معيارونو تطبيق خورا مهم دی، که هغه تطبيق نه شي، کره کتنه له خپل اصلي مسيره وځي او د هغې پر وړاندې حساسيت راپيدا کېږي.

په کره کتنه کې د هغې د ادابو مراعتول خورا مهم دي، په کره کتنه کې د چا شخصي توهين، سپکاوي او رټنې ته ځای نه شته، کره کتنه د نيمګړتياوو د لرې کولو يوه اغېزمنه او ګټوره طريقه ګڼل کېږي. په کره کتنه کې سالمه، خوږه ژبه د کره کتنې د ادابو له جملې څخه ده. که په يوه کره کتنه کې د هغې علمي اصول، معيارونه، اداب، ژبه او نور اړونده توکي په پام کې ونه نيول شي، نو يوه سالمه کره کتنه نه شي رامنځته کېدلای.

# د لومړي څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱- د کره کتنې لغوي مانا څه ده؟

۲-د کره کتنې پر لغوي مانا نور څه زیاتولای شئ؟

۳-په پښتو کې د (کره کتنې) نومونه، د (نقد) لپاره مناسبه ده واضح یې کړئ؟

۴-کره کتنه له اصطلاحي پلوه څه مانا وې لري؟

۵-کولای شئ پر یادو تعریفونو څو نور تعریفونه ورزیات کړئ؟

۶-ستاسو په نظر د کره کتنې کره تعریف کوم یو دی؟

۷-ایا کولای شو په ادبپوهنه او ټولنپوهنه کې د هرې اصطلاح لپاره یو بشپړ تعریف پیدا کړو؟

۸-کره کتنه څه اهمیت لري؟

۹-ایا زموږ په ټولنه کې د کره کتنې د اهمیت پېژندلو لپاره پوره کار شوی دی؟

۱۰-د کره کتنې اړتیا څه ده؟

۱۱-که کره کتنه نه وي، د ادبیاتو برخلیک به څنګه شي؟

۱۲-د کره کتنې بریدونه کوم دي او څه وخت ماتېږي؟

۱۳-که د کره کتنې آداب مراعت نه شي، د ليکوال او کره کتونکي ترمنځ د څه شي د پېښېدو اټکل کېدی شي؟

## سپارښتنې

- استاد دې محصلينو ته ددې څپرکي د بېلابېلو عنوانونو او په هغو کې د راغلو غټو محتوياتو د زياتې توضيح، څېړنې، شننې او ارزونې په خاطر، جلا جلا کورنۍ دندې او سيمينارونه وسپاري.
- استاد دې د ټولنيزو پديدو په اړه د واحد تعريف د نشتوالي علتونه محصلينو ته څرګند کړي.

# دویم څپرکی

## د کره کتنې پیدا ینبت

د کره کتنې د پیدا ینبت په هکله د ادبپوهانو په نظرونو کې اختلافات لیدل کېږي، لکه د ځینو تاریخي او نورو ادبي او ټولنیزو پدیدو په شان د کره کتنې دقیق تاریخ هم څرګند نه دی. ((د ځینو ادبي تیوریسنانو په نظر ادبیات او کره کتنه یو ځای منځته راغلي دي، ځکه هر وخت چې شعر ویل شوی دی او یا ډرامه ښودل شوې ده، هرو مرو یې پر اورېدونکو او لیدونکو باندې یو ډول اغېزه کړې ده)).

څرنګه چې کره کتنه په خپله ساده بڼه کې د یوه ادبي اثر په مقابل کې د عکس العمل څرګندولو ته ویل کېږي، نو طبعاً هر چېرې چې ادبیات دي، هلته کره کتنه هم شته. اما ځینې نور له دې نظر سره پوره موافقه نه کوي، ځکه چې د دوی په پوهه، کره کتنه یوه اګاهانه او سیستماتیک عکس العمل ته ویل کېږي. د لومړني کره کتونکي

د پېژندلو په باب د ادبي مورخانو ترمنځ اختلافات ليدل کېږي، د ځينو په عقيده کره کتنه په لرغوني يونان کې تر ميلاد شپږ پېړۍ مخکې منځته راغلې ده. وايي چې (زنيوفنيز) او (هراکليتس) يوناني فيلسوفانو به د نامتو شاعر (هومر) پر شعرونو باندې اخلاقي ايرادونه نيول او نورو له (هومر) څخه دفاع کوله. په دې ترتيب په لرغوني يونان کې د مريي ساتنې په اجتماعي- اقتصادي فورماسيون کې د کره کتنې زړى زرغون شو او ورو ورو يې وده وکړه.

(پيزميسترات) د (اتن) نامتو سردار او ديکتاتور (۶۰۰-۵۲۵ ق.م) ظاهراً لومړنى شخص دى، چې د کره کتونکي په توګه ياد شوى دى. د ځينو نورو په عقيده (فيليتاس philitas) چې په څلورمه قبل الميلاد پېړۍ کې يې ژوند کاوه، لومړنى کره کتونکى دى چې يونانيانو د شاعر او کريتيکوس (Kritikos) په نامه ياداوه، سربېره پر دې هغه وخت چې په يونان کې شعر او ډرامه د ترقۍ لوړې څوکې ته وختل او ادبي مسابقې پيل شوې، د (ارخونانو) په نامه قاضيان وټاکل شول، چې ډرامې ارزيابي کړي او تر ټولو ښې ډرامې ته جايزه ورکړي. (ارخون archon) په حقيقت کې د کره کتونکي بل نوم و. وايي چې د (سوکرات) فيلسوف په زمانه کې د (اريستوفان) په نوم يوه کره کتونکي ژوند کاوه، چې په نقد او د طنز په ليکلو کې يې پوره مهارت درلود. يوناني فيلسوف (اپلاتون) د ارسيتوفان نوم

داسې یادوي: ((کله چې د ذوق خاوندانو د خپلو ځانونو لپاره نه رنګېدونکی معبد لټاوه، دوی د ارستوفان نوم خوښ کړ.)) که څه هم (اپلاتون) د خپل استاد (سوکرات) ډېر درناوی کوي او له هغه څخه یې سخته دفاع هم کړې ده، لیکن د ارستوفان په مقابل کې چې پر (سوکرات) باندې ملنډې وهي، له عالمانه زغم او پراخ نظرۍ څخه کار اخلي. (ارستوفان) د (وریځو) او (چونګښو) په نامه دوه ډرامې لیکلي، چې په هغو کې یې پر (سوکرات) فیلسوف او (یوریپدیز) ډرامه لیکونکي باندې انتقادونه کړي دي، له دغو ډرامو څخه ښکاري چې په لرغوني یونان کې شاعرانو او ډرامه لیکونکو کولای شول چې پر ارباب الانواعو، واکمنانو، شاعرانو، فیلسوفانو او حتی د حرم پر مېرمنو باندې په ډېره بېباکۍ انتقاد وکړي.

(اپلاتون) په خپل اثر (جمهوریت) کې پر (هومر) او ځینو نورو شاعرانو باندې انتقادونه کړي دي. (اپلاتون) د ښوونې او روزنې د فلیسوف په توګه د (هومر) د اشعارو هغه اړخونه غندلي دي، چې د ماشومانو پر سلوک باندې ناوړه اغېزه کوي او هغو ته د درواغو، ټګۍ او غولونې درس ورکوي.))(۱۵: ۱۷-۱۹). لکه څنګه چې مو په پیل کې یادونه وکړه، یو زیات شمېر کره کتونکي او ادبپوهان په دې نظر دي چې کره کتنه له یو ادبي اثر سره هممهاله رامنځته شوې ده. د دوی په نظر ((د ادبي کره کتنې هنر د انسان په ژوند کې د نورو

ادبي فنونو غوندې لرغونی دی، خو ددې هنر اصول او مبادي ډېر مهال وروسته د نورو فنونو له راڅرګندېدو سره او د وګړو د تفکر او عقایدو د ملکې له ودې سره ټاکل شوي دي. تر ټولو لومړی، لیکوال یا شاعر د خپلو اثارو د تخلیق پر مهال پر هغو کره کتنه کوي او په خپل اند سمون وربښي، بیا چې دغه اثار ټولنې ته وړاندې شوي دي، عام وګړي او پوهان ځنې متاثر شوي دي او هرو مرو یې د هغو د ښېګڼو او بدګڼو په ګوته کولو سره کره کړي هم دي. )) ځینې پوهان کره کتنه د خپل پیدا ایښت له مخې پر دوه ډوله وېشي: (( یوه هغه کره کتنه ده چې د هنري اثر د زېږونې پر مهال د هنرمند له خوا ترسره کېږي او بله هغه ده چې د هنري اثر تر بشپړونې وروسته د نورو له خوا ترسره کېږي. په دې حساب ویل کېدی شي چې کره کتنه د ادبي اثارو له رامنځته کېدو سره یوځای رامنځته شوې ده. ))

ددې ترڅنګ ځینې پوهان په دې نظر دي چې کره کتنه تر (ادب تاریخ) دمخه رامنځته شوې ده، د دوی په نظر ادب تاریخ هغه وخت لیکل کېږي، چې د هر ولس ادبي میراث راټول یا غونډ شي. خو د عملي کره کتنې چې منظم لیکلي اسناد او اثار ور څخه پاتې دي، اکثره پوهان په دې نظر دي، چې د نقد عملي بېلګې له لرغوني یونان څخه پیلېږي تر یونان وروسته د روم یادونه هم کېږي.

د یونان د قدامت په هکله یو ادبپوه (ډاکتر وهاب اشرفي) وايي: (( د حیرانتیا خبره ده چې د دوو دوونیمو زرو کالو په تېرېدو سره بیا

هم د (افلاتون)، (ارسطو)، (هوديس)، (لان جينوس) او نورو پر ادبي سترتوب باندې د مهالونو دوړې نه دي لوېدلي. د هغو د ليکنو له لوستلو پرته د ادبي کره کتنې څېړنه ترې پاتې کېږي او له کره کتنې پرته پر ځينو بنسټيزو او اهمو ربړو باندې د غور او اند بصير نه رامنځته کېږي.))(۲۷: ۲۷۷).

ډاکتر زرين کوب وايي: ((په هنر او ادبياتو کې د يونانيانو پر مختگ او سترتوب د نړۍ د ولسونو په تاريخ کې له ډېرو عجيبو چارو څخه شمېرل کېږي. د دې ولس عقلي خوځښت او د ښکلا د ښکارندو له ادراک سره د دوی تل تر تله مينې او علاقې د هنري ابداعاتو نوي نوي ډولونه رامنځته کړي دي. د دې ولس نبوغ او حيرانوونکی استعداد د نړۍ د تمدن او فرهنگ په بشپړتيا او پراختيا کې ستره او مهمه برخه لري. په شعر او ا دب کې يونان يوازينی هېواد دی چې د منظم، پرله پسې بدلون او غورېدو خاوند دی او د تولنيزې بشپړتيا په هر پړاو کې يې هغه اثار او انواع چې د بدلون د اړوندې لړۍ غوښتنه وي، رامنځته کړي دي)).

د روم ولس د ادبياتو پيل له هغه مهاله بولي، چې روميانو يونان وينو او د يونان تمدن او فرهنگ، د دويمې ميلادي پېړۍ په شاوخوا کې په دې ولس کې خپور شو. تر دې د مخه ان هغوی نه پوهېدل چې شعر څه ته وايي، په دې توگه لاتيني ادبيات رامنځته

شول او روم هم د یونان غوندې په تمدن او فرهنګ کې شهرت پیدا کړ.

د قاهرې پوهنتون استاد (احمدالشایب) هم په خپل اثر ((اصول النقد الادبي)) کې وایي: ((یونانیان له هغو لومړیو ختونو څخه د حس له دقت او د ژبې له طلاقت څخه برخمن وو او د لفظ، مانا، وزن او انشا په اړه به یې د خپلو شاعرانو د شعرونو نیمګړتیاوې او ښېګنې په ګوته کولې)).

ځکه نو ادبپوهان او کره کتونکي د کره کتنې تاریخ له یونان څخه راپیلوي.

## ۱- کره کتنه په زاړه یونان کې:

لکه څنګه چې د کره کتنې د پیدا ښت په بحث کې مو وویل، د کره کتنې لومړي لاسته راغلي اثار ښيي، چې پخواني یونان ددې علم لومړنۍ زانګو ده او لومړني معلوم کره کتونکي او کره کتنې په همدې ځای کې راټوکېدلې دي. نو موږ هم غواړو لومړی د کره کتنې دې لومړني ټاټوبي او په هغه کې د کره کتنې څرنګوالي ته تم شو:

[(اپلاتون) په خپل اثر (ایون) کې شعر ته د یوه لاهوتي موهبت په نظر ګوري او وایي چې ((شاعر د تفکر او تامل له مخې شعر نه وایي، بلکې، د (میوز muse ) رب النوع خپلې خبرې موږ ته د شاعرانو له خولې اوروي. کله چې شاعران شعر وایي، نو دوی په

خپل اصلي نورمال حالت کې نه وي، بلکې دوی د شاتو له فوارې ځخه چې د هنر د رب النوع په باغونو کې فوران کوي، خپلې خوږې سندرې راټولوي او د جذبې په حالت کې یې زموږ غوږو ته رارسوي. نو شعر د هنر د رب النوع اختراع ده او موږ نه شو کولای چې د (تنیخوس) او (خاسیدیان) ښکلي نظمونه د بشري فکر محصول وبولو. شاعران د ارباب الانواعو ترجمانان دي او د جذباتو په عالم کې سندرې وایي. که داسې نه وي نو ځنګه کېدی شي چې د ډېرو عادي اشخاصو له خولې دې دومره ښکلې سندرې واورېدل شي؟))

که دا خبره سمه وي، نو دلته پوښتنه راولاړېږي، چې (اپلاتون) په خپل اثر (جمهوریت) کې ولې د (هیسید hesiod) او (هومر) پر شعرونو باندې انتقاد کوي؟ اپلاتون اجازه نه ورکوي، چې د (هومر) منظوم داستانونه دې ماشومانو ته ولوستل شي، ځکه چې په دې شعرونو کې ارباب الانواع او قهرمانان په درواغو ویلو، ټګی، غچ اخیستلو او ډول ډول خیانتونو تورن شوي دي. (اپلاتون) شکایت کوي چې د (هومر) او ځینو نورو شاعرانو په نظمونو کې ارباب الانواع په بدلو جامو کې ښکاره کېږي او حتی ګدایي کوي؛ دوی د خپلو ملګرو او خپلوانو پرضد دسیسې چاغوي او د هغو په مقابل کې وسلې ته لاس غځوي، د خپلو ناوړه غرضونو د سرته رسولو لپاره درواغ وایي. (اپلاتون) له (هومر) او نورو شاعرانو څخه د یو شمېر مثالونو په راوړلو سره خپلو خبرو ته دوام ورکوي او وایي:

((نو مورږ له (هومر) او نورو شاعرانو څخه غوښتنه کوو چې د دغو او د دوی په شان نورو مثالونو له راوړلو څخه پر مورږ باندې په قهر نه شي، نه په دې خاطر چې که هر څومره د هغو شاعرانه طلسم زيات دی، دوی بايد د هغو ماشومانو او سړيو غوږونو ته ونه رسېږي چې د ازاد ژوند کولو لپاره پيدا شوي دي او مريیتوب تر مړينې بد تر ګڼي.))

په داسې حال کې چې (اپلاتون) ارباب الانواع يوازې د خير پيدا کوونکي بولي، نو هغه شعرونه چې خلک شرارت او فساد ته ورلمسوي، له کومې فوارې څخه لاسته راغلي دي؟ (اپلاتون) د دوی له ښکلا او شعريت څخه انکار نه کوي او حتی په همدې دليل چې ساحرانه او زړه وړونکي دي او د ماشوم په مغز کې ژورې ريښې ځغلولای شي، پر نوموړو شعرونو انتقاد کوي. په هر صورت، تر کوم ځايه چې د کره کتنې له تاريخ سره اړه لري (اپلاتون) په پوره زړه ورتوب پر (هومر) او نورو نامتو شاعرانو وردانګلي دي. دی د اخلاقو مدافع او د يونان د ښاري دولت د برم او پرتم ساتندوی دی. (اپلاتون) له دې وېرېږي، چې د (هومر) شعرونه به د هېواد ساتندويان (Guradians) د جبن او اخلاقي فساد په جبه زار کې ډوب کړي او په هغو کې به غلامانه ذهنيت خلق کړي. سره له دې چې (اپلاتون) شعر ته د ملکوتي الهام په نظر ګوري، خو چېرته چې دغه

(اسماني خبرې) د يونان د خلکو پر سرنوشت ناوړه اغېزه کوي، فيلسوف پر هغه باندې بېرحمانه انتقاد کوي.

ددې پورتنيو څرګندونو له مخې ويلای شو چې (اپلاتون) له هغو لومړنيو کره کتونکو څخه دی چې پر ادبي اثارو باندې يې اګاهانه او د ټاکلو اخلاقي موازينو پر اساس انتقاد کړی دی. د (اپلاتون) کره کتنه د (اريستوفان) له هغې څخه توپير لري. په دې مانا چې لومړنی په ربښتيا نقد کوي او وروستنی طنز او کترې وايي. که څه هم چې طنز هم د کره کتنې يوه بڼه ده. د (اريستوفان) د کره کتنې انګېزه محافظه کارانه تمايل دی او څرنګه چې (سوکرات) فيلسوف پر ارباب الانواعو او يوناني معتقداتو باندې لګېږي، دی هڅه کوي چې پر (سوکرات) باندې ملنډې ووهي. همدغه انګېزه د (يوريپيديز) نامتو ډرامه ليکونکي په مورد کې هم صدق کوي.

(يوريپيديز) زيار ايستلی دی د ارباب الانواعو لاسونه د بشري سرنوشت له ټاکلو څخه لنډ کړي، خو په عين زمان کې د يوناني عنعناتو او رواياتو له دايرې څخه بالکل نه شي وتلای. د ځينو مورخانو په نظر، (اريستوفان) د کره کتنې په ساحه کې تر (اپلاتون) مخکې دی، ځکه چې (اپلاتون) پر شعر باندې يوازې د سياسي هدفونو په رڼا کې تبصره کړې ده، خو د (اريستوفان) کره کتنه څو اړخيزه ده. د (چنګښو) په ډرامه کې (اريستوفان) سربېره پر اخلاقي مسايلو، خاصو ادبي مسايلو ته هم پاملرنه کوي.

د (چونګښو ) په ډرامه کې پر (یوریپډیز ) باندې انتقاد شوی دی چې حماسي او تراژیدي اتلان یې د معمولي خلکو مقام ته راټیټ کړي دي. په داسې حال کې چې یوناني عنعنې اکثر اتلان د ارباب الانواعو مقام ته پورته کول. همدارنګه (اریستوفان) شکایت کوي چې (یوریپډیز ) لرغوني پاچایان له برم او حشمت څخه بې برخې کړي دي او د دربارونو جلال او پرتم یې له نظره غورځولی دی. (اریستوفان) د یو محافظه کار کره کتونکي په توګه، پر (یوریپډیز ) باندې انتقاد کوي چې طبقاتي اداب او رسوم یې په نظر کې نه دي ساتلي او د ډرامې کرکټرونه ټول په هماغه ساده او عامیانه ژبه خبرې کوي په داسې حال کې چې د واکمنې طبقې ژبه او د معاشرت اداب د عوامو له ژبې او ادابو سره څرګند توپیر لري. (اریستوفان) زیاتوي چې (یوریپډیز ) د ژوند عادي او معمولي پېښې په خپلو ډرامو کې تمثیل کړي دي او د ټیټې طبقې ناکامه مینې، محرومیتونه او دربه دره ژوند یې د سوژې په توګه انتخاب کړي دي. همدارنګه (اریستوفان) د (اشیل) قهرمان له خولې پرده باندې ایراد نیسي چې ډرامې یې مبتذلې او یو نواخته دي؛ په ډیالوګونو کې یې مغالطې او سفسطې لیدل کېږي او له متناقضو اصولو څخه یې کار اخیستی دی او سربېره پر دې ټولو ، د ډرامو موسیقي یې بېخونده او مبتذله ده او په هغو کې اوازونه یو تر بله سره ګډ شوي او پرېشانه دي.

البتـه کـاملاً طبیعـي ده چې د نـن ورځې د معیـارونو لـه نظـره د (اریسـتوفان) ځینې انتقادونه وارد نه دي، خو که چېرې د مریيتـوب د ټولنې معیارونه (چې د حـاکمې طبقـې کلتـور منعکسـوي) پـه نظـر کې ونیسو پـه رښتیا سـره (یوریپـدیز) د بـادارانو د طبقې ارزښـتونه تر پښو لاندې کړي دي او د مسـلط کلتـور ټـولنیز اړیکـي يې نـه دي تمثیل کړي. لیکن دا سې احتمال شته چې (یوریپدیز) یـا (اوریپیـد) دې په ارادې او اګاهانه ډول دغه ډرامې لیکلې وي او د ټیټې طبقـې مبارزه دې پکې ښودل شوې وي. (یوریپدیز) زیار باسي چې د ارباب الانواعـو مقـام راکښـته کړي او دا سې وښـیي، چې ګویـا هغـوی د انسانانو د سرنوشت په ټاکلو کې لاس نه لري، قهرمانـان او بـاداران له عـادي خلکو سره تو پیر نه لري او محکومه طبقه له ناکامې مینې، رنځونو او کړاوونو سره مخامخ کېږي. حتی کومه موسیقي چې ده د ډرامـې صـحنې تـه ورمعرفـي کـړې ده، د محـافظـه کـارانو لـه ذوق او څکې سره سمون نه خوري.

دا سمه ده چې (اریسـتوفان) یو مترقي کره کتونکی دی، لیکن پـه کره کتنه کې یې له ډېرو اساسي موضوعګانو سـره تمـاس نیـولی دی او ویلای شو چې هغه د کلاسیک نقد یـو غـوره ښـکارندوی دی. د ده په کره کتنـه کـې مضـمون او شـکل دواړه مـنعکس شـوي دي. هغـه پـر لیکـوال بانـدې د خپـل عصـر د متـداولو نورمونـو لـه مخې قضـاوت

کوي او پـه اګاهانـه ډول او فلسـفي انـداز کـې خپـل انتقـاد وړانـدې کوي.

یو زیات شمېر ادبي مورخان په دې عقیده دي، چې د یونـان سـتر فیلسوف او لوی مفکر (ارستو) د کره کتنې موجد دی، ځکـه چې ده د (شعر فـن) (poeties) پـه نامـه د ادبـي کـره کتنـې پـه برخـه کـې یـوه نامتو رساله لیکلې ده، چې لاتراوسه د کـره کتنې پـه بـاب یـو عمـده اثر ګڼل کېږي. ځینې وايي چې دغـه رسـاله د ارسـتو (۳۲۲-۳۸۴ق.م) د کـوم شـاګرد لـه خوا د اسـتاذ د لکچـر لـه مخـې تـدوین شـوې ده او ځینې نـور پـه دې عقیـده دي، چې (ارسـتو) خپـل یادښتونه راغونـډ کـړي وو او ښـايي چـې وروسـته بـه یـې د کتـاب پـه بڼـه اړول. ددغـو توجیهـاتو اصـلي علـت دادی چـې د (پوتیکـا) رسـاله لـه یـوې خـوا نیمګـړې ده (او داسـې احتمـال شـته چـې د رسـالې ځینـې برخـې دې ورکې شوې وي).

او له بلې خوا ځینـې بې ربطه عبارتونـه پـه کـې لیـدل کېـږي (چـې ښايي تحریف، تصرف او یـا زیاتونـه پکـې راغلـي وي) سـره لـه دغـو نیمګړتیـاوو، صـرف نظـر لـه دې چـې (ارسـتو) یـا کـوم شـاګرد تـه منسوب شي د (پویتکس) یا (پوتیکا) رسـاله سـتر تـاریخي اهمیت لري او لومړنی مهم انتقادي اثر ګڼل کېږي. ویـل کېـږي چې تـر ۱۹۲۸ کال پورې ددغسې رسالې (یو زر او پینځه سوه درې اتیا) ترجمې او شرحې په اروپايي ژبو خپرې شوې دي.

په پښتو ژبه دا اثر (کتاب الشعر) په نامه د مولوي محمد اسرافیل له خوا ژباړل شوی او پر ۱۹۵۸ م کال په پېښور کې د پښتو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی.

ادبي مورخانو او کره کتونکو ددې اثر زیاته ستاینه کړې ده، د الماني نامتو کره کتونکی (لیسنګ) وایي چې ((د ارستو د شعر فن رساله د اقلیدس د هندسې په شان غلطي نه لري)). فرانسوي کره کتونکی (برون تېر) لیکي چې ((نن ورځ هم د کره کتنې د فن مسالې هماغه د ارستو د وخت مسالې دي. که څه هم چې ځینې تعبیرونه او اصطلاحات په بله بڼه اړول شوي دي، خو اصلي مطالب او مسالې هماغه دي او حتی کوم ځوابونه چې ارستو ورکړي دي بې تغیره پاتې شوي دي.)) د فرانسې شکاک فیلسوف (پېرل) د فلسفې په قاموس کې د (ارستو) دغه اثر ته دده پر نورو اثارو ترجیح ورکوي. اسپانیایي محقق او کره کتونکی (انتونیولولو) عقیده څرګندوي چې ((د ارستو ذوق د ټولو شاعرانو تر ذوق زیات متین او محکم دی او دی له هر شاعر څخه په دې ښه پوهېږي چې په یو شاعرانه اثر کې کوم شیان لازم او مناسب نه دي.))

سره له دې، ځینو کره کتونکو د (ارستو) پر (پویټکس) باندې انتقادونه هم کړي دي، چې په خپل ځای کې به اشاره ورته وشي. اوس به وګورو چې ددغه اثر عمده مضمون څه شی دی؟ د ارستو (د شعر فن رساله) په دې عبارت پیلېږي: ((زما منظور دا دی چې پخپله

شعر او د هغه بېلابېل ډولونه وڅېړم او د هر يو ډول اساسي کيفيت په نظر کې ونيسم. د يوه ښه نظم د نخشې (Plot) د جوړښت ضروري شرايط او د نظم د تشکيلوونکو برخو شمېر او ماهيت بيان کړم... ))

په دې ترتيب، (ارستو) د شعر د ماهيت، اصولو، ډولونو او اجزاوو په برخه کې مفصل معلومات وړاندې کوي. د دې رسالې سبک ښکلی نه دی او لکه مخکې مو چې وويل ښايي رساله به د يادداشتونو په توګه ليکل شوې وي. تر دې وروسته (ارستو) د هنر په باب يوه بشپړه منسجمه نظريه وړاندې کوي او د هنرونو له جملې څخه پر شعر باندې زيات لنګر اچوي.

په څلورم پاړکي کې وايي چې د شعر د ويلو لپاره دوه علتونه شته: لومړی تقليد او دويم وزن او اهنګ چې ټول انسانان له هغه څخه خوند اخلي.

پروفيسر بچر (Butcher) نامتو ارستو پېژندونکي او د (پويټکس) ژباړونکي د تقليد نظريه داسې شرحه کړې ده:

( د ارستو ) په نظر تقليد د يوې حقيقي مفکورې پر اساس د شيانو او پېښو تقليد ته ويل کېږي. ((حقيقي مفکوره)) يو عمومي مفهوم دی چې ذهن يې له محسوساتو څخه په اتوماتيک ډول تجريدوي. که په ساده ژبه ووايو هغه شيان او پېښې چې انسان يې د حواسو له لارې احساسوي معمولاً نيمګړي او بې ربطه وي خو عقل هغو ته انسجام ورکوي او د هغو ماهيت رابرسېره کوي. د هرې

ځانګړې پدیدې تر شا یو ایډیال شکل شته چې په ناقصه بڼه څرګند یږي. هنرمند دغه نیمګړې حسي پدیدې ته د حقیقي مفکورې جامه وراغوندي او په ایډیال صورت یې انځوروي. پر دې اساس هنر یو ابداعي تقلید دی نه سطحي او تش تقلید.

(ارستو ) په څلورم پاړکي کې لیکي چې د تقلید غریزه په انساني طبیعت کې له کوچنیوالي څخه اغږل شوې ده. د انسان او نورو ژوو ترمنځ یو عمده توپیر دادی چې دی د ټولو ژوندیو مخلوقاتو په نسبت زیاتې پېښې کوي او د همدغو پېښو (تقلید ) په سبب خپل لومړني درسونه زده کوي او له تقلید څخه خوند اخلي. له تجربوي واقعیتونو څخه څرګند یږي چې له یو شمېر شیانو څخه چې مونږ کرکه کوو. که د یوه ماهر مقلد له خوا په ښه توګه تقلید شي له هغه څخه خوند اخلو. نو تقلید د انساني طبیعت غریزه ده، همدارنګه وزن او اهنګ هم غریزه ګڼل کیږي. په پنځم پاړکي کې (ارستو ) د کمیډي، تراژیدي او حماسې په باب بحث کوي. په راتلونکو پاړکیو کې (ارستو ) د نخشې په باره کې په مفصله توګه غږیږي. داسې ښکاري چې په دې بحث کې (ارستو ) د خپل استاد (اپلاتون ) نظریې ته په نامستقیم ډول ځواب ورکوي. د ځینو ادبي مورخانو په عقیده، ارستو (د شعر فن رساله ) د (اپلاتون) په ځواب کې لیکلې ده، بې له دې چې پر خپل استاد باندې مستقیماً حمله وکړي. ځینې نور وایي کېدی شي، چې پر (هومر ) او نورو شاعرانو باندې د

(اپلاتون) بې رحمانه انتقاد دې (ارستو) دې ته لمسولی وي چې د شعر په باب جامع اثر وليکي او د هنر مخصوصاً د شعر د منځته راتلو علتونه او اهداف په مفصله توګه وڅېړي. خو کتاب فقط د (اپلاتون) په ځواب پورې نه دی منحصر.

(اپلاتون) سره له دې چې د عالي ذوق خاوند دی او دده (جمهوريت) نه يو ازې مهم فلسفي اثر دی، بلکې يو ادبي شهکار هم ګڼل کېږي، خو کله چې شاعر د حقيقت له ډګر څخه لرې کېږي او يا دده ساحرانه خبرې د ماشومانو ذهن تخديروي نو پر شاعر باندې راګرځي. لومړی د هغه غاړې ته امېل وراچوي او بيا د خدای پامانۍ لپاره لاس ورغځوي او داسې ورته وايي: هر چېرې چې ځې په مخه دې ښه ! لطفاً زموږ ښار ته بېرته مه راځه. د اپلاتون خپل عبارت داسې دی: ((کوم وخت چې يو مقلد شاعر چې هر ډول تقليد کولای شي موږ ته راشي او پېشنهاد وکړي چې حاضر دی خپل نمايش ورکړي او خپل شعرونه راته ولولي، موږ به د تعظيم لپاره خپل سرونه ورته ټيټ کړو او د يوه خواره، مقدس او نادر موجود په توګه به دده لمانځنه او پرستش وکړو، خو په عين زمان کې به دده په حضور کې عرض وکړو چې زموږ په دولت کې ده ته د اوسېدو اجازه نه ورکول کېږي او قانون ده ته د پاتې کېدو اجازه نه ورکوي. ورپسې به پر ده عطر وپاشو، غاړې ته به يې وړين امېل وروا چوو او بل ښار ته به يې واستوو)). ليکن (ارستو) د شاعر د شړلو او

تبعیدولو پلوی نه دی. (ارستو) تر هر څه دمخه (ګټه ور هنرونه) له (ښکلو هنرونو) څخه بېلوي. د هغه په نظر، (ګټه ور هنرونه) د ژوند مادي اړتیاوې پوره کوي او (ښکلي هنرونه) د خوند او لذت لپاره دي او په عین زمان کې د نفس د تزکیې او د روح د تصفیې لپاره پکارېږي.

د شعر منبع هم انساني غرایز دي. هر ډول هنري اثار د یوه ټاکلي هدف لپاره منځته راځي او د بشري عواطفو له تهذیب او تصفیې سره مرسته کوي. که په شعر کې د تخیل او مبالغې برخې زیاتې دي علت یې دادی چې شاعر ایډیال شکلونه او حقیقي مفکوره په نظر کې نیسي. د (ارستو) په نظر د تراژیدي هدف د روح سپېڅلتیا (Catharsis) ده، چې په انسان کې زړه سوی او د وېرې احساس پیداکوي. دده په نظر، د تراژیدۍ قهرمان باید ډېر متقي او پرهېزګار شخص نه وي ځکه چې شرافتمن کسان باید له کړاوونو او ناکامۍ سره مخامخ نه شي. همدارنګه د تراژیدۍ اتل باید ظالم او شریر کسان هم نه وي، ځکه چې نندارچي باید له ظالمو او بداخلاقو اشخاصو سره مینه پیدا نه کړي او زړه یې پرې ونه سوزي. د تراژیدۍ اتل باید معمولي خلک وي چې د یوې اشتباه په اثر د خوشبختۍ له مانۍ څخه د بدبختۍ کندې ته ورغورځېدلای وي.

سره له دې چې د (یوریپدیز) ډرامې له دې اصل سره سمون نه خوري، خو (ارستو) هغه نه ملامتوي او وایي چې دده اثار د انسان

پر روحیاتو سخته اغېزه کوي او کولای شو چې له نورو څخه يې مستثنی کړو. په پينځه ويشتم پاړکي کې (ارستو د تقليد په برخه کې داسې وايي: ((شاعر چې د نقاش يا بل هنرمند په شان مقلد بلل کېږي؛ بايد شيان هرومرو په دغو درو شکلونو سره تقليد کړي: شيان لکه څنګه چې وو يا دي، شيان لکه څنګه چې د هغه په باره کې خبرې کېږي او يا فکر ته راځي، شيان لکه څنګه چې بايد وي. د افادې عراده ژبه ده، سربېره پر دې، د صحت معيار په هنر او سياست کې يو له بله توپير لري او همدارنګه هغه څه چې په شعر کې رښتيني ګڼل کېږي له هغو شيانو سره چې په نورو هنرونو کې رښتيا بلل کېږي توپير لري.))

په دې ترتيب، موږ ګورو چې د ادب د تيورۍ د ډېرو زياتو بحثونو زړي د (ارستو) په اثارو په تېره (پويتکس) کې راغلي دي. په لويديځ کې (هنر د هنر لپاره) مفکوره او د (کانت) د ښکلا پېژندنې تيوري او داسې نور مهم موضوعات د لومړي ځل لپاره په يوه يا بله بڼه د (ارستو) له خوا طرح شوي دي، چې د هغو تفصيل جلا بحث غواړي.

تر (ارستو) وروسته په کره کتنه کې (لانجينوس) ډېر شهرت لري. کوم کتاب چې ده ته منسوب شوی دی په انګرېزي کې د (On the sublime) په نوم ژباړل شوی دی، (Sublime) لوړ، مافوق، اوچت، برميال او عاليشان ته ويل کېږي يانې هغه اثر چې د

ژبې او فکر په لحاظ لوړ مقام لري. ځيني ادبي مورخان نوموړی اثر (پلوتارک) او يا نورو ليکوالو ته منسوبوي. د کتاب د ليکنې نېټه هم نه ده ثرګنده، خو غالب احتمال دادی چې په دربيمه ميلادي پېړۍ کې به ليکل شوی وي. په هر صورت، د (برميال په باب) کتاب چې هر چا ليکلی وي فعلاً د (لانجينوس) په نامه ختم شوی دی. دغه اثر د ادبي کره کتنې په برخه کې يو عمده اثر ګڼل کېږي. نوموړی اثر تر شپاړسمې پېړۍ پورې چا نه پېژانده او د هغه وخت د ادبياتو په تاريخ کې نه دی ياد شوی.

په ۱۵۵۴م کې (روبرتيلي) دغه مهم اثر خپور کړ او په اووه لسمه پېړۍ کې يې زيات شهرت وموند او په ځينو ادبي محافلو او ټولنو کې د (طلايي کتاب) په نامه مشهور شو. دا اثر د مضمون او روحيې په لحاظ د (ارستو) له (پويټکس) سره توپير لري او په هغه کې زياتره د سبک د لوړوالي، تخيل، ذوق او بلاغت په باب تفصيلات ورکړل شوي دي. د (لانجينوس) په نظر، برميال اثر هغه دی چې مهمې مفکورې، شرافتمندانه عواطف او عالي بيان په کې يوځای شوی وي.

د (لانجينوس) د ليکنې يوه نښکنه داده چې دی په خپل قضاوت کې له قومي تعصب څخه کار نه اخلي. ويل کېږي چې دی په اصل کې د (شام) اوسېدونکی و او د بر عمر يې په (اتن) کې تېر کړی دی. په يوناني او عبراني ژبو يې پوره احاطه درلوده او د کره کتنې په

ترخ کې له یوناني او عبراني اثارو څخه شواهد او مثالونه راوړي. لـه (ارستو) څخه تر (لانجینوس) پورې په شپږو پېړیو کې ډېر زیات کره کتونکي تېر شوي دي، خو د ادبي مورخانو په نظر دوی دواړه (لومړنی او وروستنی) تر ټولو زیات پاخه کره کتونکي دي.] (**۱۵**: **۱۹-۳۰**).

## ۲- کره کتنه په لویدیځ کې:

تر لرغوني یونان وروسته په لویدیځ کې د کره کتنې بل مهم ځای پخوانی روم دی. د روم امپراتورۍ نه یوازې په سیاسي، اقتصادي او پوځي ډګر کې ډېره مطرح وه، بلکې د دې امپراتورۍ په لمن کې د ادبیاتو د پنځونې لپاره هم ډېر ښه شرایط برابر وو.

[د روم نامتو شاعر (ورجیل) د رومیانو په باب ویلي دي چې دا قوم د هنر لپاره نه دی پیدا شوی، بلکې د جګړې لپاره پیدا شوی دی. د (ورجیل) دا خبره دده د نیکونو په باره کې رښتیا وه خو وروسته رومیانو تر یوې اندازې هنر ته مخه کړه او مخصوصاً د خطابې په فن کې یې ترقي وکړه. کله چې د یونان فلسفه او ادبیات په روم کې خپاره شول، رومیانو له ادبیاتو او تاریخ سره مینه وښوده او د (ورجیل)، (هوربس)، (ناسیتوس)، (مارکوس)، (اورلیوس)، او (دانتې) په شان لیکوال او شاعران یې د هنر په ډګر کې پلي کړل. د کره کتنې په برخه کې د هوریس (Horace) د

شعر فن (Ars poctick) پوره شهرت لري. (شکسپير) د انګلستان نامتو ډرامه ليکونکی په (تيوس) کې د (جيرون) له خولې دا سې وايي: ((اوه، دا د هوريس شعر دی. زما ښه په ياد دي، ما ډېر مخکې هغه په ګرامر کې لوستلی و.))

له دې پورتني عبارت څخه څرګند ېږي، چې پخوانيو ليکوالو به د ګرامر او انشا په موضوعاتو کې د (هوريس) شعرونه د استناد په توګه راوړل. د (هوريس) ځينې فقرې لا تراوسه په کره کتنه کې مستعملې دي، لکه: ((شعر د نقاشۍ په شان دی.)) ((شعر د ګټې لپاره؛ شعر د خوند لپاره)) او داسې نور. (د شعر فن) کې (هوريس) لومړی د يووالي پر اهميت باندې خبرې کوي او له شاعر څخه غواړي چې د عمل، شکل او هدف يووالی په نظر کې ونيسي.

دده په نظر ساده ګي، تناسب او يووالی د شعر د ماني غوره ستنې دي. د شعر د ژبې په باب وايي چې شاعرانو ته د نويو لغتونو د استعمال جواز شته هماغسې چې موسمونه بدلېږي د ژبې لغات هم تغيير کوي او نوې کلمې د زړو ځای نيسي. د (هوريس) په نظر هر ډول شعر له مضمون سره تناسب، وزن او بحر ته اړه لري. (هومر) چې د اتلانو د کارنامو د ښودلو لپاره کوم بحر انتخاب کړی دی له موضوع سره پوره متناسب دی. د هنري اثارو کرکټرونه بايد د حال له مقتضې سره سم خبرې وکړي. شعر دوه ډوله هدفونه لري: ګټه او خوند او شاعران بايد دا دواړه هدفونه تعقيب کړي.

د کتاب په پای کې پر ځینو شعري نیمګړتیاوو انتقاد شوی دی. دا پورتنۍ جملې یوازې د نمونې په توګه راوړل شوې او په هېڅ صورت د کتاب لنډیز نه ګڼل کېږي او حتی د دې ادعا هم نه شو کولای چې د کتاب غوره او چاڼ شوې برخې را اقتباس شوې دي.

د لرغونو وختونو له نورو نامتو کره کتونکو څخه یوناني لیکوال (پلوتارک) او (لوسیان) دي او د لاتین لیکوالو له ډلې څخه (سیسرو)، (سنیکا)، (پیترونیوس) او نور دي.

د یو زیات شمېر مورخانو په نظر منځنۍ پېړۍ د روم د امپراتورۍ له سقوط یا نې پینځمې پېړۍ څخه پیل کېږي او د څوارلسمې پېړۍ تر نیمایي یانې د رنسانس تر دورې پورې دوام کوي. په بله ژبه، د مریبتوب د اجتماعي- اقتصادي فرماسیون له زوال څخه د کپیتالیزم د زړي تر زرغونېدو پورې په لویدیځه اروپا کې فیوډالي دورې ته منځنۍ پېړۍ ویل کېږي. په دې دوره کې فلسفې سقوط وکړ او د ادبیاتو په ساحې کې کوم عمده اثار منځته رانغلل. لویدیځه اروپا په دې عصر کې د لرغوني یونان او روم له فرهنګي میراث څخه ناخبره وه او ټول علوم او فنون د کلیسا په سیورې کې واقع شوي وو. د دې وخت ادبي اثارو یوازې تعلیمي بڼه درلوده او د مذهبي نصوصو تشریح ته وقف شوي وو. سره له دې په منځنیو پېړیو کې په اسپانیه کې د (ال سید) حماسه، په فرانسه کې

د (شاتون دورولان) اثر، په جرمني کې د (نیبلونګیلید ) منظومه او د (دانتې) (رباني کمیدي) نامتو اثار بلل کېږي.

د دې وخت په کره کتنه کې اکثر بحثونه د مجاز، استعارې، د بلاغت د اصولو او بدیعي صنایعو په باره کې دي. د منځنیو پېړیو په اخر کې ایټالوي شاعر (دانتې ) د کره کتنې په برخه کې د عامیانه بلاغت (Devulgari Elo qucntia ) په نامه یو مشهور اثر وکښل. (دانتې) د منځنیو پېړیو یوه روښانه څېره او ستر ویاړ ګڼل کېږي. ده د لومړي ځل لپاره (کمیدیا ) په نامه اشعار د ایټالیې په محلي ژبه وویل او دا یې ثابته کړه، چې له یوناني او لاتیني ژبو پرته په محلي ژبو هم فصیح او بلیغ شعرونه ویل کېدی شي. د (دانتې) د (کمیدیا ) اثر وروسته د (رباني کمیدي) په نامه شهرت وموند. (دانتې) د کره کتنې په برخه کې د (عامیانه بلاغت) اثر په لاتیني لیکلی دی، خو په هغه کې یې له عامیانه یا محلي ژبې څخه دفاع کړې ده او په هغه کې یې ویلي دي چې د شعر لپاره د خلکو ژبه ډېره مناسبه، پخه او طبیعي ده. همدارنګه (دانتې) په دې اثر کې د وینا د ادابو، تقلید، سبک، د شعر ماهیت او نورو مربوطو موضوعګانو په باب مفصل بحثونه کړي دي.

## ۳- کره کتنه په ختیځ کې:

د اثارو د قدامت له مخې د ختیځ په انډول په لویدیځ کې کره کتنیز اثار د مخه تو کېدلي، خو د اثارو د څرنګوالي او څومره والي له پلوه ختیځ هم تر لویدیځه کم نه دی. دلته هم په بېلابېلو سیمو او ختونو کې د اسې ادبي، علمي، ټولنیز او کره کتنیز اثار رامنځته شوي، چې د نړۍ فکري لوري ته یې بدلون ورکړی او د ټولې نړۍ ګډه پانګه ګڼل کېږي.

[د اسلام په صدر کې، کله چې به اعراب د حج د فریضې د اداکولو لپاره معظمې مکې ته راتلل، نو د مختلفو قبایلو خلک به د شلو ورځو لپاره د (عکاظ) په سارا کې سره راغونډېدل. دلته به یو لوی بازار جوړ شو. له یوې خوا به په دې ځای کې د سوداګرۍ بازار ګرم و؛ له بلې خوا به دلته شعرونه لوستل کېدل او خطابې به ورکول کېدې.

ډېر ځله د مشاعرې په ترخ کې مناقشې او شخړې پیل کېدې او بیا به د ښه شعر د معلومولو لپاره یو حکم یا قاضي ټاکل کېده. د دغو قاضیانو په ډله کې (نابغه ذبیاني) چې پخپله هم نامتو شاعر و، ډېر شهرت لري. کوم شعر به چې د (نابغه) له خوا د ښه شعر په نامه انتخاب شو هغه به یې په کعبه کې ځړاوه او په عربو کې به یې شهرت وموند. سره له دې د اسلام په اوایلو کې شعر ته پاملرنه نه کېده، ځکه چې په هغه وخت کې اکثرو شعرونو د ویاړنې او مفاخرې بڼه درلوده او د قبایلو ترمنځ به یې تفرقې او اختلافونه

پیدا کول. د امویانو په دوره کې چې زیات ملکونه فتح شول او زیات ثروت لاس ته راغی، شعر او موسیقۍ ته زیاته پاملرنه وشوه او د دربارونو برم او شوکت زیات شو. په دې وخت کې له شعر څخه زیاتره د تبلیغ او مداحۍ لپاره ګټه اخیستل کېده. اموي خلیفه (عبدالملک بن مروان) د شعر په ارزیابۍ کې پوره مهارت درلود. کله چې به دده په دربار کې شعر ولوستل شو، ده به د شعر ښېګڼې او نیمګړتیاوې په ګوته کولې. یو ځلې (ذوالرمه) دده په حضور کې قصیده ولوسته، چې په هغې کې یې د خلیفه ستاینه کړې وه. (عبدالملک بن مروان) ورته وویل چې په دې شعر کې تا د خپل اوښ ډېره ستاینه کړې ده. لطفاً اوښ ته وو ایه چې تا ته انعام درکړي. همدارنګه (سلولي) چې په خپله قصیده کې یې د ځان ستاینه کړې وه، خپل شعر یې (عبدالملک بن مروان) ته ولوست. خلیفه وویل: ((والله، چې تا بې له خپل ځانه د بل چا مدح نه ده کړې)) ویل کېږي چې (مامون الرشید) هم په نقد کې پوره لاس درلود، یو ځلي (مروان بن ابي خفصه) دده په مدح کې وویل چې نور خلک په دنیاوي چارو بوخت دي او خلیفه تل د دین په کار بوخت دی. (مامون) په ټوکو ورته وویل چې تا خو له مانه بوډۍ جوړه کړې ده چې شپه او ورځ به تسپې اړوم، که زه دا کار وکړم نو د مملکت چارې به څنګه سرته ورسوم، بهتره به وه چې دا قصیده دې د (عمر بن عبدالعزیز) غوندې پرهېزګار شخصیت په باره کې ویلې وای نه زما په باره کې.

په هر صورت د کره کتنې په باب دغه ډول ډېر زيات روايتونه شته، خو د هغو کسانو له جملې څخه چې په دې برخه کې يې اثار ليکلي دي ابو عبدالله محمد بن سلام جمحي، ابن قتيبه دينوري، جاحظ، ابو العباس احمد بن ثعلب، قدامه بن جعفر، ابو القاسم حسن بن بشر امدي، عبيدي، قاضي جرجاني، قاضي ابوبکر باقلايي، عبدالقاهر جرجاني، ابن اثير او نور دي. ويل کېږي چې په عربي ژبه کې د (جمحي) کتاب (طبقات الشعراء) ظاهراً لومړنی اثر دی چې د کره کتنې په باب ليکل شوی دی. (جمحي) د بصرې او سېدونکی و. ده په (طبقات الشعراء) کې د جاهليت او اسلام د دورو شاعران پر لسو (طبقو) وېشلي دي او د هرې طبقې د اثارو خواص يې ښودلي دي. په دې اثر کې يې د لغوي او تاريخي دلايلو پر اساس د جاهليت د دورې اصلي او مجعول شعرونه يو له بله بېل کړي دي. (ابن قتيبه دينوري) د (جمحي) په پيروي د (الشعروالشعراء) په نامه کتاب ليکلی دی او په هغه کې يې د اشعارو د خوښولو معيارونه شرح کړي دي. (جاحظ) په خپل اثر (البيان والتبيين) کې د کره کتنې او بلاغت عمده پرنسيپونه بيان کړي دي او د ځينو په عقيده دی د (بيان) موسس دی. ده د مضمون او شکل په باب جالب بحثونه کړي دي او د لرغونو او معاصرو شاعرانو شعرونه يې ارزيابي کړي دي. د (مامون) په وخت کې د يوناني اثارو تر ترجمه کېدو وروسته په کره کتنه کې يو څه تحول راغی. (متي بن يونس) د (ارستو) مشهور اثر

(پویټکس=بوطیقا) په عربي واړاوه. که څه هم په دې ترجمه کې ځینې نیمګړتیاوې هم لیدل کېږي، لکه کمیدي او تراژیدي چې په مدح او هجو ژباړل شوې دي. سره له دې عربي پوهانو ته ددې زمینه برابره شوه چې د تخیل نیلی په پراخ ډګر کې وځغلوي. (قدامه بن جعفر) چې په (۳۳۷ق) کې مړ شوی دی په خپل اثر (نقد الشعر) کې زیار وایست چې عربي نقد له یوناني نقد سره عیار کړي. په دې کتاب کې د شعر د ماهیت په باره کې تیوریکي بحثونه لیدل کېږي او لیکوال له دې ټکي څخه ملاتړ کوي چې په شعر کې تناقض، مبالغه او حتی غلو عیب نه ګڼل کېږي. د څلورمې هجري قمري پېړۍ په وروستیو وختونو کې د شاعرانو ترمنځ مقایسه او پرتلنه د بحث مهمه موضوع وګرځېده. د متنبي شاعر پر اشعارو باندې ډېر بحثونه وشول او کتابونه پرې ولیکل شول. د (قاضي جرجاني) کتاب (الوساطة بین المتنبي و خصومه) په دې باب ډېر عادلانه فیصله ګڼل کېږي. قاضي صاحب په خپل قضاوت کې ښو ته ښه او بدو ته بد ویلي دي. په داسې حال کې چې نورو کره کتونکو بې یوه خوا نیوله. تر دې وروسته د کره کتنې په برخه کې ډېر اثار لیکل شوي دي، چې د هغو له جملې نه د (ابوالفرج اصفهاني) کتاب (اغاني) چې په (سلو ټوکونو) کې لیکل شوی دی د یادونې وړ دی. دا کتاب په حقیقت کې د شعر او ادب دایرة المعارف ګڼل کېږي. یو بل نامتو اثر (الکامل فی التاریخ) د (ابن اثیر) تالیف دی. ویل

کېږي چې دا کتاب د لطایفو او د قایقو په لحاظ بې ساری دی، خو ځرنګه چې مولف د خپل ځان ډېره ستاینه په کې کړې ده، نو ځینو ته یې زور ورکړی دی او پر ده باندې یې بې رحمانه انتقادونه کړي دي. د ادبي مورخانو په عقیده تر (ابن اثیر) وروسته تر معاصرو وختونو پورې په عربي نړۍ کې کوم نامتو کره کتونکي سر نه دی راپورته کړی.](۱۲: ۱۲۱-۱۲۴).

د دوی ترڅنګ، نابغه، دوبیاني، طرفه بن العبد، عمر بن ابي ربیعه، فرزدق، جریر، اضطل، ابو عمرو بن العلا، مفضل ضبي، خلف احمر، اصمعي، مبرد، ابن معسز، قدامه، ابن عبدربه، ابوعلي قالي، ابو الفبرح اصفهاني، صولي، آمدي، قاضي جرجاني، ابومنصور شعالبي، ابوهلال عسکري، ابو العلا مصري، ابن رشیق، ابن الاثیر، ابن خلدون، ابن خلکان، صفدي، قلقشندي، ضفاجي، بدیعي او نور هغه لیکوال او نامتو کره کتونکي دي، چې په عربو کې د جاهلیت له دورې څخه رانیولې د اسلامي دورې په لومړیو وختونو، (اموي، عباسي حاکمیت پر وختونو) د عربو په بېلابېلو سیمو، حجاز، عراق او شام کې ان د عربو تر ویښتایي پېر پورې یې د کره کتنې په برخه کې په سلګونو اثار لیکلي او د عربي ادب په سمون، پرمختیا، بریالیتوب او بډاینه کې یې خپله خپله ونډه اخیستې ده.

[په دري ژبه کې ظاهراً (ترجمان البلاغه) د کره کتنې په برخه کې لومړنی اثر دی، چې تر څه وخته پورې د (فرخي) اثر ګڼل کېده خو اوس ثابته شوه چې دغه اثر (محمدبن عمر الرادویانی) لیکلی دی. په دې اثر کې د بلاغت او ادبي صنايعو په باب مفصله څېړنه راغلې ده. په همدې وخت کې (رشیدالدین وطواط) د کره کتنې او بدیع د مسایلو په هکله د (حدایق السحر فی دقایق الشعر) په نامه یو مهم اثر لیکلی دی. په دې اثر کې (وطواط) پر ځینو شعرونو باندې انتقاد کوي او د ځینو ښېګڼې رابرسېره کوي. د مثال په توګه دی پر یو شاعر باندې انتقاد کوي چې ولې یې (انګار) د (مشکو له دریاب) سره چې طلایي وړانګې خپروي، تشبیه کړی دی، نه د مشکو دریاب شته او نه طلایي وړانګې لري. د (نظامي عروضي) (چهار مقاله) هم د شعر او ادب په باب ډېر دقایق څېړلي دي. په تېره د شعر د تعریف او اهدافو په باره کې یې جالب ټکي وړاندې کړي دي. د (شمس قیس رازي) اثر (المعجم فی معاییر اشعار العجم) هم ډېر په زړ پوري انتقادونه لري او د ځینو شاعرانو د وینا نیمګړتیاوې یې ښودلې دي. د ځینو په نظر د کره کتنې په باب تر هغه وخته پورې ددې په شان بل اثر نه دی لیکل شوی. په دري ژبه کې ځینې نور مهم انتقادي اثار، لکه: آتشکده اذر، هفت اقلیم، مراة الخیال، ریاض الشعراء، سفینه خوشګو، تذکره خزین او نور دي.](**۱۵: ۳۵**-۴۰).

پر پورتنیو کره کتونکو سربېره قاضي حمید الدین بلخي، بهاالدین بغدادي، منتجب الدین حضرتي، عنصر المعالي، محمدعوضي، دولتشاه، امیرخسرو، شېرخان لودي، غلام علي ازاد، خان ارزو او نورو د کره کتنې په برخه کې اثار لیکلي او په دې برخه کې یې په بېلابېلو وختونو کې ډېر کار کړی دی.

طبیعي ده چې په لویدیځ او ختیځ کې د کره کتنې په هکله له رنسانس څخه بیا تر نن ورځې پورې په زرګونو کتابونه خپاره شوي دي چې د هغو ټولو تفصیل ځانته جلا دایرة المعارف غواړي.] او په یوه لیکنه، کتابګوټي او ان څو کتابونو کې نه ځایېږي. په دریم څپرکي یانې د کره کتنې د پاینښت په برخه کې به ځینو ته اشاره وشي.

# د دویم څپرکي لنډیز

ادبپوهان په دې نظر دي، چېرته چې ادبیات دي، کره کتنه هم هلته پیدا کېږي. د لومړني کره کتونکي د پېژندلو په باب د ادبي مورخانو ترمنځ اختلافات لیدل کېږي. د ځینو په عقیده کره کتنه په لرغوني یونان کې تر میلاد شپږ پېړۍ مخکې منځته راغلې ده. وایي چې (زنیوفنیز) او (هراکلیتس) یوناني فیلسوفانو به د نامتو شاعر (هومر) پر شعرونو باندې اخلاقي ایرادونه نیول او نورو له (هومر) څخه دفاع کوله. په دې ترتیب په لرغوني یونان کې د مریي ساتنې په اجتماعي- اقتصادي فورماسیون کې د کره کتنې زړی زرغون شو او ورو ورو یې وده وکړه.

(پیزمیسترات)، (فیلتیاس)، (ارستوفان)، (اپلاتون)، (ارستو)، (لانجینوس) او ځینې نور د لرغوني یونان لومړني او مخکښ کره کتونکي دي. دوی د کره کتنې په برخه کې نظري او عملي کارونه ترسره کړي او تر دوی وروسته د نړۍ ګڼ شمېر کره کتونکو د دوی نظریات پسې تعقیب کړي او شنلي دي.

تر لرغوني یونان وروسته په لویدیځ کې د کره کتنې بل مهم ځای پخوانی روم دی. د روم امپراتوري نه یوازې په سیاسي، اقتصادي

او پوځي ډګر کې ډېره مطرح وه، بلکې د دې امپراتورۍ په لمن کې د ادبیاتو د پنځونې لپاره ډېر ښه شرایط برابر وو.

په روم کې د کره کتنې په برخه کې د (هوریس) د (شعر فن) ډېر شهرت لري. په دې اثر کې (هوریس) لومړی د یووالي پر اهمیت باندې خبرې کوي او له شاعر څخه غواړي چې د عمل، شکل او هدف یو والی په نظر کې ونیسي. دده په نظر ساده ګي، تناسب او یووالی د شعر د ماڼۍ ستنې دي.

(مسیرو)، (سنیکا) او (پیترونیوس) او نور د لرغوني روم له مطرح کره کتونکو څخه دي.

د منځنیو پېړیو په بهیر کې بیا تر رنسانس پورې مهال کې فلسفې او علم سقوط وکړ او د ادبیاتو په ساحې کې کوم عمده اثار منځته رانغلل، که څه هم ځینې اثار رامنځته شول، لکه په اسپانیه کې د (ال سید) حماسه، په فرانسه کې د (شاتون دورلان) اثر، په جرمني کې د (نیبلونګیلید) منظومه او د (دانتې) (رباني کمیدي) نامتو اثار بلل کېږي.

ددې وخت په کره کتنه کې اکثره بحثونه د مجاز، استعارې، د بلاغت د اصولو او بدیعي، صنایعو په باره کې دي. د منځنیو پېړیو په اخر کې ایټالوي شاعر (دانتې) د کره کتنې په برخه کې د (عامیانه بلاغت) په نامه یو مشهور اثر وکېښ.

د اثارو د قدامت لـه مخې د ختیځ پـه انډول پـه لویدیځ کې کره کتنیز اثـار د مخـه ټوکېـدلي دي، خو د اثـارو د څرنګـوالي او څومره والي له پلوه ختیځ هم تر لویدیځه کم نه دی.

د اسلام په صدر کې، کله چې به اعراب د حج د فریضې د اداکولو لپاره معظمې مکې تـه راتلل، نـو د مختلفو قبایلو خلک بـه د شلو ورځو لپاره د (عکاظ) په سارا کې سره راغونډېدل. دلتـه بـه یو لـوی بازار جوړ شو. له یوې خوا به په دې ځای کې د سوداګرۍ بـازار ګرم و، لـه بلې خوا بـه دلتـه شعرونه لوستل کېدل او خطابې بـه ورکـول کېدې.

ډېر ځله د شاعرۍ په ترخ کې مناقشې او شخړې پیل کېدې او بیـا بـه د ښه شعر د معلومولو لپاره یو حکم یا قاضي ټاکل کېده. د دغـو قاضیانو پـه ډله کې (نابغه ذبیاني) چې پخپله هم نامتو شاعر و، ډېر شهرت لري.

اموي خلیفه (عبد الملک بن مروان) د شعر پـه ارزیابۍ کې پوره مهارت درلود. (مامون الرشید) هم په نقد کې پوره لاس درلود.

هغو کسانو چې د کره کتنې په برخه کې یې اثـار لیکلي دي، ابـو عبـد الله محمـد بن سـلام جمحـي، ابـن قتیبـه دینـوري، جـاحظ، ابو العباس احمد بن ثعلب، قدامه بن جعفر او نور دي.

په دري ژبه کې ظاهراً (ترجمان البلاغه) د کره کتنې پـه برخه کې لومړنی اثر ګڼل کېږي.

# د دویم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-د کره کتنې د پیدا ښت په باب د پوهانو ترمنځ اختلاف تشریح کړئ؟

۲-د کره کتنې لومړنۍ نښې نښانې او عملي بېلګې په کوم ځای کې څرګندې شوې دي؟

۳-کومو پوهانو په لرغوني یونان کې د کره کتنې لومړني اثار ولیکل؟

۴-د ارستو او اپلاتون د کره کتنیزو نظریاتو ترمنځ اختلاف واضح کړئ؟

۵-په لرغوني روم کې کره کتنه څنګه او د چا له خوا رامنځته شوه؟

۶-په عربي نړۍ کې کومو لیکوالو کره کتنې ته ډېر کار کړی دی؟

۷-د فارسي ادب نامتو کره کتونکي څوک دي او کوم اثار یې لیکلي دي؟

۸-کره کتنې په لرغونې دوره کې په ادبیاتو کې کوم تحول راوست؟

۹-ستاسو په نظر په لرغونې دوره کې کره کتنه په سیستماتیک ډول مطرح وه که نه؟

۱۰-لرغونې کره کتنه د هغې دورې د ادبیاتو له تولیز حجم سره معادله وه تشریح یې کړئ؟

## سپارښتنې

- استاد دې له محصلینو وغواړي: د لرغونې کره کتنې، د هغې د ګټې او جانبي عوارضو په باب خپل نظر څرګند کړي.
- هر محصل دې د لرغونې دورې د یوه کره کتونکي نظریات تحلیل او وارزوي.

# دریم څپرکی

## د کره کتنې پایښت

لکه څنګه چې مو په لویدیځ او ختیځ کې د کره کتنې پر تاریخي شالید لنډه رڼا واچوله او د هغې له لومړنیو مراحلو خبر شو. اوس غواړو د کره کتنې پر دوام او پایښت څه ناڅه رڼا واچوو. دا برخه هم غواړو پر دوو برخو وویشو؛ لومړی به په لویدیځ کې د کره کتنې پر دوام، پایښت او څرنګوالي خبرې وکړو او بیا به په ختیځ کې د هغې پر څرنګوالي لنډه رڼا واچوو.

## الف-کره کتنه په لویدیځ کې:

تر میلاد مخکې او وروسته څو پېړیو کې کره کتنې په نړۍ، په تېره بیا په یونان، روم او د لویدیزې نړۍ په ځینو نورو برخو کې یو ښه طلایي پړاو تېر کړ. دې پړاو نږدې نیمه زریزه دوام وکړ، خو کله چې په غربي نړۍ کې مذهبي افکارو او یا له هغو څخه افراطي تعبیرونو، د ټولنې بېلابېلې خواوې تر اغېز او انحصار لاندې راوستې، نو د کره کتنې غړ هم چوپ غوندې شو.

د علمي او مذهبي افکارو ترمنځ ټکر او د مذهبي عناصرو مطلق واک ددې سبب شو چې نږدې یوه زریزه، ژوند په ډېرو ډګرونو کې سالمه وده ونه کړي. ادبیات او کره کتنه هم له دې اغېزو څخه لرې پاتې نه شول. په دې موده کې هغه شان کار، ونه شو چې تر میلاده دمخه او وروسته څو پېړیو کې شوی و. دې حالت ان تر منځنیو پېړیو او د رنسانس یا نویوالي تر دورې پورې دوام وموند، کله چې پر غربي ټولنې حاکم مذهبي جریان خپل واک وځواک له لاسه ورکړ، نو ورو ورو په دې برخه کې د پرمختګ او نوښت نوي څرکونه ولګېدل. لکه څنګه چې مو په لرغونې دوره کې ورته اشاره وکړه؛ په یونان او روم کې د کره کتنې موثر جریانونه رامنځته شوي وو او ډېره فرهنګي شتمني راټوله شوې وه. ((د لرغوني یونان او روم دا فرهنګي شتمني یوازې په هغو سیمو کې محدوده پاتې نه شوه، د هغو تاثیرات نورو سیمو ته هم ورسېدل، په تېره بیا په کره کتنه کې

دا تاثیرات ډېر محسوس او څرګند وو. بېلابېلو اروپايي هېوادونو د منځنيو پېړيو له پيل څخه دا تاثيرات راخپل کړل، يو زيات شمېر شاعرانو او ليکوالو، د ليکوالۍ ترڅنګ کره کتنې ته هم مخه کړه.

په زياتو اروپايي هېوادونو او ژبو کې د (کريتک- critic) او (کريتيسيزم- criticism) اصطلاح وکارېدله، د رنسانس په دوره کې چې اروپا په علمي ډګر کې نوې برياوې ترلاسه کولې، د (کريتکوس) نومونه په خپلې پخوانۍ مانا وکارېدله، پر (۱۴۹۲م) کال د (پولي زيانو- poliziano) په نوم يو ايتالوي عالم څرګنده کړه، چې پخوانيو ((ګراماتيکو سانو)) صلاحيت درلود چې په ښه ډول د اثارو کره کتنه وکړي او هغوی يې د (کريتکوس) په نامه نومولي وو. په همدې دوره کې (ګراماتيکوس)، (لارښود)، (کريتکوس)، (کره کتونکی) او (فيلولوګ) (ژبپوه) نومونې تولې د يو بل پرځای کارېدلې. وروسته بيا (هيومانيستاتو) (بشرپالو) د (کريتک) او (کرتسيزم) نومونې په ځانګړي ډول د لرغونو متونو د سمون او کره کولو په مانا وکارولې. لکه څنګه چې د اوولسمې پېړۍ د ليکوالو له ډلې څخه د (کاسپرشوپ- kaspar schoppe) په نوم يو ليکوال څرګنده کړه، چې د (کريتک) دنده يوازې د ليکوالو د اثارو سمون او کره کول دي. (کرتيزم) يې د اروا پوهنې له اساساتو پيل کړ. په دې ډول په نورو اروپايي هېوادونو کې له هغې جملې څخه په ايتاليا او نورو کې د (کرتسيزم) نومونه د هغوی له ژبنيو

غوښتنو سره سمه وکارېدله. تر نولسمې پېړۍ دا کلمه په انفرادي ډول د ځينو ليکوالو او وروسته په ډله ييز ډول د زياتو ليکوالو له خوا وکارېدله.

په المان کې د (کانت) (۱۷۹۰) د اثارو په يوه عبارت کې د (Kriticism) اصطلاح وکارېدله، (شلنګ) بيا د (کرتسيزم) اصطلاح پر (۱۷۹۲م) کال په فلسفي مفهوم وکاروله.

(جاکوبي Jacobi) پر (۱۸۰۱م) کال، (هيګل) پر (۱۸۱۴م) کال د (kriticismus) اصطلاح د فلسفې په برخه کې د يوه خاص مفهوم لپاره وکاروله.

د نولسمې پېړۍ په وروستيو کې (الوس ريل Alois Riehl) ددې نومونې پر کارونې لاس پورې کړ.

(لسينګ، هردر او شيګل) هر يو خپل ځان ته (کرتيک) وايه. (شيګل او آدام مولر Adom muller) ادبي کره کتنې ته زياته پاملرنه وکړه.

د رنسانس دوره په حقيقت کې هغه دوره ده چې اروپايي ټولنه يې له ډېرو سياسي، ټولنيزو او فرهنګي بدلونونو سره مخ کړه او يو ځل بيا د بروژوازۍ دې نوي فرهنګ اروپايي ټولنه د يوناني فرهنګ او علم خواته کش کړه. په لرغوني ادب کې د بشرپالو څېړنې او هغه فکري او صنعتي اصطلاحات چې په دې وخت کې رامنځته شول،

ددې دورې د مفکرينو فکر يې د ازاد تفکر لوري ته بوته، پر ټولنيزو اخلاقو او نورو برخو بيا کتنه وشوه، په علمي ډګر کې هم تجربه يې حکمت ته ډېر پام وشو. ايټاليايي هنرمندانو لکه (ليوناردو داونچي، ميکانجلو او رافايل) د ذوق او ښکلا ډېره پالنه وکړه، همدارنګه بشرپالو هم د رنسانس له پوهې سره سم نوې کره کتنه رامنځته کړه، په تېره بيا د لغوي او متني کره کتنې بنسټ يې کېښود، نه يوازې (وارچي، کاستل او ترو) د ايټاليا مخورو د شعر او هنر په باب د نړيوالو پوهانو نظريات وڅېړل، بلکې هالنډي (ارسموس) او نورو هم کره کتنې او د متنونو څېړنې ته ډېره پاملرنه وکړه، همدا کره کتنه او څېړنه ددې سبب شوه چې د اروپا کلاسيک ادبيات ډېر مثمر شي او د هغو په لمن کې د (موليير، کرني، راسين، شکسپير، داديدن) او نورو په شان لوی ليکوال راوټوکېږي او نوميالي شي. دې ادبياتو په حقيقت کې د روم او يونان له فرهنګي شتمنيو الهام اخيسته او د رنسانس دورې د نوښتګرو هلو ځلو ثمره وه.

په هغه پړاو کې چې (فرانس بېکن) د (ارستو) له تفکر څخه د غربي نړۍ د ازادۍ هڅه وکړه، د رنسانس تر تاثير لاندې کلاسيک ادب لا هم د ارستو د (شعر فن) او دده نورو تفکراتو ته د تعجب په سترګه کتل. ددې دورې کره کتنه لا هم د رنسانس پر لاره روانه وه، د (بېکن او دکارت) نظرياتو لا پرې کوم اغېز نه و کړی. په فرانسه کې

ددې پړاو نومیالی کره کتونکی (بوالو ) و. دی د (لافونتین، اسکین او مولیر ) په شان یو ښه شاعر هم و. هغه پر پخوانیو قواعدو ، په تېره بیا د (ارستو ) (د شعر فن ) باندې ټینګار کاوه او استدلال یې کاوه، چې دا کار ځکه باید عملي کړو چې د ارستو اصول او قواعد له عقل او منطق سره موافق دي. هغه داسې ګڼله چې په هنر کې د پخوانیو پوهانو د لارې څارنه کولای شي، موږ حقیقت او ښکلا ته ورسوي. د پخوانیو پوهانو د لارې د تعقیب سپارښتنه رومي شاعر (موراس ) هم کوله.

په انګلستان کې په (بوالو ) پسې، (الکساندر پوپ ) هم ددې نظریې ملاتړ وکړ او د کره کتنې په باب یې په یوه منظومه رساله کې خپل نظر څرګند کړ. وروستی سړی چې د پخوانیو پوهانو د ذوق له پلوه، څخه یې ګټه پورته کړه هغه (ګوتشد ) الماني و.

ده د فرانسوي ادب ځانګړتیا ستایله. دی د (لایپ نیتس وولف ) د افکارو تر اغېز لاندې و. د شعر او خطابې هنر په باب یې یو کتابګوټی هم ولیکه. (ګوتشد ) په دې نظر و ؛ چې په شعر او ننداره کې باید له نامعقولو او ناباوره شیانو څخه ځان لرې کړو او حقیقت ته باید مخه کړو. په ډاډ سره ویلای شو چې په دې برخه کې د (بوالو ) نظریاتو پر ده اغېز کړی و ، د هغه نظریاتو جنجالونه راوټوکول او د پخوانیو او نوښتپالو ترمنځ د ناموافقو نظرونو له څرګندېدو سره سره، ورو ورو نوې پوهې د ادب د خاوندانو پر اثارو او افکارو

خپل اغېز وښنده. په اتلسمه پېړۍ کې پر دوديزې روزنې ټينګار عملي بڼه خپله نه کړه او د فرانسې انقلاب ته تر نږدې وختونو پورې دې فکر پر شدت سره دوام پيدا کړ. په دې دوره کې د اروپا د پوهانو نظريات په کره کتنه کې د نويو افکارو د ټوکېدو سبب شول. د ساري په توګه د (تامس هابز، جان لاک او کندياک) د نظرياتو پر بنسټ، زياتره پر حس او تجربې ډډه ولګول شوه، د (لايب نيتس او د کارت) د نظرياتو له مخې عقل ته ډېره پاملرنه وشوه او د ايټالوي کره کتونکي (ويکو) له ليدلوري بيا د ښکلا پوهنې قضاوت ته ډېر ارزښت ورکړ شو. دی پوه شو چې دا ډول قضاوت يو ډول پېژندنه ده چې له استدلالي معرفت او تجربه يي معرفت سره توپير لري او د هرې ټولنې هنر نه شي کولای ښکلو قضاوتونو او دوديزو طريقو ته تسليم شي. البته ددې نظر پر وړاندې مخالفتونه پيدا شول. (ولتر) ددې دورې په ادبياتو کې د مبارزې رنګ ورزيات کړ، سربېره پر دې يې د روښنفکرۍ دورې له ژوندون سره د هنر اړيکې ټينګ کړل. (ديدرو) کره کتنه او ادب د ټولنې او اخلاقو د خدمت لپاره وګومارل، الماني کره کتونکي او ليکوال (ليسنګ) بيا د (ديدرو) د لارې د تعقيب ترڅنګ د پخوانيو پر وړاندې ودرېد او د فکر د ازادۍ لپاره يې مبارزه پيل کړه او (نيکلمان) بيا په دې نظر و؛ چې هم اقليم موثر دی او هم ټولنه. دا ډول افکار البته د هغه وخت په اروپايي ټولنه کې دود وو او د کره کتنې پر جوړښت او تحول يې

سخت اغېز وکړ. (نیکلمان) د لرغوني یونان هنرمندانه ساده والی او همدارنګه د هغه عظمت د ازادۍ زېږنده ګڼل او هغه ته یې د هنري ایډیال په سترګه کتل. د همدې تعبیر پر بنسټ، د روښنفکرۍ پړاو د ظلم او خرافاتو پر وړاندې میدان ته ودانګل. (ولتر، روسو او شیلر) هم ددې ډول فکر ملاتړ کاوه او د فرانسې لوی انقلاب د دوی هیلې تمثیل کړې.

(رنه ولک) چې (د نوي نقد تاریخ) په نامه یې په پنځو ټوکونو کې یو څو زره مخیز غټ اثر لیکلی، وایي چې: ((د اتلسمې پېړۍ له نیمایي او د (۱۸۳۰م کال) تر لومړۍ لسیزې پورې د مهال ټول اساسي مسایل چې لا اوس هم موږ ورسره مخامخ یو، نوې کره کتنه یې رانغاړي. دا هغه دوره ده چې په هغې کې د نوې کلاسیکې کره کتنې اډانه، په هغه بڼه چې له پخوانیو دورو څخه په میراث پاتې وه او په شپاړسمه او اتلسمه پېړۍ کې یې په فرانسه او ایټالیا کې پراختیا موندلې وه، وپاشل شوه. دا د نویو افکارو او تمایلاتو د ظهور زمانه ده چې د نولسمې پېړۍ په پیل کې د رومانتیکي غورځنګونو په بڼه کې څرګند شوي وو.))(۳۲: ۳۵).

په المان کې د (کانت) نظریاتو کره کتنه غښتلې کړه، هغه خپل نظریات د عقلي استدلال پر ستنو ودرولي وو. خو (ژان ژاک روسو) پر ذوق ډېره لګوله. ددې وضعې په پایله کې د (رومانتیزم ښوونځی) رامنځته شو. رومانتیزم، د معمول تصویر پر خلاف نه ګل و نه

پتنګ او نه شاعرانه منظرې سره ارتباط لري او نه تشو خيالونو سره. دا داسې يو ښوونځی دی چې د ژوند واقعيتونو ته ګوري او نړۍ ليد يې پر ټاکلې فلسفې او رښتينې تعبير او تفسير ولاړ دی. په هر ډول د (کانت او فينمته) نظرياتو د رومانتيزم ښوونځي په جوړونه کې اساسي نقش درلود او (هنر د هنر لپاره) نظريه تر يوه حده د (کانت) پر نظرياتو ولاړه وه. د المان دوه ستر شاعران (شيلر او ګويته) له دې فلسفې څخه برخمن شول او (شلايرماخر) هم د رومانتيزم په پراختيا کې د پام وړ ونډه درلوده. د رومانتيزم جنجال تر (۱۹) پېړۍ پورې وغځېد او دا مهال د نويو ښوونځيو په راټوکېدو سره غلی شو. د (شوپنهاور) د نظرياتو تر اغېزې لاندې چې ويل يې، موږ هېڅکله له بهر څخه د شيانو پر حقيقت نه پوهېږو، هر څومره چې زياته پلټنه وکړو کوم څه ته نه رسېږو، خو الفاظ او خيالونه چې ژوند ته د فريب له دام پرته بل څه نه دي او دې ته ورته نور نظرونه او همدارنګه د هغه د شاګرد (هاتمان) فکر، د سمبوليزم ښوونځی رامنځته کړ. دې ښوونځي، د عقلي درک پر وړاندې حساسيت او احساس ته اهميت ورکاوه او دې کار د (شوپنهاور او هاتمان) له نظرياتو الهام اخيسته، رمزو او کنايو ته ددې ښوونځي پاملرنه ځينې شاعران بدبينۍ او تشو خيالو ته راکاږل او وروسته د (فرويد) د نظرياتو له امله خبره (سورريالېزم) ته ورسېده.

په سور ریالیزم پسې په اروپا کې نور ښوونځي لکه (ګزستانسیالیزم)، دادایزم، ریالیزم، ناتوریالیزم) او ګڼ نور ادبي جریانونه او د کره کتنې بهیرونه راوټوکېدل. دې بهیر ان تر شلمې پېړۍ پورې دوام وکړ. په شلمې پېړۍ کې په نړۍ کې ډول ډول حوادث پېښ شول. په نړۍ کې ګڼ شمېر خونړي جنګونه وشول، سیاسي، ټولنیز، پوځي او نور ډول ډول بدلونونه رامنځته شول، بشر د علم او تخنیک په برخه کې ډېر زیات پرمختګ وکړ. ادبیاتو هم په تېره بیا په غربي نړۍ کې، چې د ډېرو سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو بدلونونو شاهده وه، د (۱۹) پېړۍ تر پایته رسېدو مخکې نوې بڼه خپله کړه. په دې خاطر چې د سمبولیزم، ریالیزم، سور ریالیزم او نورو په شان ښوونځي او ادبي جریانونه، چې یوه غټه برخه یې اوس، په ادبي مشاجرو کې مطرح ده، جریان لري. دې حالاتو نور حوادث وزېږول، طبیعي خبره ده چې دې حالاتو پر کره کتنې هم خپل خپل تاثیرات درلودل. په دې پېړۍ کې یو زیات شمېر کره کتونکو د کره کتنې پر ارزونې او د اثارو پر تحلیل لاس پورې کړ. دا نظریات که څه هم یو څه پخوانیو نظریاتو متاثره کړي وو، له بل پلوه یې پخوانۍ تجربې بډایه کړې او یو شمېر نوي شیان یې کره کتنې ته وړاندې کړل. وخت لا اوس هم ددې نظریاتو ټینګښت او دوام ته منتظر دی. د منلو او یا نه منلو په برخه کې یې باید له ډېرې بیړې کار وانه خیستل شي. یو ویشتمې پېړۍ ته باید انتظار

وا یستل شي، چې کوم یې ګټور او موثر ګڼي. تجربو ښودلې ده چې د تېرو پېړیو کره کتنې او نظرونه هم د هغوی پر خپل وخت او چاپېریال کې له ستونزو او نیمګړتیاوو خالي نه وو، خو دې سره سره د هغوی په منځ کې داسې کره کتونکي وو، چې د ادبیاتو او کره کتنې په پراختیا کې یې خپله ونډه واخیسته او ځان ته یې لاره خلاصه کړه. د هغوی کار او زیار معاصرانو ته هم د منلو وړ شو او د لویو کره کتونکو په توګه وځلېدل. د دې مسلې د پلي کېدو یوه وسیله په شلمه پېړۍ کې د انساني اړیکو پراختیا او ماشیني وسایلو وده وه.

د یادونې وړ ده چې په شلمه پېړۍ کې د ډول ډول او پېچلو حوادثو حالت، نه یوازې د بدیعي اثارو په دودولو او ټوکولو کې خپل رول درلود، بلکې د کره کتنې د ډولونو او طریقو د څرنګوالي په برخه کې یې هم رول درلود. غالباً د نړۍ په ګوټ کې چې یو ادبي ښوونځی او یا کره کتنیز جریان رامنځته شوی، تاثیر او غبرګون یې پر ډېر لږ وخت په خپل ځای کې څرګند شوی او له هغو سره نوي مسایل یو ځای شوي دي.

د شلمې پېړۍ د کره کتنې له ځانګړتیاوو څخه یوه داده، چې د دې پېړۍ کره کتنه دا مشخصوي، چې د ادبیاتو د پخوانیو لویو لیکوالو نشتوالی او هغوی ته د مراجعې تشیال دی. په حقیقت کې د تېرو پېړیو پر خلاف چې د (پوپ، بوالو، سنت بوو، بیلنسکي) او

نورو اکثرو مثالونو د تېرو لیکوالو د ځواکمنۍ یادونه کوله، هغه کره کتنه چې جریدو، اوونیزو او میاشتنیو کې خپرېده او کله کله یې هغه د مبارزې کره کتنې په نامه یادوله، د یو نوي جمهوري فکر ښکارندویه شوه. په دې کره کتنه کې پخوانیو ته د مراجعت او فرصتونو د تساوي نشتوالی، ځینې ادبي مشاجرې د کره کتنې له دایرې څخه وویستلې. له کره کتنې څخه دا ډول انګېرنه په واقعیت کې د رومانیک ښوونځي له فکره الهام اخلي.

په شلمه پېړۍ کې د کره کتنې یوه بله ځانګړنه، تطبیقي اړخ ته تمایل دی. د شلمې پېړۍ پر کره کتنې د تطبیقي روح غلبې علت د روابطو پراخوالی، ژباړې، د رسنیو او نورو تبلیغي ذریعو زیاتوالی دی.

ددې پېړۍ د کره کتنې بله ځانګړنه د فلسفې او ټولنیزو ښوونځیو اغېز دی.

کله چې شعر ددې ډول بهیرونو تر اغېز لاندې راشي، کره کتونکي وغواړي او که نه، په یو نه یو ډول به یې تحلیل، ارزونه او قضاوت ددې ډول تمایلاتو تر اغېزې لاندې راځي. نو ځکه خو د شلمې پېړۍ کره کتونکي ددې پر ځای چې په ټولیز ډول واقعیتونه ووینې، د ادبي پدیدو په څېړنه کې د خپلو عقایدو او افکارو تر اغېزې لاندې راځي. غالباً داسې کره کتنې ته لاره اوارېږي چې یوه لوري ته به ژمنتیا ولري. لکه څنګه چې په ځینو برخو کې د وخت د

اخلاقي، ټولنيزو، اروا پوهنيزو او فلسفي ښوونځيو تر تاثير لاندې ده، نو ځکه خو د نوي عصر له فکري او علمي جريانونو پرته د شلمې پېړۍ پر کره کتنه پوهېدنه ګرانه ده.

ښه به وي چې د دې پېړۍ کره کتنه د لويديزې نړۍ د کره کتونکو له نظره مطالعه کړو. چې دوی په دې برخه کې څه وايي.

شلمې پېړۍ ته نږدې د کره کتنې په ډګر کې په انګلستان کې د (ماتيو ارنولد) (۱۸۸۸م) تعليمات څرګند وو. د ده بل هېوادوال (والستر پاتر) (۱۸۹۴م) هم په دې برخه کې ښه شهرت درلود. (ارنولد) شعر ته ډېر ارزښت ورکاوه، هغه فکر کاوه چې شعر د انسان د ژوندانه ترجماني کوي. هغه کره کتنه د انسان د فکر محصول ګڼله او له کره کتونکي څخه يې هيله کوله چې تل د ځان پېژندنې هڅه وکړي، لوستونکي ته ښه لارښوونه وکړي او خوښې ورته وروښيي. ده هڅه کوله د پخوانيو او معاصرو کره کتونکو د نظرياتو ترمنځ انډول وساتي. (ارنولډ) په کره کتنه کې د شاعر او ليکوال د ژوند او احوال او همدارنګه د محيط پېژندنه مهمه ګڼله او ښکلا ته يې زياته پاملرنه کوله، خو (والتر پاتر) بيا لذت ته ډېر فکر کاوه او (وسوين برن ګو) بيا په خپله زمانه کې (هنر د هنر لپاره) مفکورې ترويج ته زيات کار وکړ. په انګلستان کې د شلمې پېړۍ د لومړيو وختونو له کره کتونکي څخه يو هم (جرج سينتبوري) و چې تاريخي او تحليلي کره کتنې ته يې پام وکړ، (کاليربج) بيا د ادبي

اثر په کره کتنه کې (تحلیل) ته زیات اهمیت ورکړ او په خپل اثر (له ادبیاتو سره کره کتنیز چلند) کې یې همدا مسله مطرح کړه. د ده کره کتنې تحقیقي بڼه درلودله. (تي. ای هارلم) بیا د ناپېیلي یا بې طرفه نقد توصیه وکړه، ده غوښتل ثابته کړي چې کره کتنه د ژوندانه یوه مهمه برخه ده، ځکه نو باید د ژوندون ورځنیو اړتیاوو ته ځواب ووایي.

(تي، اس، الیون) بیا په خپل کتاب (د شعر او کره کتنې ګټې) کې خپل نظر د کره کتنې په باب بیان کړ، هغه نه یوازې کره کتنه د معاصرینو د اثارو د نقد، بلکې د پخوانیو لیکوالو د کره کتنې لپاره هم لازمه وګڼله. د ساري په توګه د (ارستو) په باب یې ولیکل: ((فکر کوم د شعر په باب د ارستو هغه لیکنې چې تر موږه رارسېدلي دي، د یونان د تراژیدۍ د لیکوالو په باب یې زموږ درک لا ډېر ژور کړی دی.)) (الیوت) په شعر کې انځور ته ډېر ارزښت ورکاوه. د انځور ترخنګ یې عاطفه هم مهمه ګڼله. دی سره له دې چې د معاصرې نړۍ سړی دی، د خپلو معاصرینو پام د پخوانیو شاعرانو شعر ته اړوي او له هغو سره د اړیکو پر ټینګولو ټینګار کوي.

(ورجنیا وولف) (۱۸۸۲-۱۹۴۱م) په کره کتنه کې په دې نظر و، چې د یو هنري او ادبي اثر اهمیت په هغه حالت او احوال کې نغښتی چې دا اثر په کې منځته راغلی دی.

د اثارو پر تاريخي ارزښت سربېره يې د اثر ښکلا ييز اړخ ته هم پام کاوه.

په فرانسه کې کره کتنې د هغې د پخوانۍ غښتلې سابقې له امله په شلمه پېړۍ کې نوره وده هم وکړه.

د شلمې پېړۍ په پيل کې د (برونه تير، اميل فاګه، ژول لومتر، اناتولي فرانس او ګوستاولانسون) نومونه د هر چا په ژبه ګرځېدل. (ګوستاولانسون) تاريخي او علمي کره کتنې ته ډېره پاملرنه کوله. (اميل فاګه) د فرد حال او د هغه خوی او خُلق ته پر پاملرنې ټينګار کاوه. هغه په يوه اثر کې د ليکوال اخلاقي او رواني شيبو ته پاملرنه کوله. (رمي دوګورمون، پيرلاسر او ژلوستر) د فرانسې نور مهم کره کتونکي وو. پر دې سربېره د (ژان پل سارتر) نوم هم د يادونې وړ دی. هغه په کره کتنه کې د يو زيات شمېر ادبي ټولنو پام ځانته راواړوه او ((ادبيات څه دي؟)) نومي اثر کې يې ليکوال او کره کتونکي ته د تعهد او التزام اړتيا روښانه کړه. پر پورتنيو کره کتونکو سربېره (اندره مالرو، البرکامو، اندره ژيد) سره له دې چې لوی او با اعتباره ليکوال وو، کله کله يې کره کتنه هم کړې ده.

په (اسپانيا) او (ايټاليا) کې که څه هم ادبي کره کتنې خپل شور وځوږ درلود، خو د ځينو نورو هېوادونو په انډول ډېره قوي نه وه. په تېره بيا د فرانسې، المان او امريکا په انډول. په دې هر هېواد کې ډېر ځواکمن کره کتونکي وټوکېدل. په اسپانيا کې کره کتنه د

هومانیزم یا بشرپالنې د روح تر اغېزې لاندې وه. په ایټالیا کې بیا کره کتنې نسبتاً زیات قوت درلود. په ایټالیا کې (بندتو کروچه، جوانی جنتله) نومیالي کره کتونکي وو. په تېره بیا (کروچه) د ایټالیا کره کتنې کې نوې ساه پو کړه. که څه هم د (کروچه) نقد فلسفي اړخ درلود، خو ښکلا پېژندنې ته یې هم ډېره پاملرنه وکړه.

په شلمې پېړۍ کې په المان کې کره کتنې بیا خپلې ځانګړنې لرلې. په پیل کې کره کتنې د (ناتوریالیزم) پر لید لوري ولاړې وې. د شلمې پېړۍ په پیل کې (ینرش هارت، (۱۸۵۵-۱۹۰۲) نوم چې اصلاً شاعر او لیکوال و، د کره کتونکو په نوملړ کې راغی. دده ورور (بویوس هارت (۱۸۹۰-۱۹۳۰) د ناتوریالیزم پر اساساتو د ادبیاتو څېړنه کوله. د (هرمان بار ۱۸۲۳-۱۹۴۳) په فعالیتونو سره د ناتوریالیزم اساساتو او اصولو ته زیان ورسېد، د( رومانتیک، سمبولیزم، تعبیر پالنې) او دې ته نور ښوونځي راوټوکېدل او ادبي کره کتنه د نوي رومانتیک ښوونځي اساساتو ته داخل شوه.

(شپتلر) او (شتفن ګیورګه) په ادبیاتو کې د لویو قالبونو او مضمونونو په لټه کې شول. د (الکساندر شرودر) او (ویلیم شولیس) په شان نورو کره کتونکو د شعر، کیسې او ننداریک پر کره کتنو پیل وکړ.

د دويمې نړيوالې جګړې په پايته رسېدو او د المان تر تجزيې وروسته له شک پرته کره کتنه په يوه حالت کې پاتې نه شوه، ادبي کره کتنه پر بېلابېلو ليدلورو وويشل شوه.

ادبي کره کتنه په امريکا کې د شلمې پېړۍ له پيل څخه زيات اهميت حاصل کړ. د (نوي نقد) يا تخليقي نقد په باب د (جويل سپينګارن، (۱۸۷۵-۱۹۳۹) نظرياتو خپرېدل د هيومانيزم انګېرنې غښتلې کړې او د (نوي هيومانيت) مفکورې پلويان د نويو معيارونو د پيداکولو په لټه کې شول. د (ه. ل. نکن) په نامه يو نوميالی کره کتونکی په دې نظر دی چې: ((ژوند لکه څنګه چې دی بايد همغسې انځور شي.)) د نومياليو کره کتونکو په ډله کې يو (عزرا پاوند) دی، او (ا. مک ليش) هم کولای شو په دې ډله کې حساب کړو. (مک ليش) د خپلو نورو نظرياتو ترڅنګ هم له يوې خوا د تخيل پر ارزښت ټينګار کاوه او له بلې خوا يې داسې انګېرله چې د شعر د لټې په خاطر د انسان د ټولو هڅو هدف دادی چې د هغه ماهيت بايد پيدا کړي. هغه (د شعر او تجربه) په نوم په خپل اثر کې د شعر د ژوندانه لپاره تخيل ته زيات ارزښت ورکوي.

(مک ليش) د شعر او نورو ادبي ډولونو د کره کتنې په برخه کې د شکل او مانا پيوند په پام کې نيسي. له همدې کبله هغه وايي، ناشونې ده چې کره کتونکی په شعر او يا بل هنر کې مانا ته د رسېدو وسايل، له مانا څخه جلا کړي.

دده په نظر د وسایلو همدا نفس دی چې مانا تضمینوي.

په واقعیت کې په ادبي کره کتنه کې د (عـرزا پاونـد ، مـک لـیش ) او (والیوت ) نظریـات د (ریچـاردز ) لـه نظریـاتو سره ورتـوالی لـري، خو دې سره سره یې د ادبي کره کتنې په باب کتاب (د ادبي کره کتنې اصول ) کې لیکلي چې ارزښتونه کولای شو د اروا پـوهنې پـه وسیله وپېژنو. البته له ارزښت څخه دده مقصد انسـاني تجربـې دي. کېـدی شي ادبي وي او یا نورې. لکه څنګه چې مو یادونه وکړه دده د ارزښت مسالې ته ډېر پام وکړ، په خپل کتـاب کـې یـې لـه ارزښت سره د نقد اړیکي مشخص کړل.

په هر حال (ریچـاردز ) د ادبـي کـره کتنـې پـه برخـه کـې ځرګنـد رول ولوبـاوه. کـوم څـه چې دده پـه نظریـاتو کـې راڅرګنـد شـول او د ادبـي کره کتنې په اصولو کې د ارزښتونو د نظام یو ډول فلسـفه تـرې جـوړه شـوه، همـدا نظریـه (عرزاپاونـد ) او (الیـوت ) د یـوه تحلیلـي نقـد پـه توګه څرګنده کړه.

د امریکا په ادبي ټولنو کې د (عـرزاپاوند ) انتقادي کتنې پـه تېـره بیا تر لومړۍ نړیـوالې جګـړې دمخـه مهـال زیـاتې پـراخې شـوې. دده د (رومانس روح ) په نامه په خپل لومړني انتقادي اثر کې د (ریچاردز ) د وینـا اساسـي جـوهر پـه سـاده ډول انځـور کـړ. پـه واقعیـت کـې (ریچاردز، پاوند ) او (الیوت ) پـه امریکـا کـې د (نـوې کـره کتنـې ) د ښـوونځي اصـول او مبـادي پـه خپلـو ځـانګړو بیـانونو سره رامنځتـه

کړل. د یادونې وړ ده چې د (پاوند ) کره کتنې زیاتره عملي بڼه درلوده، نو ځکه خو د امریکا د ځوانانو ترمنځ زیاته دود شوه او د منلو وړ وګرځېده. ددې ترڅنګ، هغه طریقه چې په کره کتنه کې د (ریچاردز، پاوند او الیوت) له خوا وکارېدله، دا وه چې کره کتونکی باید د یو اثر د پېژندنې لپاره خپله اثر ته ډېره پاملرنه وکړي، نه هغه چاپېریال ته چې دا اثر په کې تولېدلی دی. ځینې نورو کره کتونکو لکه، (تیت آر یی، بلاکمر او کنت برک ) زیاتره د شعر قالب او ظاهري بڼې ته کتل، ځکه (بروکس) او (وان دیک ) ددې ساحې ځینو څېړونکو پورتني اصول د قالب پالنې اصول ګڼل. یو بل امریکایي کره کتونکی بیا ادبي اثار د سیاسي او ټولنیزو مسایلو له نظره څېړل، خو (وی. ال پارینګون) بیا ادبیات د ولسواکۍ د معیارونو له مخې سنجول. ځکه نو په امریکا کې د ادبي کره کتنې جریانونو د ځینو نورو کره کتونکو په رامنځته کېدو سره، له مشخصو ځانګړنو سره دوام پیدا کړ. ))(۲۱: ۴۱-۵۱ ).

## ب- کره کتنه په ختیځ کې:

په غربي نړۍ کې د مذهبي افکارو او له مذهب څخه د ناسمو تعبیرونو حاکمیت که څه هم نړۍ نږدې یوه زریزه په تیاره کې وساتله او دې بهیر تر رنسانس پورې دوام وکړ، خو شرقي نړۍ په تېره بیا اسلامي نړۍ له دې تیارو څخه تر ډېره حده لرې پاتې شوه. په اسلامي نړۍ کې بیا عربي نړۍ تر ټولو زیاته مطرح ده، دلته غواړو د عربي نړۍ ته تم شو.

## ۱- کره کتنه په عربي نړۍ کې:

کره کتنه په ختیځ کې اوږد تاریخ او تسلسل لري. دا تسلسل لکه د غربي نړۍ په شان غوڅ شوی نه دی. په تېره بیا په عربي نړۍ کې تر اسلام دمخه او وروسته او بیا هم د اسلامي دورې په بېلابېلو پړاوونو، سیمو او واکمنیو کې کره کتنې خپل شتوالی ساتلی دی، چې مخکې مو څه ناڅه رڼا پرې واچوله او د مهمو کره کتونکو نومونه مو یاد کړل. په ختیزه نړۍ کې په سوونو ژبې او تمدنونه دي، چې د کره کتنې په برخه کې پر ټولو بحث کول د یوه اثر یا څو کتابونو له اوسېلې څخه وځي، خو دلته غواړو هغه ژبې او ټولنې چې له کلتوري، ژبني او ادبي پلوه زموږ له کلتور، ژبې، ادبیاتو سره څه ناڅه ارتباطات لري، په معاصره یا اوسنۍ دوره کې د دې ژبو د کره کتنې پر څرنګوالي او د کره کتنې پر مخکښانو لنډه رڼا

واچوو. لومړی راځو د عربي نړۍ په تېره بیا د دوی د ویښتیایي پېر کره کتونکو ته.

له هغو ادیبانو او کره کتونکو څخه چې د عربو د بیا ویښتیا پېر د ادبي کره کتنې د بشپړتیا او پرمختیا غورځنګ مخکښان بلل کېږي، ځینې په لاندې ډول درپېژنو:

## ۱- احمد فارس الشدیاق:

(۱۸۰۵-۱۸۸۷م کلونه) د احمد فارس د ژوند کلونه دي. (فارس بن یوسف الشدیاق) د لبنان د (بعشقوت الکسروانیه) په کلي کې زېږېدلی دی، له (عین ورقه) مدرسې څخه فارغ شوی. د عمر پر لسم کال یې شعر ووایه او ډېر هغه کتابونه یې چې د پلار په کتابتون کې وو، په غور او مینه ولوستل. ډېر بېوزلی و او د کتابونو د نسخو د لیکلو په اجوره یې ګوزاره کوله. کله چې امریکایي عیسوي دعوتګرو د هغه د پوهې اوازه واورېده، مصر ته یې وروغوښت چې عربي ورزده کړي. په مصر کې هم پر زده کړه بوخت شو او د ((الوقائع المصریه)) د عربي څانګې د لیکنې کار هم ور وسپارل شو. بیا له مصره پر (۱۸۳۴م) کال (مالټا) ته د امریکایانو په مدرسه کې د زده کړې او د هغو د خپرونو د تصحیح لپاره ولېږل شو. هلته یې د مالټا پر تاریخ کتاب ولیکه، بیا د کیمبرج پوهنتون د انجیل د ژباړنې ټولنې، لندن ته وغوښت، هلته یې د دغه کتاب په ژباړه کې

برخه واخیسته او د انګریزي ټولنې په هکله یې خبرنې وکړې. بیا پاریس ته ولاړ او هلته یې فرانسوي او انګریزي ژبې ښې زده کړې. له پاریس څخه نورو اروپایي هېوادونو ته ولاړ او خپل یونلیک ((کشف المخباعن فنون اوربا )) یې ولیکه. دغه مهال یې د ((الساق علی الساق فی ماهو الفاریاق)) په نامه کتاب هم ولیکه. په پاریس کې یې د عثماني پاچا عبدالمجید په مدح کې قصیده وویله، هغه وروغوښت، خو دغه مهال د تونس ((بای)) (د تونس مشر واکمن) په پاریس کې پرې پېښ شو، د هغه په مدح کې یې د عربي نامتو شاعر کعب بن زهیر په تقلید قصیده وویله. کله چې هغه خپل هېواد ته ورسېد، ور ویې غوښت او ډېر عزت یې ورکړ. هلته په رسېدو سره د ((الرائد التونسي)) رسمي جریدې د لیکنې ډلې مشر وټاکل شو او د اسلام پر سپېڅلي دین هم مشرف شو، بیا د (احمد فارس) په نامه ونومول شو او په ټولو عربي هېوادونو کې یې په پوهه او ادب کې نوم وایست. بیا د (آستانې) عظمی صدارت وروغوښت او پر (۱۸۶۰م) کال هلته ورسېد. هلته یې ډېر درناوی وشو او د ((الجوائب)) په نامه ورځپاڼه یې راوایستله. پر (۱۸۸۷م) کال په آستانه کې مړ شو، خو د هغه له وصیت سره سم د بېروت په یوه هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

د شدیاق په لیکنو او نظریو کې بنسټپالنه لیدل کېږي. د ژوند ناخوالو ډېر ځورولی و. پر هغه چا چې دی یې تنګاوه، ډېر په غوسه

کېده او کلک غچ به یې ځنې اخیسته. هغه پر پورته یادو شویو کتابونو سربېره نور ډېر کتابونه هم لیکلي دي.

الف- ټولنیزه کره کتنه یې: (حنافاخوري) وایي: شدیاق سودایي مزاجه و. د خلکو عیبونو او ناوړو کارونو ته به یې خُلق تنګېده او ځوراوه به یې، خو چې ملنډې به یې پرې ووهلې، خوښ به شو، وایي چې دده پلار او نور خپلوان عثماني دولت فراري کړي وو، ځمکې یې ورضبط کړې وې او له ډېرو کړاوونو سره یې مخامخ کړي و، له دې امله دی هم له واکمنو څخه د غچ اخیستنې په لټه کې وو او څنګه چې ځنې وېرېده، د هغو خدمت یې د زړه له اخلاصه نه کاوه. له دیني عالمانو سره یې هم نه وه جوړه، ځکه هغو دده د رایو او تمایلاتو مخالفت کاوه، له بله پلوه څنګه چې یې د خپل هېواد وروسته پاتیوالی د اروپایي هېوادونو له پرمختیاوو سره پرتله کړ، نو یې خپل قلم کره کتنې ته وګوماره.

د شدیاق کره کتنه، افرادو او ټولنې دواړو ته متوجه وه، هغه به خپلې خبرې په جرایدو کې د ((جمل ادبیة) تر سرلیک لاندې تل په ((من الناس)) پیلولې او د خلکو پر ناوړه خویونو او دروغو ویلو او داسې نورو شیانو به یې نیوکې کولې. د کورنیو په اړه د هغه دا رایه وه چې ښځه د نر له استبداده وژغورل شي او اولاد د والدینو له ناپوهۍ، او همدارنګه په روزنه کې د هغو له ناسمو کړو وړو ازاد

شي. ښځې د (شدیاق) په اند د لوی ځښتن یو غوره مخلوق دی، د ژوندانه کچه یې باید لوړه شي او په ګټورو پوهنو وپسولل شي.

څنګه چې یې په لویدیځ کې لیدلي وو، چې علم، ښوونه او روزنه هلته پرمخ تللي، نو هیله یې لرله چې دده په هېواد کې هم علم، ښوونه او روزنه هغسې وي، ځکه یې پر خپل هېواد مسلط جهل غنده، تل به یې د خپلو لیکنو له لارې په لویدیځ کې د علمي پرمختیاوو معلومات خپرول او خپل ولس به یې د هغه ځای له نورو اکتشافاتو خبراوه.

**ب- ادبي کره کتنه یې:** (شدیاق) له ادب سره ډېره مینه درلوده او د لرغوني او نوي ادب په اړه یې بشپړ معلومات درلودل. له تقلیدي بندیزونو څخه بېزار و، پر دې اساس یې د عالمانو او ادیبانو پر مروجو اسلوبونو نیوکې کولې، که څه هم دی په خپله نه دی بریالی شوی چې په خپلو ځینو منظومو او منثورو اثارو کې له هغو څخه ځان وژغوري.

څنګه چې هغه په خپلو سفرونو کې د لویدیزو ادبیاتو او اروپایي لیکوالو د اندونو او تعبیرونو په هکله معلومات ترلاسه کړي وو، نو یې د عربي ادبیاتو پر پخوانیو طریقو او متداولو اسلوبونو نیوکې کولې او د عربي نحوې، د هغې له سختو او

مشکلو طریقو، د بیان او بدیع او د هغو د اړوندو صنایعو له بې ګټې اسلوبونو څخه یې ناخوښي څرګندوله.

هغه په خپلو لغوي کتابونو کې ځانته بېله لاره غوره کړې وه او د کلمو ماناوو ته یې ټول پام اړولی و. د کلمې اصل او مانا او د توري عام مدلول او خصایص به یې پلټل او په دې توګه د ډېرو لغتونو پر اسرارو داسې پوهېده چې نور ډېر لږ عالمان به پرې پوهېدلي وي.

هغه شعر د مناسباتو له بندیزونو او پخوانیو اسلوبونو څخه ازاداوه. له دې امله هغه پر شاعرانو ځورونکې نیوکې کولې، خو دې سره سره یې بیا هم ځان له همغو مناسباتو ازاد نه شو کړای.

د نثر پر پخواني دودیز شکل یې هم کلک بریدونه کول او له پخواني شکل څخه یې د نثر د ازادولو هڅه کوله.

## ۲- شیخ ابراهیم یازجي:

شیخ ابراهیم یازجي له (۱۸۴۷-۱۹۰۲م) کلونو پورې ژوند کړی دی. د نومیالي پوه او لیکوال، (شیخ ناصیف یازجي) زوی دی. په بیروت کې زېږېدلی. تر تحصیل وروسته یې پر (۱۸۷۲م) کال د ((النجاح)) په نامه جریده راوایستله، بیا له عیسویانو سره (نهه کاله) د (انجیل) د عربي ژباړې پر سمون بوخت شو او د دې ترڅنګ یې د عیسوي پادریانو په غوښتنه د لغتونو کتاب ((الفرائد الحسان من قلائد اللسان)) پر لیکلو پیل وکړ. د بېروت په (بطریرکیه) مدرسه کې یې د ښوونکي دنده هم ترسره کړه او د دې ټولو چارو ترڅنګ یې بېل بېل کتابونه تصحیح او د پلار ځینې نابشپړ کتابونه یې بشپړ او ځینې یې لنډ او خلص کړل. بیا یې د ((نجعة الرائد)) کتاب ولیکه. بیا یې د دربو ډاکترانو په ملګرتیا د ((الطبیب)) په نامه مجله راوایستله، کله چې یې په مصر کې ډېره ازادي ولیدله، د ادب او خپرونې د کار قدر، نو اروپا ته یې سفر وکړ او د ځینو اړتیا وړ سامانونو او شیانو تر برابرولو وروسته مصر ته ولاړ. لومړی یې خپل یوه پخواني ډاکتر ملګري سره یوځای د ((البیان)) په نامه مجله راوایستله، خو یو کال وروسته سره بېل شول او بیا یې پر (۱۸۹۸م) کال د ((الضیاء)) په نامه مجله خپره کړه او اته کاله یې د خپلې مړینې ترمهاله وچلوله. هغه پر دې سربېره چې

عـالم، شـاعر، ليکـوال، ورځپاڼـه ليکـونکی او ويـي پـوه و، کـره کتونکی هم و.

هغه ادبي اثار له مانيز او هنري پلوه کره کول او په دې هکله د نظر خاوند او د سليم ذوق څښتن و.

## ۳- سليمان البستاني:

(**۱۸۵۲- ۱۹۲۵**م) کلونه دده د ژوند زمانه ده. (سليمان البسـتاني) د (لبنـان) پـه (بکشـتين ) نـومي ځای کې زېږېدلی دی. د (بېروت) پـه (المدرسة الوطنية) کې يې زده کړه کړې او په خپل ځاني کوښښ يې انګرېـزي، فرانسـوي، المـاني، يونـاني، ايټـالوي، اسـپانوي، بلغاريايي، هنګري او پرتګالي ژبې زده کړې او په رياضـي، کيميـا، حقوقو، کرنه، سوداګرۍ، کانپوهنه او ټولنپوهنه کې يې مالومات ترلاسه کړي دي. عراق او د عربو ټاپو وزمې تـه يـې سفرونه وکړل او بيا يې په بېروت کې له (سليم البستاني) سره د (دايرة المعـارف) پـه ليکلو کې برخه واخيسته. بيا بېرته بغداد تـه ولاړ، هلتـه يې لـه يـوې ښځې سره واده وکړ. بيا يې په مصر کې د (هومر) د (ايليـډ) منظومـه په عربي وژباړله، سريزه او شرح يې پرې وليکله.

بيا يې پر (۱۹۰۸م) کال د ((عبرة و ذکری)) په نامه کتاب خپور کړ، دې کتاب له هغه سره د هغه د وطنوالو مينه زياتـه کـړه او د (بېـروت) له ولايت څخه پارلمان ته وټاکل شو. بيـا د پارلمـان د دويـم مشـر پـه

توګه انتخاب شو، بیا د عثماني دولت د استازي په توګه د اروپايي هېوادونو پلازمېنو ته ولاړ. پر (۱۹۱۳م) کال د کرنې او سوداګرۍ د وزير په توګه غوره شو. دغه مهال يې کوښښ وکړ چې عثماني دولت په جګړه کې برخه وانه خلي، خو چې خبره يې ونه منل شوه وزارت يې پرېښود او د درملنې لپاره سويس ته وخوځېد. تر جګړې وروسته مصر ته ولاړ، پر (۱۹۲۴م) کال امريکا ته ولاړ، هلته يې د خپلو کډوالو هېوادوالو له خوا تود هرکلی وشو او امريکايانو هم په درنه سترګه ورته کتل، خو وروسته په سترګو ړوند او پر (۱۹۲۵م) کال مړ شو.

د (بستاني) کره کتنه له هغه ځايه چې په هغه کې د يوه رښتيني کره کتونکي اوصاف شته د عربي کره کتنې په غورځنګ کې يو بېل پړاو جوړوي. د هغه پراخه مطالعه د (ايليډ) پر منظومه باندې د هغه له تعليقاتو څخه په ګوته کېږي، البستاني د هغو رښتينو پوهانو په سر کې راځي چې د اړتيا وړ معلوماتو د ترلاسه کولو لپاره يې هر ډول ستونزې زغملي. هغه د (ايليډ) پر عربي کولو او سپړلو باندې د شاوخوا سلو شاعرانو اثار، د يونان او عربو ډېرې مهمې سرچينې پلټلې، د لاتيني، انګرېزي او فرانسوي ژبو په اشعارو يې استشهاد کړی، د ډېرو کره کتونکو نظريې يې پرې را اخيستي او ډېر جغرافيوي او نور مسايل يې په کې څېړلي او ځای کړي دي.

ددې ترڅنګ يې د (ايليډ) په شننه کې له ډېره دقته هم کار اخيستی دی او ډېر کتابونه يې ورته کتلي دي، تر دې چې د يوه بيت د موندلو لپاره يې، چې د دليل په توګه يې وړاندې کړی، درست کتاب لوستی دی.

پر (بستاني) باندې د علمي او فلسفي لېوالتيا ذوق دومره غالب و چې هغه به د (هومر) شعر د خپل فلسفي تمايل له مخې څېړه او د يوناني او عربي ادب توپيرونه به يې له دغه نظره په ګوته کول، په تاريخي، ژبنيو او اخلاقي مسايلو کې يې له زياتې څېړنې څخه کار اخيستی. خو کره کتنه يې د ادبي فنونو، ځيرکتيا او پوهې څخه برخمنه وه.

## ۴- جرجي زيدان:

(۱۸۶۱-۱۹۱۴م) کلونه دده د ژوند زمانه ده. (جرجي زيدان) په (بېروت) کې زېږېدلی په (مدرسه ثلاثة اقمار) کې يې څه زده کړه وکړه، بيا په داسې حال کې چې کوچنی و په بېروت کې د ناکراريو او مذهبي شخړو له امله اړ شو، چې سبق پرېږدي او له پلار سره د کورني خرڅ په پيدا کولو کې مرسته وکړي، له علم او ادب سره يې زياته مينه درلوده، ډېر کتابونه يې ولوستل، انګرېزي ژبه او ډېر نور څه يې زده کړل. پر (۱۸۸۱م) کال په بېروت کې امريکايي پوهنتون ته شامل شو او د روغتيايي علومو او درمل جوړولو په

برخه کې تر څه زده کړې وروسته یې بېرته هغه پرېښود ، بیا مصر ته وخوځېد او د ((الزمان)) د جریدې د خپرولو چارې یې پرغاړه واخیستې، بیا یې پر (سوډان) باندې د انګرېزانو د حملې پر مهال د مصریانو او سوډانیانو د ژباړن په توګه دنده ترسره کړه.

پر (۱۸۸۵م) کال بېروت ته لاړ او د ختیځ د علمي ټولنې د غړي په توګه وټاکل شو ، بیا یې انګلستان ته سفر وکړ او بېرته مصر ته لاړ او هلته د تالیف، ژباړې او مجلې لیکلو پر کار بوخت شو. پر (۱۸۹۲م) کال یې د ((الهلال)) مجله راوایستله او ان د خپلې مړینې تر مهاله یې وچلوله.

هغه د تاریخ، جغرافیې، ادبي او لغوي علومو او کیسو په باب کتابونه ولیکل، مشهور یې ((تاریخ مصر الحدیث))، ((تاریخ التمدن الاسلامي))، ((تراجم مشاهیرالشرق)) او ((تاریخ آداب اللغة العربیة)) دي.

(جرجي زیدان) د عربي ژبې له هغو معاصرو لیکوالو څخه دی چې ډېر مهم او په زړه پورې کتابونه یې لیکلي، ((تاریخ آداب اللغة العربیة)) اثر یې له ډېرو ادبي فوایدو څخه ډک دی او په (الهلا) مجله کې یې علمي، دقیق او معتدل کره کتنیز ذوق ټولو ته څرګند دی.

## ۵- ابراهيم عبدالقادر المازني:

(۱۸۹۰-۱۹۴۹م) کلونه ددې کره کتونکي د ژوند مهال دی. (ابراهيم عبدالقادر المازني) د هغو کسانو له ډلې څخه چې د عربي کره کتنې وروستی بنسټيز غورځنګ دده د هلو ځلو زېږنده بلل کېدی شي، دې چارې ته يې ځانګړی پام اړولی و او په دې هکله يې ارزښتناک اثار پرې ايښي دي.

دغه مصري اديب د انګرېزي ادب او فرهنګ په باب هم معلومات لرل، هم شاعر و او هم يې کيسې ليکلې. د کره کتنې له کتابونو څخه يې ((الشعر وغاياته)) او ((بشاربن برد)) دي. د ليکنو ټولګې يې هم چې د ((حصاد الهشيم)) او ((قبض الروح)) تر سرليکونو لاندې خپرې شوې دي، د کره کتنې په اړه ډېر مواد لري.

## ۲- عباس محمود العقاد:

(عباس محمود العقاد) (۱۸۸۹-۱۹۶۴م) کلونه د عباس د ژوند کلونه دي. (عباس محمود العقاد) په (اسوان) کې زېږېدلی دی، تر دوديزو زده کړو وروسته مصر ته ولاړ او هلته يې د ((الامة)) له ګوند سره اړيکې ټينګ شول، ورځپاڼو ته يې ليکنې ورکولې او په ازادو مدرسو کې د لوست ورکولو پر کار بوخت شو، بيا چې د ((الوفد)) له ګوند سره يوځای شو (نهه مياشتې) بندي شو. پر (۱۹۳۸م) کال د عربي ژبې د ټولنې د غړي په توګه وټاکل شو. هغه ډېر ګټور اثار ليکلي دي چې له هغو څخه يې ځينې دا دي:

۱-((الديوان))، دغه کتاب يې ابراهيم عبدالقادر المازني سره په ګډه ليکلی دی. دا کتاب دوه ټوکه دی او په هغه کې يې د ځينو معاصرو شاعرانو پر شعرونو کره کتنه کړې ده.

۲-((شعراء مصر و بيئاتهم في الجيل الماضي))

۳-((ابن الرومي، حياته و شعره))

۴-((ابو نواس الحسن بن هانئ))

۵-((هتلر في الميزان))

۶-((الامام علي کرم الله وجهه))

۷-((فاطمة الزهراء))

۸-((فاطمیون))، یې نور اثار دي.

د بېروت (دارالکتب اللبناني) پر (۱۹۷۴م) کال د (استاد عباس محمود العقاد) د اثارو بشپړه ټولګه په دوه ویشتو ټوکونو کې خپره کړه. عقاد چې له معاصرو سترو لیکوالو، کره کتونکو او شاعرانو څخه دی، تر هغه چې مړ کېده د نازیانو، فاشیستانو او ښکېلاکګرو پر ضد یې مقاومت وکړ او په خپلو اثارو کې یې د سمونپالو (مصلحینو) له هلو ځلو سره مرسته وکړه. البته کوم څه چې د ده اثار ځانګړي کوي، هغه دده د حقیقت پلټلو او ازادۍ غوښتلو ذوق دی. ان د ده په اند ((ادب او هنر په خپله د ازادۍ او ازادۍ خوښوونې د ارواډېر لوړ څرګندوی او بیانوونکی بلل کېږي.))

(عقاد) په کره کتنه کې د شاعرانو او لیکوالو د مهال او چاپېریال بیانولو ته په ځانګړې توګه پام اړوي. د ((شعراء مصر وبیئاتهم في الجیل الماضي)) په سریزه کې کاږي: ((په هر ولس او هر پېر کې د شعر او ادب د کره کتنې لپاره د چاپېریال پېژندلو ته ضرورت دی، خو دا ضرورت د مصر په هکله په تېره بیا کله چې د هغه د تېر توکم د شعر او ادب خبره په منځ کې وي، لا زیات دی.)) هغه په خپله هم په دغه کتاب کې د شاعرانو چاپېریال څېړلو ته ډېر زیات پام کړی دی.

په ((ابن الرومي، حياته و شعره)) کتاب کې يې پر بهرني چاپېريال سربېره د شاعر باطني او اروايي احوالو ته هم پام اړولی دی. دغه کتاب يې له ځينو اړخونو د انګرېزي کره کتونکي او ليکوال (هازليټ) بحث او کره کتنه سره ټي ته ور په يادوي او داسې ښکاري چې د دغه کتاب په ليکلو کې به يې د هغه کړنلاره په پام کې نيولې وي.

## ۷- محمد حسين هيکل بک:

محمد حسين هيکل بک پر (۱۸۸۸م) کال زېږېدلی دی. **نوموړی** د مصر او سمهالی کره کتونکی، ليکوال، څېړونکی او ټولنيز منتقد دی، هغه سربېره پر دې چې د نامتو جريدې ((السياسة)) ليکونکی و او په هغې کې يې مهمې او په زړه پورې ليکنې خپرولې، د ادبي او کره کتنيزو ليکنو ټولګه يې هم د (فی اوقات الفراغ) تر سرليک لاندې خپره شوې ده، نور اثار يې دادي: (تراجم مصرية وغربية)، (ثورة الادب)، (ولدي)، (حياة محمد) او (في منازل الوحی).

هيکل بک د مصري ادب د تجدد او تحول له مخکښانو څخه شمېرل کېږي، هغه په مصر کې د فرانسوي ژبې او ادب او د فرانسوي اديبانو او شاعرانو د اندونو او اسلوبونو د خپرولو لپاره ډېر زيار واېست. دده په اند د ټولو عربي ولسونو معارف او فرهنګ

یو دی او ټول عرب باید په ټولو عربي هېوادونو کې د هغو د پراختیا او پیاوړتیا لپاره هلې ځلې وکړي.

د هغه په نظر د عربي ادب بیا رغښت مهم کار دی او لار یې هم داده، چې لیکوال د زړو او متروکو بې مانا الفاظو له کارولو ډډه وکړي، ځکه رښتینی ادیب هغه نه دی چې له زړو او مشکلو الفاظو سره بلد وي، بلکې واقعي ادیب هغه دی چې وکولای شي افکار او ماناوې د داسې الفاظو په بڼه وړاندې کړي، چې د دغو ماناوو ښکلا له الفاظو څخه هم احساس او څرګنده شي. له دې امله هر څومره چې الفاظ ډېر ساده وي، هغومره پر غوږو ښه لګېږي او زړه ته نږدې کېږي.

## ۸- احمد امین:

پر (۱۹۵۳م) کال مړ شوی. (احمد امین) د مصر له معاصرو کره کتونکو او څېړونکو څخه دی. هغه سره له دې چې د عربي ادب او تاریخ په څېړېدو کې یې کارنده ونډه واخیسته، له اروپایي ادب او فلسفې سره یې بلدتیا لرله. د هغه له مهمو اثارو څخه د ((فجرالاسلام))، ((ضحی الاسلام))، ((ظهرالاسلام)) او ((یوم الاسلام)) کتابونو لړۍ ده، چې د اسلام د تاریخ، تمدن او فرهنګ په هکله یې لیکلي او په هغو کې یې د تاریخي کره کتنې اصول او قواعد په ډېر ښکلي ډول کارولي دي. (عمراحمد عثماني) چې د

دغې لړۍ ((فجرالاسلام)) یې په اردو ژبه ژباړلی دی، د احمد امین د دغو کتابونو په هکله وایي: ((پروفیسر احمد امین د خپلو کتابونو په دغه لړۍ کې د اسلام تاریخ لیکلی دی، نه د مسلمانانو، تر کومه ځایه چې زما فکر کار کوي دغه خبرې مورږ ته تر دې وړاندې نه دي ویل شوي. په دغه کتابونو کې به تاسې ووینئ چې اسلام یې د یوه داسې بهاند سمندر غوندې ښوولی، چې خپلې سرچینې ته نږدې ډېرې صاف، شفاف او سپېڅلی ښکاري. خو وروسته له یوې او بلې خوا، لښتي او ویالې پرې ګډې شوي او هغه یې اغېزمن کړی دی. که په سطحي کتو ورته وکتل شي، دغه بهرني عناصر عیناً اسلام ښکاري، خو که لږ څه یې تل ته پام وشي، نو د دغو راغلو لښتیو او ویالو اوبه د اصلي سمندر له روانو اوبو څخه ګرد سره بېلې ښکاري. (علامه احمد امین) د اسلام تاریخ په دغسې ژورلید څېړلی دی او په دغه ډول یې د تاریخ خپله دغه لړۍ وړاندې کړې ده.))

(علامه احمد امین) بل کتاب د ((النقد الادبي)) په نامه د کره کتنې د تاریخ او اصولو په هکله لیکلی دی. ددغه کتاب د لیکنې کار یې پر (۱۹۵۲م) کال په قاهره کې سرته رسولی دی او له هغه مهاله تراوسه څو واره چاپ شوی دی. د احمد امین دغه کتاب په کره کتنه کې د هغه د کلونو کلونو تجربې او د مصر په (فوادالادول) پوهنتون کې ددغې موضوع د کلونو کلونو تدریس

محصول دی. د (علامه احمد امین) د لیکنو ټولګه هم د ((فیض الخاطر)) تر سرلیک لاندې په (اتو ټوکونو) کې خپره شوې، چې د کره کتنې په هکله ګڼې لیکنې په کې شاملې دي.

## ۹- ډاکتر طه حسین:

(۱۸۸۹-۱۹۷۳م) کلونه دده د ژوند زمانه ده. مصری لیکوال، کره کتونکی، څېړونکی او ادیب (طه حسین) چې د مصر د (مغاغه) نومي ځای په یوه کلي کې زېږېدلی دی. په کوچنیوالي کې د سترګو له نعمت څخه بې برخې شو. هغه لومړی د ((الازهر)) په پوهنتون کې زده کړې ترسره کړې، بیا یې په ((الجامعة الاهلیة)) کې لوړو زده کړو ته دوام ورکړ او د عربي ادب په څېړنه کې یې د ختیځپوهانو او د نوي فرهنګ د مخکښانو د کړو کارونو زده کولو ته مخه کړه. بیا فرانسې ته لاړ، لرغوني ادبیات او فلسفه یې ولوستل او د فرانسې د معاصر ادب په هکله یې پوهه ترلاسه کړه. کله چې مصر ته ستون شو په (الجامعة الاهلیة) کې استاد شو. کله چې پر (۱۹۲۵م) کال ((الجامعة المصریة)) نوې پرانیستل شوه، د هغې د ادبیاتو د پوهنځي استاد او مشر وټاکل شو. ډېرې لیکنې یې مجلو ته ورکړې او د ((الوفد)) په اخبارونو کې یې هم سیاسي لیکنې خپرې شوې. بیا د ((جامعة الاسکندریة)) مشر، ورپسې د پوهنې وزیر او بیا د ((اللجنة الثقافیة للجامعات العربیة)) رئیس وټاکل شو.

ادبي او کره کتنيزې ليکنې يې ډول ډول او بېلابېلې دي. له هغو څخه يې ځينې دا دي:

۱-(ذکری ابی العلاء) پر دغه کتاب يې پر (۱۹۲۵م) کال د مصر له پخواني پوهنتون څخه دوکتورا اخيستې ده.

۲-(ابن خلدون و فلسفته الاجتماعية) دغه کتاب يې د (ډي لټ ډګرۍ) (په ادبياتو کې د دوکتورا) لپاره د (پاريس) د (ساربون) پوهنتون ته وړاندې کړی دی. (عربي ژباړه يې پر (۱۹۲۵م) کال خپره شوه).

۳-(في الادب الجاهلي) د دغه کتاب پر خپرېدو ډېر ستر شور ماشور جوړ شو. اديبانو او استادانو پر هغه نيوکې وکړې او ډېر ايرادونه يې پرې ونيول او ويې ويل؛ چې هغه هڅه کړې ده چې د جاهلي شعر او ادب په نه منلو سره په حقيقت کې د عربو له ټول ادب، تاريخ، ژبې، دودونو او وياړونو څخه انکار وکړي او د هغه په رد کې يې ليکنې او کتابونه خپاره کړل.

(ډاکتر زرين کوب) په خپل اثر (نقد ادبي) کې وايي: ((که څه هم په دغه کتاب کې د طه حسين رايې او عقايد له مبالغې خالي نه دي، خو کومه غوڅه لهجه، لطيف او ساده بيان چې په هغه کې شته، هغه ته يې ډېر ارزښت ور په برخه کړی دی او طه حسين بې له شکه چې په

عربي نوې کره کتنه کې تازه ساه پوکړې ده او نور کره کتونکي په تېره نوي ځوانان تر ډېره د هغه تر احسان لاندې دي. ))

۴-(حديث الاربعاء) دغه کتاب يې سړي ته د فرانسې د نامتو کره کتونکي (سنت بوو) اثر (د دوشنبې ليکونه) ورپه زړه کوي. له آره (طه حسين) په کره کتنه کې د فرانسوي کره کتونکو، په ځانګړې توګه د (سنت بوو)، (تين) او (برونتير) طريقو ته تمايل لري او د عربي ادب په کره کتنه کې د هغو د طريقو او اسلوبونو پلوي کوي. خو له دې سره سره په کره کتنه کې د هغه ډډه يوازې پر علم او عقل نه ده، بلکې ذوق او عاطفه هم د هغه په کره کتنه کې خپل ځای لري او دغه ټکي د هغه د کره کتنې له ښېګڼو څخه شمېرل کېږي.

۵-(الوان)

۶-(نقد و اصلاح)

۷-(مع المتنبی)

پورتني څلور کتابونه هم د هغه د کره کتنې د ليکنو ټولګې دي، چې ډېرې کره کتنيزې ګڼې لري.

## ۱۰- محمد کرد علي:

پر (۱۸۸۹م) کال زېږېدلی دی. (محمد کرد علي) د (دمشق) اوسېدونکی او د ادب او څېړنې د ډګر ستر سړی دی. د سوريې د

فرهنګ وزیر شو. د ((المقتبس)) مجله یې تاسیس کړه او د دمشق د فرهنګي چارو د ریاست مشري یې هم کړې ده. څو ځله یې اروپا ته سفرونه وکړل. د ډېر ښه استعداد څښتن دی او د تاریخ لیکلو کار یې په ښه توګه سرته رسولی دی. په ادبي کره کتنه کې یې غالباً د پخوانیو اشخاصو په هکله لیکنې کړي او په خپله د زړه له کومې (د پخواني ژوند د نوي کولو)) د غورځنګ پلوی دی. د (کرد) مهم اثار دا دي: ((رسائل البلغاء)) (د لرغونو متنونو ټولګه)، ((غرائب الغرب))، ((القدیم والجدید))، ((خطط الشام)) (شپږ ټوکه)، ((الاسلام والحضارة العربیة))(دوه ټوکه).

## ۱۱- زکي مبارک:

(زکي مبارک) پر (۱۸۹۱م) کال زېږېدلی دی. نوموړی د مصر او سېدونکی او ښکلی او غوخ اسلوب لري. له شور او ځوږه ډک غنایي شعر وایي، مډرنې ادبي څېړنې کوي او خپل شخصي او خپلواک عقاید په کې بیانوي. کله کله داسې مخالفت کوي چې شخصي او خپلواک عقاید په کې بیانوي. کله کله داسې مخالفت کوي او یا له استهزا ډکې لیکنې کوي چې د ځینو د سپکاوي، زړه بداوي لامل ګرځي، دښمني او ناوړه تفاهمات راپاروي. که په لیکنو کې یې یو څه ډېر صمیمیت وای، اثارو به یې ډېر مینوال درلودل.

د (زکي مبارک) مهم اثار: ((حب ابن ابي ربيعه))، ((البدائع))، ((مدامع العشاق))، ((الاخلاق عند الغزالي))، ((الموازنة بين العشراء))، ((ذکريات باريس))، ((النثر الفني في القرن الرابع)) (د ده د هغې رسالې عربي ژباړه ده چې د دوکتورا لپاره يې په فرانسوي ليکلې او په پاريس کې پر (۱۹۳۱م) کال چاپ شوې ده.) ((وحی بغداد)) او ((التصوف الاسلامي)) يې نور اثار دي.)) (**۲۷: ۴۲۸-۴۳۹**).

د يادونې وړ ده چې د عربي ژبې د ادبياتو په معاصره دوره کې نور په سلګونو کره کتونکي شته، چې د ټولو پېژندنه دلته ناشونې ده دا يو څو تنه د بېلګې په توګه ياد شول.

## ۲- کره کتنه په دري کې:

عربي ژبه او کره کتنه پر پښتو ژبې او کره کتنې خپل خپل تاثيرات لري، زموږ يو زيات شمېر ليکوالو د خپلو ادبياتو په وده کې د عربي ژبې له معنوي پانګې څخه ډېره زياته ګټه اخيستې ده. په پښتو ادب کې نږدې (۱۴) شعري فورمونه له عربي ژبې راغلي دي. په پښتو کې د بديع او بيان علم تطبيقي اړخ اکثره د عربي ژبې د بديع او بيان علم څخه الهام اخلي.

زموږ يو زيات شمېر شاعرانو او ليکوالو له عربي ژبې څخه هم په کلاسيکه او هم په اوسنۍ دوره کې ګڼ شمېر اثار ژباړلي دي. عربي ژبه لا تراوسه زموږ د ديني نصاب اصلي ژبه ده. د کره کتنې په برخه کې هم له عربي ژبې څخه ځينې کتابونه او ليکنې ژباړل شوي دي.

د عربي ژبې ترڅنګ د فرهنګي شتمنيو له پلوه بله بډايه ژبه فارسي ده. په افغانستان او ايران کې په فارسي ژبې ګڼ شمېر اثار تو کېدلي دي. په دې اثارو کې د کره کتنې اثار هم د پام وړ دي. په تېره بيا په ايران کې په دې برخه کې ډېر زيات کار شوی دی. ايرانيانو نه يوازې په خپله د کره کتنې په برخه کې ګڼ شمېر اثار ليکلي دي، بلکې د نړۍ په نورو ژبو کې، چې په دې برخه کې کوم اثار ليکل شوي هغه يې ډېر ژر په فارسي ژبه ژباړلي او چاپ کړي

دي. خو د ایران په انډول په افغانستان کې په معاصره دوره کې دري کره کتنې ته ډېر کار نه دی شوی.

زموږ په هېواد کې د دري ژبې کره کتنه په اوسني مفهوم ډېر اوږد تاریخ نه لري. ادبي کره کتنه په افغانستان کې د دري ژبې د شعر او ادبي نثر په اړه ظاهراً تر (۱۳۱۰ل، ۱۹۳۱م) کال وروسته د مقالو په لیکلو سره تر څېړنې لاندې نیول شوې ده. پر همدغه کال نامتو پوه او ادیب، (هاشم شایق) د ((منتقد کیست و انتقاد کدام؟)) تر سرلیک لاندې لیکنې د ((ایینه عرفان)) خپرونې د لومړي کال په ځلورمه ګڼه کې خپره کړه، چې له دغه کال څخه تر او سه اته لسیزې تېرېږي. وروسته ددې برخې مینه والو څېړونکو د ادبي کره کتنې په بشپړتیا کې ستره ونډه واخیسته.

پر (۱۳۳۲ل) کال د (محمد حیدر ژوبل) لیکنه د ((امکان نقد در ادبیات دری)) تر سرلیک لاندې د همدغه کال د (ادب) د مجلې په لومړۍ ګڼه کې چاپ شوه. پر (۱۳۴۱ل) کال (پوهاند محمد نسیم نگهت سعیدی)، د(رنه ویلک) او (اوستن واردن) د ((ادبیاتو نظریې)) د کتاب ځینې برخې، چې په ادبي کره کتنې پورې اړه لري، له انګرېزي څخه وژباړلې او پر همدغه کال یې د (ادب) مجلې په (پنځمو او شپږمو) ګڼو کې خپرې کړې. پر (۱۳۴۹ل) کال د ((بحثهای در زمینه ادبیات)) تر سرلیک لاندې یو کتاب چې (پوهاند عبدالقیوم قویم) لیکلی دی، د کابل پوهنتون د ادبیاتو او

بشري علومو د پوهنځي له خوا د کابل پوهنتون په چاپخونه کې چاپ شو ، چې په هغه کې د ادبي کره کتنې په هکله هم بحث شوی دی. پر (۱۳۵۴ل) کال یوه بله لیکنه چې (لطیف ناظمي) لیکلې وه د ((نقد مطبوعاتی و دشواریهای آن)) تر سرلیک لاندې د پښتون غږ مجلې په اوومه او اتمه ګڼه کې خپره شوه. پر (۱۳۵۷ل) کال د همدغه لیکوال یوه بله لیکنه د ((چرا از نقد بترسیم؟)) تر سرلیک لاندې د(آریانا) مجلې په لومړۍ ګڼه کې چاپ شوه. پر (۱۳۵۸ل) کال د ((تیوریهای ادبی و نقد ادبی) په نامه کتاب، چې (پوهاند محمدرحیم الهام) ژباړلی او تالیف کړی دی، د ادبیاتو پوهنځي له خوا د کابل پوهنتون په چاپخونه کې چاپ شو. پر (۱۳۶۱ل) کال یوه لیکنه د ((نگرشی بر نقد ، روند افرینش ادبی و نقد ادبی)) تر سرلیک لاندې د (رهنورد زریاب) له خوا د (عرفان) مجلې په (اوومه) ګڼه کې خپره شوه. بله لیکنه د ((وظیفه اموزشی نقد ادبی)) تر سرلیک لاندې د پوهاند عبدالقیوم قویم له خوا د (عرفان) مجلې په (۵-۶) ګڼه کې خپره شوه. بله لیکنه د ((درباره نقد ادبی)) تر سرلیک لاندې د (بیرنگ کوهدامنی) له خوا په ((مجموعه لکچرهای اموزشی)) کې چاپ شوه. د (رهنورد زریاب) لیکنه دویمه پلا د ((حاشیه ها)) په کتاب کې هم پر (۱۳۶۲ل) کال د افغانستان د لیکوالو د ټولنې له خوا چاپ شوه.

پر پورته یادو شوو مقالو او کتابونو سربېره نورې ډېرې لیکنې هم په دغه کلونو او تر هغو په را وروسته کلونو کې د هېواد په مجلو، ورځپاڼو او جریدو کې د ادبي کره کتنې په هکله چاپ شوي دي. دغه راز په دې اړه سیمینارونه او د کیسو او شعر لوستلو او د هغو د کره کتنې غونډې هم جوړې شوې دي. چې د ځینو بهیرونه له راډیو او ټلویزیون څخه هم خپاره شوي او په دې توګه د ادبي کره کتنې بهیر ورځ تر بلې وده او پیاوړتیا موندله.

د دري ژبې د ادبي کره کتنې په هکله پر پورتنیو ادبپوهانو سربېره یو شمېر نورو ادبپوهانو لکه (پوهاند ډاکتر جاوید)، (پوهاند غلام سرور همایون)، (استاد واصف باختري)، (پویا فاریابي)، (عبدالرازق رویین)، (سرور انوري)، (نیلاب رحیمي)، (پرتو نادري) او ځینو نورو هم د قدر وړ کار کړی دی.

پیاوړي استاد (پوهاند عبدالقیوم قویم) چې له ډېرو لسیزو راپه دې خوا یې د کابل پوهنتون په ادبیاتو پوهنځي کې د دري ژبې او ادبیاتو په څانګه کې د ادبي کره کتنې، ادبي نظریې او ادبي فنونو او ادب تاریخ درس ورکړی او د دې برخې له مخکښانو څخه شمېرل کېږي، هم د ((نقد ادبی)) په نامه یو په زړه پورې کتاب لیکلی دی، چې تراوسه پورې څو ځله چاپ شوی دی. (۲۷: ۴۲۱-۴۲۳).

البته په ایران کې په سلګونو کره کتونکو د فارسي کره کتنې لپاره ډېر کار کړی دی. هم د ژباړې له لارې او هم په خپله د کره کتونکو د

اثارو له پلوه. (داکتر رضا براهني، شفیع کدکني، داکتر زرینکوب، رضا سید حسیني او نور) یوازې د ایران نه، بلکې د سیمې په کچه غټ کره کتونکي ګڼل کېږي.

## ۳- کره کتنه په اردو ژبه کې:

اردو ژبه بله هغه ژبه ده چې زموږ په ګاونډ کې په سوونو ملیونو وګړي پرې ګړېږي او اوس د نړۍ له ډېرو ګڼو ویونکو ژبو څخه ګڼل کېږي. که څه هم اردو ژبه د پخواني ادب د کارونې ډېره اوږده سابقه نه لري، خو له کوم وخته چې دا ژبه د رسنیو، حکومت، هنر او سیاست ژبه شوې، نو ډېر چټک پرمختګ یې کړی دی.

د اردو ژبو په سیمو کې د ولسواکۍ او تمدن چټکې ودې د دې ژبې پراختیا او په تېره بیا د کره کتنې عامېدلو ته لاره اواره کړه. دلته غواړو په اردو ژبه کې د کره کتنې پر څرنګوالي او څومره والي او همدا رنګه د لویو کره کتونکو په باب لنډه رڼا واچوو:

## یو- د اردو کره کتنې لومړنۍ بېلګې:

دا چې په اردو ژبه کې له (وجهي) څخه تر (حسرت موهاني) پورې هر ښه شاعر د کره کتنې یو ښه شعور هم لري، خو څنګه چې په شعر کې (قافیې)، (ردیف) او د (وزن) قید د خیال په بیان او پرله پسې

ځرګندونه کې ستونزې پیدا کوي، له دې امله تر شعر لا په تذکرو، بیاضونو، تقریظونو، دیباچو او داسې نورو لیکنو کې د کره کتنې پانګه له پیله په ډېره ځرګنده توګه موجوده ده. ځکه نو موږ د اردو ژبې پر لرغونې شعري پانګې باندې د پوهېدلو او د هغې د څېړلو لپاره د لرغونو کره کتنیزو اندونو د راسپړلو په لټه د اردو شاعرانو د تذکرو پاڼې را اړوو.

## دوه- د اردو ژبو شاعرانو تذکرې او د کره کتنې لومړني ځرکونه:

د اردو ژبې د شاعرانو تذکرې د دې ژبې پخوانۍ او ارزښتناکه ادبي پانګه ده او په دې ژبه کې د کره کتنې بنسټ د همدغو تذکرو په مټ ایښودل شوی دی. په دغو تذکرو کې چې د کره کتنې بېلګې ترلاسه کېږي، هغو ته سمه او بنسټیزه کره کتنه ویل ستونزمنه خبره ده، خو هغه د اردو کره کتنې لومړۍ کرښې خامخا بلل کېدی شي.

د هند پر نیمه وچه باندې تر انګرېزي واک دمخه، اردو ادب له عربي او فارسي ادب څخه اغېزمن و او ددغو دوو ژبو ادبپوهانو تر لفظ مانا ته زیات ارزښت ورکاوه. د شاعرۍ د کره کولو لپاره یې معاني، بیان، بدیع، عروض او قافیې ته مراجعه کوله. د کره کتنې دغه معیار پخوانۍ اردو کره کتنې هم خپل کړ او ددغو پوهنو له مخې یې شعر او ادب څېړل کېده. لکه د فصاحت، بلاغت، تشبیه،

استعارې، لفظي صنعت، معنوي صنعت، سلاست، روانۍ، خوږ لهجې، خوږ ژبې او جادو کلامۍ غوندې الفاظو او اصطلاحاتو کارونه د کره کتنې په پخوانیو خیالاتو کې عامه شوه.

د (میر) تذکره چې وکتل شي د هغه د کره کتنې بصیرت به ومنل شي. هغه تر عام دود تېر شوی، بې پرې رایه ورکوي او په کره کتنه کې مراعت نه کوي. په (نکات الشعراء) کې چې د (میر) د کره کتنې کومې نظریې اوډل شوي دي، د هغو لنډون دادی: ((شاعري یوازې د ګل او بلبل بیان نه دی، له دې پرته نور ډېر شان هم بیانوي. د شاعر د نویو اندونو په اړخ کې د ژبې ښکلا هم باید په پام کې ونیول شي او د الفاظو په ټاکلو کې ډېر احتیاط وشي. د بیان سوچه والی او د الفاظو او محاورې سمون ته پاملرنه ډېره ضروري ده. د فصاحت او بلاغت اصول هېڅ ډول نه ښایي چې له پامه وغورځول شي.))

د (میر) په کره کتنه کې چې تر ټولو لویه ځانګړتیا تر سترګو کېږي، هغه دده ترخې خبرې دي. دده لهجه زیاتره تونده او کره کتنه یې له طنزه ډکه وه. (حاتم) غوندې ستر شاعر هم دده له طنز او خندا څخه لرې نه و پاتې شوی.

(مصحفي) په خپلو تذکرو کې سوچه او ساده ژبه وکاروله. هغه د لفظونو تور نه غوړاوه، بلکې په څرګندو الفاظو به یې رایه ورکوله. د هغه کره کتنه یوازې تر سترو شاعرانو محدوده وه. خو رایه یې کره او متوازنه وه، په قضاوت کې هغه تر (میر) وړاندې دی. هغه له

خپلو حریفانو څخه غچ نه اخیست، بلکې د هغو پر ویناوو به یې هم نیاومنه رایه ورکوله. (مصحفي) د (انشا) له شاعرۍ سره جوړ نه و، خو کله چې د هغه پر وینا باندې د رایې ورکولو وخت راغی، نو له دیانته یې کار واخیست او د هغه ورتیا یې وستایله او دا یې هم ولیکل چې (انشا) په کم عمر کې په درېو ژبو شعر وایه، خو ځانګړی پام یې اردو ته اړولی و. د هغه مثنوي ((وریجې او شیدې)) د روانې ژبې او فصاحت ډېره ښه بېلګه ده. (مصحفي) له (بقا) سره دوستي درلوده، خو هغه د (بقا) د شاعرۍ پر نیمګړتیاوو پرده ونه غوړوله. (مصحفي) د خپلو هممهالو په اړه سوچه او کره رایې ورکړې دي. د (سودا) د غلطیو او توارد یادونه یې هم کړې ده، خو د هغه روانه طبع یې هم ستایلې ده او هغه یې د اردو قصیدې ((لومړی انځورګر)) بللی دی. هغه په خپلو تذکرو کې ځوان شاعران هم له پامه نه دي غورځولي. د خپلو شاګردانو د ښېګڼو او نیمګړتیاوو په هکله هم بې پرې رایه ورکوي. د خپل شاګرد (آتش) په هکله یې وړاندوینه کړې چې: ((که عمر وفا ورسره وکړي، نو د خپل مهال له وتلو شاعرانو څخه به یو دی وي.)) خو د خپل بل شاګرد (رنګین) بې علمي یې منلې ده.

(شیفته) د خپل پېر بل باشعوره او پوخ کره کتوکی دی. د هغه یوه کارنامه دا هم ده چې هغه په ((ګلشن بې خار)) کې د شاعرانو مستند حالات او غوره ویناوې راغونډې کړي او د هغو د راتلونکي

کره کتنې لپاره یې لار اواره کړې ده. (شیفته) ژور کره کتنیز نظر درلود ، هغه د (میر) غزلې د هغه تر قصیدو ښې بولي او د (سودا) په هکله یې لیکلي چې د هغه غزل تر قصیدې او قصیده تر غزل ښه ده. د (مصحفي) د منتخبو اشعارو ښېګڼې یې ستایلي دي. (غالب) هم د (شیفته) د کره کتنې نظر مانه، په یوه فارسي شعر کې (غالب) ویلي دي چې که زما کوم شعر د (مصطفی خان شیفته) خوښ نه شو ، نو زه هغه په خپل دېوان کې نه پرېږدم. په دې کې مبالغه شوې ده، خو چې څوک (ګلشن بې خار) مطالعه کړي، د شیفته د کره کتنې بصیرت به هرومرو ومني.

د اردو ژبې په شعر کې د کره کتنې لومړنۍ بېلګه د (وجهي) په (قطب مشتري) مثنوي کې لیدل کېږي او په تذکرو لیکونکو کې لومړنی کره کتونکی (میر) بلل کېږي.

لکه څنګه چې (میر تقي میر) په شاعري کې د استاد درجې ته رسېدلی دی. دغسې په تذکره لیکنه کې د لومړیتوب له امله لومړی کره کتونکی هم بلل کېږي.

په هر ډول د څېړنو له مخې د (میر تقي میر) تذکره ((نکات الشعراء)) تراوسه تر ټولو لومړنۍ تذکره بلل کېږي، په دې کې د (۱۰۲) تنو اردو ژبو شاعرانو یادونه شوې ده. د (مولوي عبدالحق) د استدلال له مخې دغه تذکره پر (۱۷۵۲م) کال لیکل شوې ده. دغه تذکره (ډاکتر عبادت بریلوي) پر (۱۹۸۰م) کال په لاهور کې چاپ

کړه. هغه په خپله سریزه کې لیکي چې (مولوي عبدالحق) هغه له خپلې سریزې یوځای د (۱۹۳۵م) کال په جون کې د اورنګ اباد (دکن) له (انجمن ترقي اردو) څخه خپره کړه.

د (میر) او (حمیدالدین) تر تذکرو یو کال وروسته د اردو ژبو شاعرانو (دریمه تذکره) د (فتح علي حسین ګردیزي) ((تذکرة ریخته ګویان)) ده. چې د (۹۸) شاعرانو یادونه په کې شوې ده، له هغو څخه د (۲۵) تنو شاعرانو یادونه (میر) نه ده کړې. تر دې وروسته د اردو تذکرو شمېر ډېر شوی دی. (سید وقار احمد رضوي) په خپل ((تاریخ نقد)) او (سلیم اختر) په ((اردو ادب کې مختصر ترین تاریخ)) کې د څه د پاسه (پنځوسو) تذکرو نومونه یاد کړي دي، خو دغه تذکرې تقریباً ټولې په فارسي ژبه دي. یوازې د (میرزا لطف علي) تذکره (ګلشن هند)) (۱۸۰۱م) لومړۍ تذکره ده، چې په اردو لیکل شوې ده.

د کره کتنیزو رایو له پلوه تر (میر) وروسته د (مصحفي) (تذکره هندی ګویان) د (میر حسن) (تذکره شعرای اردو) او د (شیفته) (ګلشن بې خار) ډېر ارزښت لري. د شیفته تذکره پر (۱۸۳۵م) کال بشپړه شوې، خو وروسته خپره شوې ده. په دې تذکره کې د (۲۴۴) تنو شاعرانو یادونه شوې ده. دا تذکره د (ګلشن بې خزان) په نامه پر (۱۸۴۵م) کال (غلام قطب الدین باطن) په اردو ژباړلې ده.

د (۱۸۵۷م) کال د ازادۍ د جګړې په پایله کې له بده مرغه مسلمانان مات او انګرېزي ښکېلاک واکمن شو. په دې اوښتون کې نه دا چې د مسلمانانو ځانونه، شته، عزت او ناموسونه قرباني شول، بلکې د انګرېزي ښکېلاک په بري او شتون کې د پخواني فرهنګ او اسلامي تمدن مرګ هم تر سترګو شو. په دغه حال احوال کې د نورو هڅو ترڅنګ د ادب نامتو وګړو ادب ته هم پام واړاوه او په دې لټه کې شول چې په ادب کې ژوندي پاتې کېدونکي عناصر په ګوته کړي. دغه مهال د لویدیځ نوې ادبي کره کتنه له پیاوړي او ځواکمن روایت سره رامنځته شوې وه. دغه روایت د خپل طبیعت او معیار له مخې نه یوازې د هند د نیمې وچې د ادبي کره کتنې، بلکې د ختیځ د ادبي کره کتنې له معیار او مزاج سره سر نه خوړ. د دغه نوي بهیر تر اغېزو لاندې د نوو اندونو یو شمېر ادبي کره کتونکي رامنځته شول چې په هغو کې څرګند نوم د (خواجه الطاف حسین حالي) دی. (حالي) د اردو کره کتنې لومړنی باقاعده کره کتونکی بلل کېږي او د هغه کتاب (د شعر او شاعرۍ سریزه) د اردو ادبي کره کتنې لومړنی معیاري کتاب دی.

## درې- د اردو ادب منځمهال پېر:

د (سرسید احمد خان) تر غورځنګ وروسته تر (۱۹۳۲م) کال پورې، یا د هند تر پرمختیا خوښې غورځنګ د مخه موده، له دې

امله چې په دغه موده کې په ادب کې کوم بنسټيز ادبي غورځنګ نه و رامنځته شوی د اردو ادب منځمهالی پېر بلل کېږي.

په دغه پېر کې د ادب د نورو اصنافو په پرتله کره کتنې ته ځانګړې پاملرنه نه ده شوې، خو د (مولوي عبدالحق)، (نیاز فتح پوري) او (ډاکتر عبدالرحمن بجنوري) د ليکنو په بڼه کې د موضوعاتو او اسلوبو تنوع احساسېږي. بيا (مولوي عبدالحق) لومړی محقق او بيا کره کتونکی بلل کېږي. (عبدالرحمن بجنوري) د (محاسن کلام غالب) په کښلو سره د اروپا له نامتو شاعرانو سره د هغه په پرتلنې سره، د غالب د کلام ښېګڼې جوتې کړې دي، په دې ډول د هغه دغه کتاب د ((د پرتليزې يا تقابلې کره کتنې) يوه څرګنده بېلګه ګڼل کېدی شي. (نياز) د کره کتونکي په توګه عصري کره کتنه له هره پلوه اغېزمنه کړې ده. پر دوی سربېره د (مهدي الافادي)، (وحيدالدين سليم)، (عبدالاسلام ندوي)، (کليم الدين احمد) او نورو نومونه هم د يادونې وړ دي.

## څلور- پرمختيا خوښې ادبي غورځنګ:

هر نوی ادبي غورځنګ له خپل مهال څخه بېل د متصادم يا منفرد ادب د تخليقولو له امله پخوانی کره کتنيز معيار ناکافي ګڼي او د ځان لپاره نوې کره کتنې رامنځته کولو ته اړ کېږي. پر دې بنسټ د اردو د پرمختيا خوښو تخليقاتو د کره کولو او له دې سره

سره د پخوانیو اسلوبونو او روایاتو د څېړلو او پلټلو لپاره چې کومه نوې کره کتنه له (۱۹۳۲م) کال څخه رامنځته شوې، هغه د خپلو اصولو او قوانینو له مخې مارکسیستي (کمونیستي یا اشتراکي) کره کتنه ده. ددې کره کتنې بنسټ د (پریم چند) له وینا څخه کېښودل شو. دده تر وینا دمخه لیکنې زیاتره تبلیغي وې. (پریم چند) اعلان کړه چې: ((د ادیب موخه خوښي، د مجلس تود بدل او تفریح نه بلل کېږي. ادب په هېواد پالنه او سیاست پسې تلونکی حقیقت نه دی، بلکې داسې حقیقت دی چې ددې دواړو په مخ کې ډیوه نیسي او وړاندې درومي.))

د هر غور ځنګ په پیل کې د نظریې او ډلو پر مهال نظریاتي مباحث او شخړې هم رامنځته کېږي. له دې امله د کره کتونکو لومړنۍ ډله ډېر ارزښت لري. لکه چې د دغه غورځنګ په مخکښانو کې (سجاد ظهیر)، (ډاکتر عبدالعلیم)، (مجنون ګورکپوري)، (احتشام حسین) او (ډاکتر اختر حسین رای پوري) یادېږي. له دوی څخه ځینو د نظریاتي کره کتنې په ترڅ کې ډېر څه ولیکل. وروسته (سردارعلي جعفري)، (ممتاز حسین)، (عزیزاحمد)، (باري) او نور هم له دې ډلې سره یوځای شول او د ډیالکټیکي ماټریالیزم په رڼا کې یې د ادب او ټولنې د اړیکو د جاج اخیستلو په ترڅ کې د هنر او هنرمند حیثیت او اهمیت وټاکه. د اردو کره کتنې په تاریخ کې دغه پېر ځکه ارزښت لري چې یوازې مارکیسیتي کره کتنې د یوه بنسټیز

ښوونځي ښه غوره کړه او له دې پرته د کره کتنې نورې ټولې نظريې يوازې د انفرادي تمايلاتو حيثيت لري.

د پرمختيا خوښي غورځنګ په پيل کې د بنسټپالنې په ځوړ کې له پخوا سره د بېلتون تمايل، په څرګنده ښکارېده او له (مير) څخه نيولې تر (غالب) پورې ځينې ښه شاعران يوازې په دې ګناه چې په طبقاتي جګړو کې يې په هېڅ ډول برخه نه ده اخيستې، ټول له پامه ولوېدل.

د پاکستان د رامنځته کېدو پر مهال د (سيد عابد علي عابد)، (مولانا صلاح الدين احمد) او تر دوی وروسته د (نياز فتح پوري) کره کتنه په ادب کې د ښکلا پېژندنې پر ارزښتونو او د امريکايي کره کتونکي (جويل سپينګارن) پر تاثراتي کره کتنه منحصره وه، خو د اردو ژبې په مشرو او معاصرو کره کتونکو کې زياتره هغه ښاغلي دي چې مشکله ده څوک يې په ځانګړې توګه د کره کتنې له کوم مسلک سره وتړي. لکه (خليفه عبد الحکيم)، (ډاکتر تاثير)، (حميد احمد خان)، (ډاکتر سيد عبد الله)، (ډاکتر محمد احسن فاروقي)، (وقار عظيم)، (ممتاز شيرين). تر دوی وروسته نور کره کتونکي لکه: (ډاکتر ابو الخير کشفي)، (سحر انصاري)، (ډاکتر خواجه محمد ذکريا)، (جيلاني کامران)، (انيس ناګي)، (جميل جالبي)، (ډاکتر وزير اغا)، (فتح محمد ملک)، (ډاکتر سهيل احمد)، (احمد همداني)، (ډاکتر طاهر تونسوي)، (شبرزاد

منظر)، (انوار احمد)، (نجیب جمال) او داسې نور ډېر د یادونې وړ نومونه دي. د کره کتنې په اړخ کې د (اقبال پېژندنې) او (غالب پېژندنې) ماهرین هم شته، خو د لیکنې د اوږدوالي له امله د هغو له یادولو ډډه کېږي.

په اردو ژبه کې د کره کتنې او څېړنې په هکله لږ کار کېږي، خو څه چې کېږي د معیار او ارزښت له پلوه بشپړ دي، چې دا لویه خبره ده. هسې هم د کره کتنې لپاره د ځانګړي ذهني روزنې، د مطالعې د پراختیا او زیار اړتیا ده چې دا د هر چا په وس کې نه ده.)) (۲۷:۴۶۵-۴۸۲).

# د دريېيم څپرکي لنډيز

په لويديځ کې په منځنيو پېړيو کې علم و ادب اکثره د کليسا تر انحصار لاندې و، نو ځکه پردې مهال په شعر و ادب او په تېره بيا په کره کتنې کې د پاملرنې وړ پرمختګ ونه شو. دې پړاو ان تر رنسانس مهاله دوام وکړ.

د رنسانس په دوره کې چې اروپا په علمي ډګر کې نوې برياوې ترلاسه کولې، (کرتيکوس) نومونه په خپلې پخوانۍ مانا وکارېدله.

پر (۱۴۹۲م) کال يو ايټالوي عالم (پولي زانيو) د کره کتنې په باب څرګندونې وکړې. وروسته (بشرپالو) د (کريتک) او (کرتسيزم) نومونې په ځانګړي ډول د لرغونو متونو د سمون او کره کولو په مانا وکارولې.

وروسته بيا (کانت)، (شلنګ)، (جاکوبي) او (هيګل) دا اصطلاح وکاروله.

په نولسمې پېړۍ کې (الوس ريل) پر دې نومونې لاس پورې کړ او تر دې وروسته نورو ګڼو ليکوالو دا اصطلاح د کره کتنې په مفهوم وکاروله. تر دې وروسته (شيګل او اګلام مولر) ادبي کره کتنې ته زياته پاملرنه وکړه.

د رنسانس په دوره کې (بشرپالو) د لغوي او متني کره کتنې بنسټ کېښود.

په انګلستان کې په (بوالو) پسې (الکساندرپوپ) او په المان کې (ګوتشد) د کره کتنې لړۍ پسې وغځوله. (ګوتشد) په دې نظر و چې په شعر او ننداره کې بايد له نامعقولو او ناباوره شيانو څخه ځان لرې کړو او حقيقت ته بايد مخه کړو.

د فرانسې انقلاب ته په ورځېرمه وخت کې د اروپا د پوهانو نظريات په کره کتنه کې د نويو افکارو د ټوکېدو سبب شول. د (تامس هابز، جان لاک او کنديک) د نظرياتو پر بنسټ زياتره پر حس او تجربې ډډه ولګول شوه. د (لايب نيتس او دکارت) د نظرياتو له مخې عقل ته ډېره پاملرنه وشوه او د ايټالوي کره کتونکي (ويکو) له ليدلوري بيا د ښکلا پوهنې قضاوت ته ډېر ارزښت ورکړ شو.

په المان کې د (کانت) نظرياتو کره کتنه غښتلې کړه. (ژان ژاک روسو) پر ذوق ډډه ولګوله. ددې وضعې په پايله کې د (رومانتيزم

ښوونځی ) رامنځته شو. رومانتیزم د معمول تصویر پر خلاف نه ګل و نه پتنګ او نه شاعرانه منظرې سره ارتباط لري او نه تشو خیالونو سره. دا داسې یو ښوونځی دی، چې د ژوند واقعیتونو ته ګوري او نړۍ لید یې پر ټاکلې فلسفې او رښتیني تعبیر او تفسیر ولاړ دی.

د (فروید ) د نظریاتو له امله خبره (سور ریالیزم) ته ورسېدله. په (سور ریالیزم) پسې په اروپا کې نور ښوونځي لکه (ګرستانیالیزم، ریالیزم، دادایزم، ناتوریالیزم) او ګڼ نور ادبي جریانونه او د کره کتنې بهیرونه راوټوکېدل او ان تر شلمې پېړۍ یې دوام وکړ.

په شلمې پېړۍ کې کره کتنې ببلابېل اړخونه پیدا کړل. ددې پېړۍ د کره کتنې یوه ځانګړنه د هغې تطبیقي اړخ دی. ددې کار علت د روابطو پراخوالی، ژباړې، د رسنیو او نورو تبلیغي ذریعو زیاتوالی دی. ددې پېړۍ د کره کتنې بله ځانګړنه د فلسفې او ټولنیزو ښوونځیو اغېز دی.

په شلمه پېړۍ کې په انګلستان، فرانسې، المان، امریکا او نورې لویدیځې نړۍ کې ګڼ شمېر کره کتونکي راوټوکېدل او په کره کتنې کې نوي نظریات رامنځته شول.

په عربي نړۍ کې، احمد فارس الشدیاق، شیخ ابراهیم یازجي، سلیمان البستاني، جرجي زیدان، ابراهیم عبدالقادر المازني، عباس محمود العقاد ، محمد حسین هیکل، احمد امین، ډاکتر طه

حسین، محمد کرد علي، ذکي مبارک او نورو ډېر کره کتنیز اثار ولیکل. په ایران کې ډاکتر رضا براهنی، شفیع کدکني، داکتر زرینکوب، رضا سید حسیني او نور د ایران غټ کره کتونکي دي. په اردو ادب کې هم کره کتنې ته ډېر کار کړی دی. (میر تقي میر)، (مصحفي)، (مصطفی خان شیفته)، (مهدي الافادي)، (وحید الدین سلیم)، (عبدالسلام ندوي)، (کلیم الدین احمد) او ځینې نور د اردو ژبې مهم کره کتونکي ګڼل کېږي.

# د دریيم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-په فرانسه کې د معاصرې کره کتنې مخکښان څوک دي؟

۲-په معاصره کره کتنې کې الماني کره کتونکي څوک وو او نظريات يې څه وو؟

۳-په امريکا کې معاصره کره کتنه څنګه رامنځته شوه؟

۴-د معاصرې او پخوانۍ کره کتنې ترمنځ اړيکي تشريح کړئ؟

۵-په شلمه پېړۍ کې د انګلستان، هسپانيې او ايټاليا د کره‌کتونکو نومونه واخلئ؟

۶-د عربي ژبې ادبيات او کره کتنه پر پښتو ادبياتو څه اغېز لري؟

۷-د ايران نوميالي کره کتونکي څوک دي؟

۸-په افغانستان کې د دري ژبې نوميالي کره کتونکي څوک دي؟

۹-په اردو ژبه کې د معاصرې کره کتنې څرک چېرته ليدلای شو؟

۱۰-د اردو ژبې معاصر کره کتونکي څوک دي؟

# سپارښتنې

- محصلین دې د عربي ژبې د معاصرې دورې یو یو کره کتونکی وپېژني.
- محصلین دې له ګاونډیو ژبو سره زموږ د ژبې ادبي- کره کتنیز اړیکي د خپلو علمي سیمینارونو له لارې تشریح کړي.

# څلورم څپرکی

## کره کتنیز او ادبي ښوونځي

د کره کتنې په بېلابېلو چاپ شویو اثارو کې د کره کتنې جریانونه او د ادبیاتو بېلابېل ښوونځي اکثره د ادبیاتو د ښوونځیو تر چتر لاندې څېړل شوي دي. کله چې یو ادبي ښوونځی رامنځته شوی او یوه مشخصه محتوایي او شکلي بڼه یې غوره کړې ده، نو بیا ادبپوهانو یا کره کتونکو همغه اثار چې ددې ښوونځي ساحې ته داخلېږي، د همغه ښوونځي د ځانګړنو په رڼا کې مطالعه کړي، شنلي او څېړلي دي. د یوه ادبي ښوونځي د پولو او ځانګړتیاوو تشخیص هم د ادبپوهانو او کره کتونکو له خوا په ګوته کېږي. نو که موږ غواړو د کره کتنې د ښوونځیو په باب رڼا واچوو، ضروري ده چې د ادبیاتو بېلابېل ښوونځي هم وپېژنو، د همدغو ښوونځیو پېژندنه په حقیقت کې د کره کتنې د ښوونځیو بڼه اسانوي. په ځینو څېړنیزو اثارو کې د کره کتنې ښوونځي، ادبي ښوونځي او د کره

کتنې ډولونه تر یوه چتر لاندې څېړل شوي دي، په تېره بیا د کره کتنې ښوونځي او ډولونه. د کره کتنې د ښوونځي او د هغه د یو ډول ترمنځ یو څه توپیر په کار دی. په یوه کره کتنیز ښوونځي کې کېدی شي، د کره کتنې څو ډولونه مطرح شي، خو په پښتو او دري کې اکثره کتابونو کې ددې موضوعګانو په باب توپیرونو ته ډېره پاملرنه نه ده کړې.

دلته لومړی غواړو کره کتنیزو ښوونځیو ته لنډه نغوته وکړو او بیا ادبي ښوونځینو ته لاړ شو.

## ۱- کره کتنیز ښوونځي:

لکه څنګه چې د مخه مو یادونه وکړه، یو شمېر ادبپوهانو د کره کتنې ډولونه، ښوونځي او ادبي ښوونځي د ځینو ګډو خصوصیاتو له امله یو له بله نه دي جلا کړي، دوی تاریخي کره کتنه چې پر یوه ادبي اثر او د هغه پر پنځوونکي باندې د تاریخي حالاتو او حوادثو د اغېز څېړنه کوي، هم د کره کتنې یو ډول ګڼلی او هم یوه کره کتنیز ښوونځی. (پارناس) ښوونځی چې په فرانسه کې رامنځته شوی و، (هنر د هنر لپاره) نظریه یې وړاندې کړې او د ښکلاییزې کره کتنې بیان توجیه کوي، هم یو کره کتنیز ښوونځی ګڼل شوی او هم د کره کتنې یو ډول. ددې تر څنګ اروا پوهنیزه کره کتنه چې د (فروید) د نظریاتو پر بنسټ رامنځته شوې او د انسان دورني او پټ ضمیر له

پلوه یو ادبي څېرې، هم یو ښوونځی او هم د کره کتنې یو ډول ګڼل شوی دی. مارکسستي کره کتنه هم یو ډول ښوونځی بلل شوی دی، په دې ښوونځي یا د کره کتنې په ډول کې داستان او ټولې اړیکي څېړل کېږي، په دې کره کتنیز ډول کې تخلیق د اقتصادي اړیکو او مادي حقیقتونو تابع ګڼل کېږي، دوی (ادب د ادب) نظریه هم راولي.

رومانتیکه کره کتنه هم د کره کتنې یو ډول یو غورځنګ او یو ښوونځی ګڼل شوی دی. د دې ښوونځي اساس پر مسرت حسن او جذباتو ابښودل شوی دی او په یوه ادبي اثر کې هم موضوعات څېړلي. ځینو تحلیلي نقد هم د نقد یو ډول او یو جلا ښوونځی ګڼلی او ځینو نورو یې مخالفت کړی دی.

استقرایي کره کتنه هم په همدې ډول ده، چا یو ښوونځی او چا د کره کتنې یو ډول ګڼلی دی. دا نقد د ادبي اثر تعریف او غندنې ته اړتیا نه لري، استقرایي نقد د ساینسي څېړنو په ادبي اثر کتنه او مطالعه کوي. دا ښوونځی یا د کره کتنې ډول ادبي قوانین په خپله په ادبي اثارو کې لټولي او ادبیات هم د فطري مظاهرو په څېر ارتقالي عمل سره تړلي بولي. دې ته ورته نظریات د کره کتنې په نورو ډولونو کې هم شته چې چا د کره کتنې ښوونځي او چا د کره کتنې ډولونه بللي. تفصیلي بحث به په شپږم څپرکي کې وشي خو اوس دلته پر دې لنډې یادونې بسنه کوو.

## ۲- ادبي ښوونځي:

تر اوسه پورې ادبپوهانو په نړۍ کې ګڼ شمېر ادبي ښوونځي راپېژندلي دي، چې د ټولو سپړل، شنل او معرفي کول دلته ممکن نه دي خو، موږ غواړو دلته دا ادبي ښوونځي په درېو ډلبندیو کې وڅېړو او لنډه رڼا پرې واچوو.

## الف- لویدیز ادبي ښوونځي:

په لویدیځ کې ګڼ شمېر ادبي ښوونځي چې ځینو ادبپوهانو د کره کتنې ښوونځي هم ګڼلي دي، رامنځته شوي دي. موږ دلته غواړو د دې ښوونځیو له جملې څخه ډېر مهم یې په لنډیز سره معرفي کړو.

### ۱- کلاسیزم:

د کلاسیزم ترکیبي کلمه چې له ((کلاس)) یا ((کلاسیک)) کلمو څخه د ((یزم)) روستاړي (لاحقې) په مرسته جوړه شوې، لغوي مانا یې په فرهنګونو کې پخوانی یا لرغونی، اولنی، تاریخي، هغه څه چې په لرغونو او پخوانیو زمانو پورې اړه لري، راغلې ده او په ادبي اصطلاح هغه هنري ادبي ښوونځی (مکتب) دی چې د اروپا د هنر او ادبیاتو په ډګر کې یې لږو ډېر درې پېړۍ (له پنځه لسمې نه تر اتلسمې میلادي پورې) رواج درلود. ښکلا ییز اصول او لارې یې د لرغوني یونان او روم له هنر او ادبیاتو څخه اخیستې دي. ځینو په

ادبي خبرنو کې ددې ادبي مکتب د پیدا ینبت لومړنی ټاټوبی انګلستان، ګڼلی خو په زیاترو کې فرانسه ښودل شوې ده، چې له هغه ځایه الماناو د اروپا نورو هېوادونو ته خپور شوی دی.

## اصول او ځانګړنې:

۱- د لرغونو تقلید: ددې ادبي ښوونځي پلویانو تل دا هڅه کړې چې د لرغونې زمانې د ادبیاتو او ادبپوهانو ادبي نظریات مطالعه کړي او خپل اثار د هغوی په تقلید ولیکي.

۲- د طبیعت تقلید یا پېښې: ددې ښوونځي هر پلوی مجبور و، چې تر هر قانوناو قاعدې مخکې د طبیعت تقلید وکړي.

۳- د عقل اصالت: ددې ښوونځي پلویان (عقل) په وینا او کړنه کې د انسان لارښود ګڼي او د عقلاني اصولو پلوي دوی ته ډېره مهمه ده.

۴- لنډون او څرګندتیا: ددې ادبي ښوونځي په ټولو اثارو کې دې اصل ته پاملرنه شوې ده.

۵- یووالی: د دریو وحدتونو (د زمان ، مکاناو د موضوع یووالي ) قانون ته پاملرنه ده.

۶-اخلاقي: په ادبي اثارو کې دیني او اخلاقي مسایلو ته ډېره پاملرنه شوې ده.

۷-کرکټرونه: خيالي او فوق العاده نه دي، بلکې طبيعي او د لوړو اخلاقو په لرلو سره هر چاته د منلو وړ دي.

۸-ساده ګي او رواني خوږبوي

۹-د اثر په ټولو برخو کې تناسب او هماهنګي مراعاتوي.

۱۰-فصاحت او بلاغت ته زياته پاملرنه کوي.

د کلاسيزم نوميالی استازي: په فرانسه کې (راسين)، (بوالو)، (پاسکال)، (لافونتين)... په انګلستان کې: (جان ميلتون)، (درايدن) او په ايټاليا کې: (الفيری) او (ګلدوني) دي.

## ۲- رومانتيزم:

رومانتيزم د (رومان) له کلمې څخه اخيستل شوی، چې لغوي مانا يې خيالي، افسانوي او عشقي ده او په ادبي اصطلاح د يو ادبي مکتب نوم دی، چې د اتلسمې ميلادي پېړۍ په پای کې د کلاسيک ادبي مکتب د مخالفت له امله په اروپا کې رامنځته شو. په (۱۹مه) پېړۍ کې د نړۍ په ډېرو هېوادونو کې خپور او د ادب او هنر په بېلابېلو څانګو، په ځانګړې توګه انځورګرۍ (نقاشۍ) کې يې ډېره وده او پرمختيا وموندله.

### ځانګړنې:

۱- د خيال او فکر ازادي او بې پروايي.

۲-لوړ تخیل او الوت.

۳-د ښکلا او جمال ستاینه.

۴-د لغتونو او ژبنیو تعبیرونو پراختیا.

۵-له ادبي قید و بند نه ځان خلاصول، ددې مکتب یوه پیاوړي لاروي (ویکتور هوګو) به ویل: ((رومانتسیزم یانې د شرایطو له بې ځایه قیدونو څخه د ادبیاتو ازادي.))

ددې ادبي مکتب نومیالي استازي: په فرانسه کې: (ویکتورهوګو)، (شاتوبریان)، (د ولامارتین)، په انګلستان کې: (ویلیام شکسپیر)، (والترسکاټ او شلي)، په روسیه کې: (میخایل لرمانتوف)، (الکساندر پوشکین)، په ایټالیا کې: (الکساندر مانزوني) او په مجارستان کې: (شاندر پتوفی) دي.

## ۳- ریالیزم:

دا ادبي ښوونځی تر رومانتسیزم وروسته په فرانسه کې رامنځته شو. دغلته یې لومړنی بنسټګر (بالزاک) ګڼل شوی دی. دې ادبي ښوونځي د نولسمې پېړۍ تر لومړۍ نیمایي وروسته رواج وموند او د اروپا د خلکو پاملرنه یې له خیالي او رومانتیکو افکارو څخه د ژوند واقعیتونو ته واړوله.

ددې ادبي ښوونځي پلويانو د ژوند د ورځنيو مسايلو او پېښو په هکله خبرې کولې او واقعيتونه به (ښکلي وو ، ناوړه او که بدرنګ) په خپلو ادبي اثارو کې بيانول.

## ځانګړنې:

۱-په دې ادبي ښوونځي کې د ژوند ، چاپېريال، موجودات او ټولنيز مسايل څنګه چې دي، هسې بيان شوي دي.

۲-د ادبي کيسو موضوعات هغه عيني مسايل دي، چې د ټولنې زياتره خلک ورسره مخامخ دي، لکه: لوږه، بدمرغي، رنځوري، دوستي، دښمني، کرکه او کينه، زياتره د خلکو روحي او جسمي غوښتنې او اړتياوې.

۳-د کيسو اتلان د ټولنې له هرې طبقې څخه غوره کېږي، کړنې، اخلاق او عادات يې بايد واقعي او عيني وي، نه دا چې خيالي او له واقعيت څخه لرې.

۴-په ادبي اثارو کې د پېښو د ټولو جزئياتو او اړخونو ژورې او دقيقې راخيستنې ته ډېره پاملرنه.

۵-د واقعيتونو د درک لپاره ډېر غور، دقت، څيرکتيا ، څېړنه او پلټنه، د ادبي اثارو د ليکوال لپاره ډېره ضروري وه.

لنډه دا چې: ربښتیا، اسانتیا، ښکلا او د واقعیتونو بیانول د دې ادبي ښوونځي غوره ځانګړنې دي.

استازي: په فرانسه کې: (بالزاک)، (استاندال)، (مادام بواری)، په انګلستان کې: (چارلیزدیکنس)، (ویلیام ثاکري)، په روسیه کې: (تولستوی)، (داستا یوفسکی)، (ماکسیم ګورکي)، په المان کې: (دهمل) او (هولتز) په امریکا کې: (ارنست همینګوی) او (ویلیام فاکنر).

## ۴- ناتورالیزم (نچرلیزم):

ناتورالیزم کلمه له ادبي پلوه په ادبیاتو کې د طبیعت دقیق تقلید او د ډېرې زیاتې ستاینې په مانا ده او په اصطلاح کې د یو ادبي ښوونځي نوم دی، چې په ادبیاتو کې د علمي او تجربه یي طریقې پر کارولو باندې باور لري.

دا ادبي مکتب د نولسمې پېړۍ په پای کې په فرانسه کې رامنځته او د شلمې پېړۍ تر لومړیو پورې یې ډېره وده او پرمختیا وکړه، ډېر پلویان یې پیدا کړل.

د دې ښوونځي پلویانو باور درلود: څرنګه چې هر لیکوال یا شاعر د خپل چاپېریال او طبیعي شرایطو، لکه: نژاد، روزنې او د خپل وراثت د عواملو تر اغېز لاندې وي، جسمي او روحي ځانګړنې یې پر اثارو هم اغېزه کوي، لکه څنګه چې علمي مسایل څېړل کېږي، د

دوی اثار دې هم دغه ډول تر څېړنې او کره کتنې لاندې ونیول شي. دوی په دې هڅه کې وو چې د ادبیاتو لپاره هم لکه د نورو علومو په څېر د سنجش معیارونه پیدا کړي.

ځانګړنې:

۱-دا چې لیکوال یا شاعر د خپلو تجربو او ازمایښتونو بیانوونکی دی، باید په لیکنه یا شعر کې د خپل تخیل او هیجاناتو له دخالت څخه ځان وژغوري.

۲- په شعر او ادب کې دې دیني او اخلاقي مسایل نه راوړي.

۳-د ادبي اثارو په تخلیق او پنځونه کې دې د خلکو د محاورې ژبه وکاروي، چې لیکوال او شاعر د واقعیتونو په بیانولو کې ټینګ پاتې شي، څه کمی او زیاتی دې په کې ونه کړي.

۴-پر جبر باندې د باور لرلو او د خلکو ذات ته په کتو، د دې مکتب پلویان د انسانانو باطن ته ګوري او په هغه کې چې څه ناولتیاوې او فسادونه ګوري، هماغه د خپل قضاوت بنسټ او اساس ګرځوي.

۵-په دې ادبي ښوونځي کې د وراثت مساله ډېره ارزښت لري او د دوی په نظر د ادیبانو او هنرمندانو روح او فکر د جسماني او طبیعي عواملو تر اغېز لاندې راځي.

نومیالي استازي: په فرانسه کې: (امیل زولا)، (ګي دومو پاسان)، په امریکا کې: (جک لندن)، په انګلستان کې: (جوج مورو)، په

المان کې (کرتزر) او (هولتس) او په هالنډ کې (مارسل امانتس) دي.

## ۵- سمبولیزم:

د (سمبول) لغوي مانا (نښه) یا (علامه) ده. سمبولیزم په اصطلاح کې هغه ادبي ښوونځی دی، چې د (۱۹)مې پېړۍ په پای کې د (ریالیزم) (ناتورالیزم) او (پارناس) ادبي مکتبونو پر خلاف، په فرانسه کې د نومیالي شاعر ( شارل بودلر) په مشرۍ منځته راغی. دوی اعلان وکړ چې په شعر کې هېڅ ډول قید او بند نه مني. شعر باید د وزن او قافیې له قید څخه ازاد وي؛ ساده، روان، ښکلی او اهنګوال وي، خو دا لازمه نه ده چې د ټولنې د ټولو طبقو لپاره دې وړاندې شي. دوی په شعر کې عجیبه نا اشنا مسایل مطرح کول، له ژوند او ټولنې څخه یې لرې کاوه، داسې څه به یې په رمز او اشارو وایه چې عام خلک پرې نه پوهېدل.

ځانګړنې:

۱-په شعر کې ابهام او په څرګند ډول د مسایلو له بیانولو سره مخالفت.

۲-د ژوند په هکله بدبیني او ناهیلیتوب او پر نېکمرغۍ باور نه لرل.

۳- پر غیبي او له دې نړۍ څخه پرته پر بلې نړۍ باور او عقیده لرل.

۴-پر دې نړۍ باور نه لرل او پر دې باور نه کول چې زموږ شته والی دی، چې دې نړۍ ته شکل وربښي.

۵-د ادبي مطالبو په بیانولو کې د یوې داسې لارې اختیارول، چې هر څوک یې لولي په مخصوص ډول په کې له خپلې روحیې سره سم خپل حال او مقام درک کړي.

نومیالي استازي: په فرانسه کې: (شارل بودلر)، په بلژیک کې: (موریس مترلینګ)، په ایرلنډ کې: (ویلیام باتلر)، په روسیه کې: (ولادیمیرسولوویف) او په انګلستان کې: (دیوید هربرت لارنس) او نور.)) (۲۲: ۹۷-۱۰۳).

## ۲- سور ریالیزم:

سور ریالیسم ښوونځی پر (۱۹۲۴م) کال د (اندره برتون) په وسیله رامنځته شو، هغه وایي: ((ادبیات باید د هغه فکر له تظاهراتو او څرګندتیاوو، چې له ټولو بندیزونو ازاد وي، پرته نور له هیڅ شي سره سروکار ونه لري، نوموړی وایي: (( سور ریالیسم هغه خپلسری فعالیت دی چې د هغه په واسطه کولای شو، په ګړنې یا لیکنې او یا هم په کوم بل ډول د فکر د حقیقي او واقعي فعالیت بیان وړاندې

کړو. )) سور ریالیسم له هر هنري او اخلاقي قید څخه ازاد ، د عقل له ملاتړ پرته، د فکر له وړاندې کولو څخه عبارت دی.

څرنګه چې (اندره برتون) او د هغه دوست (لویي اراګون) دواړه ډاکتران وو ، نو ځکه خو غواړي د (فروید ) هغه نظریه چې د (پټ ضمیر ) په اړه یې درلوده، ادبیاتو ته داخله کړي. ددې ډلې په اند هر څه چې د انسان په مغز کې ګرځي، که چېرې تر تفکر د مخه ولیکل شي، دا داسې نا اګاهانه مطالب او داسې خپلسرې خبرې دي، چې بېوا که له خولې څخه راوځي. سربېره پر دې خیال او تصور د سور ریالیسم لومړني مواد ګڼل کېږي، (سور ریالیستان ) وایي اکثره تخیلات او تصورات د انسان په فکر کې شته، خو انسان د اخلاقي، سیاسي، ټولنیزو او دودیزو بندیزونو له امله د هغو له بیان څخه ډډه کوي او دا تصورات د خپل پټ ضمیر تل ته سپاري، خو دا ډول تخیلات بیا اکثره په ټوکو ټکالو ، خوبونو او هغو خبرو کې، چې له کومې ارادې پرته د انسان له خولې راوځي، ځان ځرګندوي.

(سور ریالیستان ) بیا په ربښتیني او صادقانه ډول د دغه ډول وهمونو ، افکارو او نظریاتو د بیان پلویان دي. په لنډه توګه ویلای شو چې سور ریالیستان په حقیقت کې همغه فعالیتونه د انسان اصیل فعالیتونه ګڼي چې د انسان په درانه کې د یو خوب او خیال په شان موجود وي، خو واقعي بڼه نه لري، یانې همغه د ناخبرې پټې نړۍ فعالیتونه. د (سور ریالیستانو ) په فکر شعر د انسان د همدغې

پټې داخلي نړۍ يو ډول غبرګون او فعاليت دی. د سور رياليستانو د ښوونځی نامتو شخصيتونه پر (برتون) او (اراګون) سربېره، (بل الوار) او (اپوليز) دي. (۱۸: ۱۲۳).

## ۷- اګسزسيتانسياليزم:

((سره له دې چې اګزيستانسياليزم په واقعيت کې يو ډول فلسفي ښوونځی دی، خو (ژان پل سارتر) هغه ادبياتو ته داخل کړی دی، سارتر د ((د وجود اصالت)) ته معتقد دی او وايي: ((په انسان کې هستي تر ماهيت وړاندې ده، ياني لومړی ((وجود)) دی او تر هغه وروسته همدا وجود ((ماهيت)) پيدا کوي، دا نو په واقعيت کې خپله انسان دی چې خپل ماهيت ټاکي، ځکه خو نو يو سړی بايد پر هغې لارې لاړ شي چې دده خپله ځانګړتيا ده او د هغې په غوراوي کې ازاد دی. څرنګه چې انسان خپل ماهيت په خپله جوړوي، نو ځکه د همېشنۍ هڅې په لټه کې دی، ځکه نو انسان په هېڅ وجه د طبيعت او تاريخ د لاس نانځکه نه ده، ذاتاً ازاد دی او د هغه د ژوند ماهيت د همدې ازادۍ په حقيقت کې دی. خو دا ازادي يوازې په انتخاب کې ده. انسان پر دې ازادۍ محکوم دی او نه شي کولای له هغې څخه وتښتي. له همدې کبله ذاتاً مسول او ژمن دی. ځکه خو سارتر په دې ډول ((ادبي التزام)) او ((مسوليت)) ته رسېږي او د ادبياتو اصلي جوهر همدا ((ژمنتيا او التزام)) ګڼي.

د (سارتر) په نظر انسان د دې لپاره چې خپل ماهیت جوړ کړي، پر یو ډول عمل لاس پورې کوي او دا ((عمل)) ادبیات دي. نو څرنګه چې موږ په خپله په یو عمل ځان بدلوو، دغه کار په خبرو هم کوو. د یو لیکوال کار دا دی چې نړۍ او په تېره بیا یو انسان نورو ته څرګند کړي، چې هغوی د هغه شي پر وړاندې چې ورڅرګند شوی دی، خپل مسوولیت څرګند کړي او مسوولیت ومني. لیکوال باید داسې کار وکړي چې هېڅوک له نړۍ څخه ناخبره پاتې نه شي او هېڅوک ونه کړای شي خپل ځان له هغې څخه جلا وانګېري. لیکوال یې ښکاره کوي او لوستونکی یې پنځوي، یانې هغه نړۍ چې ده ته د ادبي اثر له لارې وړاندې شوې، هغه له سره پنځوي. په دې ډول نو لوستونکی نور ناپېیلی او ناکاره نه دی. په عمومي ژوند کې خپله ونډه او مسوولیت پر غاړه اخلي. د (سارتر) په نظر ادبي نړۍ باید له واقعي نړۍ څخه ارماني او تحولي نړۍ ته د تېرېدو لاره وي او هم باید د هوسونو ښار ته د تېرېدو مورچل وي.)) (۱۸: ۱۲۴).

## ۸-سینتیمنتالیزم:

((دغه ګړنه یا اصطلاح له فرانسوي کلمې (Sentimental) څخه چې مانا یې احساسي یا احساساتي کېدی شي، اخیستل شوې ده. دا ادبي ښوونځی د اتلسمې پېړۍ په دویمه نیمایي کې رامنځته شوی دی.

څېړونکي وايي: دا مکتب په اروپا کې د کلاسيزم د ادبي مکتب پرځای د فيوډالي نظام د زوال او د پانګوالي نظام له ودې سره يوځای په هغه مهال کې ايجاد شوی و.

دا هغه مهال و چې د فيوډالي او پانګوالي سيستمونو ترمنځ سخته مقابله او مبارزه روانه وه. ددغه هنري ادبي ميتود د پيدا ايښت لومړنی ځای انګلستان ګڼل شوی (هلته فيوډالي نظام له پښو لويدلی او د پانګوالۍ له واکمنۍ سره يوځای نوموړي ادبي مکتب خپل شتون، د کلاسيسزم د پاتې شونو پر وړاندې څرګند کړی دی.)

ددې ادبي ښوونځي بنسټ ايښودونکی انګليسي ليکوال (لورينس ستيرن) ګڼل شوی دی. ده په فرانسه کې د خپل مسافرت د خاطراتو يو اثر (سينتيمينتال)، (د عاطفي مسافرت، د احساساتو مسافرت) وليکه، له همدې کبله دې ادبي مکتب ته د (سينتيمنتاليزم) نوم غوره شو. د نوموړي ادبي مکتب پالونکو او پلويانو د لوړې طبقې د ظلمونو او تېريو پر وړاندې د مظلوم ولس غږ اوچتاوه او هم يې د کارګرې طبقې د زيار او زغم ستاينه کوله، د کلاسيزم د (تعقل پالنې) پر ځای يې د (عاطفې او احساس پالنې) پلوي کوله. ددې ادبي مکتب د انځورونې چاپېريال ښوزله کورنۍ وې. په دې ادبي مکتب کې د رياليزم او رومانستيزم د ادبي مکتبونو ځانګړنې هم څرګندې دي.

د ځینو سینتیمنتالیستانو ، لکه (روسو ، دیدرو ، لیسنګ ) په اثارو کې د ریالیزم نښې او ځانګړنې هم شته. همدا ډول د (توماس ګري، یونګ ) په اثارو کې بیا د رومانتیزم ځانګړنې ډېرې دي.

د نوموړي ادبي مکتب استاد او زده کوونکو هڅه کوله، چې د ټیپیکو اشخاصو او تکرارېدونکو پېښو پر ځای، په چاپېریال کې واقعي پېښې او کسان انځور کړي. له همدې امله د دوی پاملرنه د چاپېریال د شرایطو د ترسیم او تصویر پرځای، په ژوند کې د واقعي اشخاصو د ژوند پېښو ، کړو وړو ، احساساتو ، دردونو او د هغو د داخلي نړۍ انځورونې او ترسیم ته ور اوښتې وه. ځکه خو د دوی اثارو تر ډېره، د مستندو مکاتبو او ورځنیو یادښتونو بڼه او رنګ درلود. دوی تل د انساني احساس داخلي او روحي نړۍ له مبالغې سره یوځای انځوروله، دوی د مبالغې په مرسته په ټولنه کې ځانګړې پېښې او فوق العاده اشخاص په هنري انځورنه لوستونکو ته وړاندې کول. دغو پېښو ته یې په ټولنه کې تعمیم نه شو ورکولای، ترسیم به یې ټیپیک نه و ، ځکه خو یې د ریالیستي مکتب ځانګړنې خپلې نه کړای شوې.

ددې ادبي مکتب اصلي زانګو انګلستان بلل شوی دی. هلته ددې ښوونځي پلویانو ، بې عدالتي او بې انصافي غندله، خلک یې د پرهېزګارۍ، تقوا او شرافت لور ته هڅول، د (پسیمیزم) تلقین یې کاوه چې په دې لړ کې د (هولډ سمیت) ، (یونګ) او نورو نومونه

یادېږي. په جرمني او فرانسه کې بیا سینیتمنتالیزم نه یوازې عواطف او احساسات ترسیمول، بلکې د مبارزې خواته یې هم بلنه ورکوله، چې له انګلستان سره یې توپیر درلود. په روسیه کې بیا په ځانګړو شرایطو کې دغه ادبي مکتب راوټوکېد ،له لویدیځ سره یې ښکاره توپیر درلود. دغه ادبي بهیر په روسیه کې د خواصو په خدمت کې و ، له بلې خوا د بزګرانو له پاڅون څخه یې هم وېره درلوده. مخ پر ودې پانګوالۍ څخه یې هم وېره درلوده، نه یې غوښتل چې فیوډالي او نیمه مریتوب مناسبات په ټولنه کې پایته ورسېږي.)) (۱۴: ۲۳۷-۲۳۸).

## ۹- نهیلیزم:

((په ادبیاتو کې یو بل جریان یا مکتب بیا د (نیهیلیزم) په نامه یادېږي د نیهیلیزم کړنه یا اصطلاح د لاتیني ژبې له (nihil) څخه جوړه شوې، چې مانا یې ده: (هېڅ شی) دا یو داسې فلسفي او ادبي جریان دی چې هر ډول مثبتې نظریې په مطلق ډول ردوي، منلو ته یې غاړه نه ږدي. نوموړې کړنه د لومړي ځل لپاره د جرمني فیلسوف (جاکوبي) له خوا وټاکل شوه، وروسته بیا د ډېر مشهور ادبي مکتب په نامه نومول شوې ده.

## ۱۰- فورمالیزم:

فورمالیزم کلمه د لاتیني له (forma) څخه چې بهرنۍ، ظاهري، شکل او بڼې ماناوې لري، اخیستل شوې ده. دې ته په ادب کې د نقد او ادبي تیورۍ له نظره یو ارتجاعي ادبي بهیر ویل شوی دی. د مضمون منځپانګه او مفکوره په پام کې نه نیسي، یوازې ظاهري بڼې، د الفاظو ترتیب، ترکیب او ښایستونو ته پاملرنه کوي؛ ظاهري ښکلا ته ارزښت ورکوي.

فورمالیستان په شعر او ادب کې له قافیو، فنونو، مبالغې، پېچلو ترکیبونو او ظاهري جمال سره مینه لري، هنري اثار له واقعیت او حقیقي ښکلا او جمال څخه لرې کوي.

## ۱۱- ایماژینیزم:

ایماژینیزم هم یو کوچنی ادبي جریان یا مکتب دی چې ځینو فورمالیستیک ادبي جریان ته ورته او ځینو یې یو جز ګڼلی دی، چې ډېر شهرت نه لري. دغه ګړنه د فرانسوي (Emage) (شکل، بڼه) له کلمې څخه جوړه شوې ده، چې د (ایماژیزم) په شکل هم لیدل کېږي. د دې جریان په نظر په ادبي اثر کې باید ژبه په ظاهري توګه په داسې نوې بڼه وکارول شي، چې وړاندې یې ساری موجود نه وي. اثر کې باید فکري تسلسل او منطق موجود نه وي. (هیوم پاوند)، (لوبیل) او داسې نور ددې جریان پلویان ګڼل شوي دي. دوی په

روسیه کې د (ایماژیستانو) په نوم یوه مطبعه هم درلوده. د دوی شعار د نوي فورم ایجاد و چې هېڅ مفکوروي اړیکي ونه لري او له مضمون څخه فورم خپلواک وي.

## ۱۲- پارناس ښوونځی:

د (۱۸۶۰م) کال په شاوخوا کې د ادبیاتو په باب شدید بحثونه پیل شوي وو. یوه ډله هغه شاعران چې د رومانیزم پر ضد یې سر پورته کړی و او (هنر د هنر لپاره) د نظریې تر سخت تاثیر لاندې راغلي وو. سره راټول شول، ادبي ټولنې یې جوړې کړې،ددې شاعرانو په سر کې (لوکنت دولیل) و، چې شاوخوا ټول شاعران یې تر اغېز لاندې راوستي وو. د باید ددغه ادبي ښوونځي تر ټولو مهم استازی وګڼل شي. ده پر (۱۸۶۶م) کال د معاصرو (پارناسانو) په نوم ددې شاعرانو د شعرونو یوه ټولګه خپره کړه، څرنګه چې دا کتاب د لوستونکو خوښ شو، تر یو مهال وروسته یې د هغې دویم او درېیم ټوک هم پسې خپاره کړل، ورو ورو دا شاعران د (پارناسیانو) په نامه یاد شول. په پای کې د (اندره تریو) په نامه یوه کره کتونکي، په خپل یوه اثر کې چې (پارناسیانو) شاعرانو ته یې ځانګړی کړی و. د (پارناسیزم) اصطلاح وکاروله.

## ۱۳- امپرسیونیزم:

دغه ګړنه له فرانسوي کلمې (impression) څخه اخیستل شوې چې مانا یې (خاطره، تاثر) کېږي. نوموړی نوم یې په (پاریس) کې د انځورګرۍ له یوه مکتب څخه اخیستی دی. دا د پانګوالۍ ادب یو هنري ادبي مکتب پېژندل شوی، چې د نولسمې پېړۍ په (۲۰) کلونو کې رامنځته شو، په وروستیو دېرشو کلونو کې، چې د شلمې پېړۍ پیل و، دغه ادبي مکتب په غربي هېوادونو کې وده وکړه. ددې ادبي مکتب پلویان د هنر او ادب دنده، د لیکوال او هنرمند هغه احساسات، خیالات او خاطرات بولي، چې دی ورڅخه اغېزمن شوی وي او د انځورګرۍ په بڼه یې لیدونکو ته وړاندې کوي. دا ادبي مکتب یا جریان یو څه ناتورالیزم او ریالیزم ته ورنږدې دی، د ژوند ریښتینې انځورګري کوي او فردي احساس د فورم په مبالغې کې څرګندوي.

## ۱۴- کونستروکتیویزم:

دا ګړنه د لاتیني ژبې له (construcio) څخه چې مانا یې (جوړونه) کېږي، اخیستل شوې ده. نوموړی ادبي مکتب تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته رامنځته شوی دی.

د ادب او هنر د مفکورې او فکري مضمون له ټولنیز ارزښت څخه سترګې پټوي. ددې ښوونځي د منځته راتلو وخت د طبیعي علومو

او تخنیک د بریو وخت ګڼل شوی دی، پلویانو ته یې همدا ویل کېدل چې باید پوهې او تخنیک ته درناوی وشي؛ که دغه پوهه (علم، تخنیک) د هرې ټولنیزې طبقې په لاس کې وي. ددې ادبي مکتب پلویانو فکر کاوه چې د زړې نړۍ ادب او هنر زاړه شوي دي اوس نه پکاریږي. د زړو شیانو ځای اوس نوي ماشین، نوي تخنیک او نورو پرمختیاوو نیولی دی. دوی وایي چې زموږ د وخت هنري اثار همدغه پرمختللی ماشین ګڼل کېږي. دغه ډله لومړی، پر (۱۹۲۴-۱۹۳۰م) کال په پخواني شوروي اتحاد کې جوړه او د (کونستروکتیویستانو مرکز) تر سرلیک لاندې یې فعالیت کاوه. د دوی په ادبي هنري اثارو کې د (کونستر کتیویزم) اغېزې موجودې وې، خو وروسته بیا د هغو په هنري اثارو کې هغه ناوړې اغېزې ژر له منځه ولاړې او ډېر ښه هنري اثار ایجاد کړل.

## ۱۵- اوربانیزم:

له لاتیني کلمې (اوربان) څخه چې (ښاري) مانا ښندي، را اخیستل شوې کلمه ده. فرانسوي اوربانیزم د شلمې پېړۍ د دویمې لسیزې په شاوخوا کې رامنځته شوی و.

یوه پانګوالـه تیوري ده، چې غواړي ټولـه کلیوالي مـادي او معنوي شتمني باید په لویو ښارونو کې تمرکز ومومي او د بانډو او کلیو په زیان ګام اوچت کړي. دوی په هنر او ادب کې پانګوالي نظام، په

لویو ښارونو کې صنعت، تجارت، ترانسپورت او د تخنیک حرکت ستایي. د انسان پر ځای ماشین ته ارزښت ورکوي او د پانګوالۍ سندرې وايي.

## ۱۶- دادايیزم:

نوموړې ګړنه له فرانسوي کلمې (Dadaisme) څخه اخیستل شوې ، مانا یې (د لرګي اس) ده. دغه ادبي مکتب د لومړۍ نړیوالې جګړې پر مهال پر (۱۹۱۸م) کال ایجاد شوی دی. ډېر دوام یې نه دی کړی، دې ادبي مکتب په شعر کې د بې مانا الفاظو او تصویرونو راوړل دود کړي او د مفاهیمو او انځورونو افاده یې خورا کمزورې وه. (دادايیزم) بیا په سویس کې د انارشیستو روڼ اندو ترمنځ او د هغو په شکل کې رامنځته شوی و. په فرانسه کې تر جګړې وروسته، فرانسوي دادیستانو د داسې هنر او ادب نارې سورې وهلې چې له خپلې ملي دندې څخه بې برخې وي. په فرانسه کې یې بیا د میلیتاریزم او پانګوالي نظام پر وړاندې ثرګندونې کولې.

## ۱۷- اونانیمیزم:

فرانسوي کلمه ده له (unanime) اخیستل شوی مانا یې (متفق، یووالی) ده، دې ادبي جریان د بشرپالنې تبلیغ کاوه.

# ۱۸- ویریزم:

دا کلمه له لاتیني ریښې ویروس (verus) او له ایټالیایي ژبې (vera) څخه اخیستل شوې ده، مانا یې (رښتیا - ریښتوني) کېدی شي.))(۱۴: ۲۵۳-۲۵۲).

د نړیوالو ادبي ښوونځیو ترڅنګ، په پښتو او دري ژبو کې هم د ځینو ادبپوهانو او کره کتونکو په باور او نظر یو شمېر ادبي ښوونځي شته، که څه هم د دې ښوونځیو په باب د نظر اختلاف شته، چا د ښوونځیو، چا د سبکونو او چا هم د ادبي جریانونو په نومونو یاد کړي دي، دلته به د دې ښوونځیو په باب هم لنډه رڼا واچوو:

## ب- پښتو ادبي ښوونځي:

((مخکې تر دې چې د پښتو ځینې ادبي ښوونځي درو پېژنو، باید وو ایو چې د پښتو، د ادبي جریانونو او مکتبونو په باب تراوسه بشپړ، منظم او اکاډمیک څېړنیز کار نه دی شوی او په دې باب نورو ډېرو څېړنو ته اړتیا لیدل کېږي. کله چې د پښتو د ادبي تاریخ زریني پاڼې را اړوو د ځینو داسې سترو ادبي جریانونو بېلګې مخې ته راځي چې د ادبي مکتب بنسټیزې ځانګړنې په کې ځرګندې دي، زموږ پیاوړو څېړونکو او ادبپوهانو په خپلو لیکنو کې د غه ادبي جریانونه د پښتو ادبي ښوونځي بللي او نومولي دي)) لکه څنګه چې مو پورته یادونه وکړه، ځینو نورو بیا دا ادبي سبکونه بللي

اوځينو ورته د ادبي جريانونو نوم ورکړی دی. د نظر له دې اختلاف سره مورږ غواړو په نسبتاً معموله مانا دا جريانونه، ښوونځي يا سبکونه دلته دادبي ښوونځو تر نامه لاندې په لنډه توګه دروپېژنو:

## ۱- روښاني ادبي ښوونځی:

دغه ادبي مکتب د لسمې هجري پېړۍ په دويمه نيمايي کې رامنځته شوی، بنسټګر يې پياوړی عالم او ليکوال بايزيد روښان دی. نوموړي د خپلې تصوفي او عرفاني لارې د تبليغ او خپراوي لپاره فرهنګي هلې ځلې پيل کړې. په ليکنو کې يې ځانګړې لاره او سبک رامنځته کړ، ډېر پلويان يې وموندل، هغوی دده لاره تعقيب کړه او دغسې روښاني ادبي تصوفي ښوونځی جوړ شو. ددې ښوونځي د پياوړو ليکوالو او شاعرانو په ډله کې دا لاندې نومونه د يادونې وړ دي:

ملا ارزاني، علي محمد مخلص، دولت لواڼی، اباکر کندهاری، واصل روښاني، ميرخان روښاني، ميرزاخان انصاري، اورکزی، قادر داد او نور...

## ادبي ځانګړنې:

۱-د تصوف او عرفان پېچلو مسايلو او اصطلاحاتو په پراخه کچه پښتو ادب ته لاره کړې. يا په بله وينا: عرفان د يو مسلک په توګه پښتو ادب ته راغلی دی.

۲-د عربي او فارسي شاعرۍ زياتره شکلي فورمونه، لکه: قطعه، رباعي، قصيده او نور پښتو ادب ته راننوتي او شاعرانو د عربي او فارسي ژبو د شاعرانو په څېر مردف دېوانونه جوړ کړي دي.

۳-په نثر ليکنو کې مسجع نثر رواج شوی دی.

۴-اخلاقي او ديني مسايل په شعر او ادب کې زيات شوي، حماسي او ملي روحيه په کې ډېره تته او کمزورې ښکاري.

۵-دا چې ددې دورې زياتره ليکوال او شاعران د هند پر ځمکو اوسېدلي او يا هلته تللي راغلي دي، د هندي فرهنګ اغېزې پرې جوتې ليدل کېږي.

۶- پر پښتو ادب د عربي او فارسي ادب اغېز ډېر زيات شوی دی. ددې دورې ليکوالو او شاعرانو په خپله هم په عربي او فارسي ژبو اثار ليکلي او هم يې ژباړې ترې کړې دي.

## ۲- خوشال ادبي ښوونځی:

دغه ادبي ښوونځی کله کله په ادبي څېړنو کې د ((ختکو ادبي مکتب)) په نوم هم ياد شوی دی. په يوولسمه هجري پېړۍ کې منځته راغلی او بنسټ ايښودونکی يې د پښتو ژبې پياوړی شاعر او ليکوال، د تورې او قلم خاوند (خوشال خان خټک) و.

د نوموړي ادبي لاره دده زامنو ، لمسيانو او نورو پلويانو د زړه په وينه او مينه پاللې او (خوشال ادبي مکتب) يې جوړ کړی دی.

ددې مکتب نوميالي پلويان: اشرف خان هجري، عبدالقادر خان ختک ، سکندرخان ختک ، صدرخان ختک او نور دي. د خوشال د کورنۍ پر غړو سربېره نورو ګڼو شاعرانو هم د خوشال ادبي ښوونځی پسې تعقيب کړ.

## ادبي ځانګړنې:

۱-پښتو ادب يو نوي پرمختيايي پړاو ته داخلېږي او د ودې او پراختيا لپاره يې شعوري هڅې پيل کېږي.

۲-د مسجع او متکلف نثر پرځای ساده، روان او د خلکو محاورې ته نږدې نثر ليکنه پيل کېږي او د ختکو ځانګړی سبک رامنځته کېږي.

۳-په شاعرۍ کې حماسي، رزمي او ملي روحيه ډېره پياوړې کېږي او د پښتنو له ټولنيز ژوندانه رنګ اخلي.

۴-پښتو شعر د مضمون له پلوه بشپړېږي. پر پخوانيو عشقي، عرفاني، وعظيه او اخلاقي موضوعاتو سربېره د ټولنيز ژوند بېلابېل موضوعات، تاريخي پېښې، پر ټولنه انتقاد ، له وطن او

قوم سره د میني احساسات په شعر او ادب کې په پراخه کچه منعکس کېږي.

۵-پښتو ادب ته د شرقي شاعرۍ ټول انواع؛ پر غزل، قصیدې، رباعي، مثنوي او مربع سربېره چې موږ یې تر دې د مخه دوره کې هم نمونې لرلې، مسدس، مثمن، ترکیب بند ، ترجیع بند ، ذوالقافیتین او نور ډولونه په پښتو شاعرۍ کې په پراخه کچه رواج مومي.

۶-د پښتنو ملي کیسې (لکه ادم خان او درخانۍ، دلی او شهۍ) ولیکل شوې، له نورو ژبو څخه هم ډېرې کیسې وژباړل شوې او د پښتو د کیسه ییز او حکایتي ادب پانګه درنه شوه.

۷-ددې دورې ادبیات د موضوع د رنګارنګۍ او هنري ارزښتونو له پلوه ښه بډایه او د سیمې له ادبیاتو سره د سیالۍ جوګه شول.

۸- ددې دورې شاعران پر خپلې مورنۍ ژبې سربېره په فارسي ژبه هم شعرونه ویل.

## ۳- رحمان بابا ادبي ښوونځی:

د پښتو پیاوړي شاعر رحمان بابا د یو ځانګړي تصوفي عرفاني ادبي سبک خاوند و ، پر همدې وجه هغه له زیات ټولنیز مقبولیته برخمن شو ، پر خپل وخت او راوروسته زمانه کې یې ډېر پلویان وموندل چې د بابا ادبي لاره یې تعقیب او د وخت په تېرېدو یې د یو

ادبي ښوونځي بنه غوره کړه، چې په ادبي څېړنو کې د رحمان بابا تصوفي عرفاني ادبي ښوونځي په نوم یاد شوی دی.

ددې ادبي ښوونځي نومیالي پلویان: یونس خیبري، معز الله مومند، اخون ګدا، حافظ الپوري، میا نعیم متي زی، عبدالعظیم رانیزی، عبدالرحیم هوتک، مطیع الله او نور دي.

ادبي ځانګړنې:

۱-ددې ادبي مکتب پلویان زیاتره د اخلاقو او نصایحو د بیان خواته ډېره پاملرنه کوي.

۲- په ساده، روانه، خوږه او رنګینه ژبه د تصوف او عرفان د پېچلو مسلو بیانول، د ددې ادبي ښوونځي ستره ځانګړنه ده.

۳- ددې ادبي ښوونځي له لارې د عربي او فارسي ژبو کلمات، اصطلاحات، تشبیهات او استعارات پښتو شاعرۍ ته هم راننوتې دي.

۴-د پښتو شعر وده موندلې او ډېرو شاعرانو د خپلو اشعارو دېوانونه ترتیب کړي دي.

۵-په دې ادبي ښوونځی کې د پښتني چاپېریال خپل رنګونه په ځلېدو دي او د هندي سبک اغېزې په کې ډېرې نه لیدل کېږي.

۶-ددې ادبي ښوونځی د پلويانو شاعرانو په ځينو اشعارو کې د هنر او شاعرانه خيالونو نړۍ خپلې ځانګړنې لري، انځورونه او خيالونه يې ساده، خو ډېر ښکلي، په زړه پورې او له لوړ ادبي معياره برخمن دي.

۷-ددې ادبي مکتب پلويان واقعيتونو ته ډېر پاملرنه کوي او د خيال پلويتوب او تابعيت په کې ډېر زيات دی.

۸-ددې مکتب پلويانو پر پښتو سربېره په فارسي او هندي ژبو هم شاعري کړې ده.

## ۴- حميد-شيدا ادبي ښوونځی:

د پښتو د نازکخيالۍ ادبي ښوونځی د دولسمې هجري پېړۍ په اوږدو کې د هندي مکتب تر اغېزو لاندې رامنځته شوی دی. بنسټګر يې د پښتو نازکخياله شاعر عبدالحميد مومند ( تر **۱۱۴۷**ه ق پورې ژوندی ) او بشپړونکی يې کاظم خان شيدا (**۱۱۳۵-۱۱۹۴**ه ق ) ګڼل شوی دی.

سره له دې چې د دوی دواړو ادبي سبکونه يو له بله څه نا څه توپير او تر يوې اندازې بېلې ځانګړنې لري او له زماني پلوه هم يو له بله څو لسيزې وړاندې وروسته دي، خو دا چې دواړه د هندي سبک د لږو يا ډېرو اغېزو په منلو دنازکخيالۍ لاره تعقيبوي او د ډېرو پياوړو ادبي سبکونو خاوندان کېږي، د خپل وخت يا وروسته زمانې ډېر

شاعران د دوی د ادبي لارې پلویتوب کوي، د دغو بېلابېلو سبکونو له ګډون څخه یو ادبي ښوونځی منځته راځي چې په ادبي څېړنو کې د ((حمید او شیدا د نازکخیالۍ ادبي ښوونځی)) نوم ورکړل شوی دی.

ددې ادبي مکتب پیاوړي استازي پر (حمید مومند) او (کاظم خان شیدا) سربېره چې ددې مکتب بنسټګر بللي شوي، قلندر اپریدی، محمدي صاحبزاده، حنان بارکزی، کامګار خټک، بېدل هشتنغری، علي خان او نور دي.

## ادبي ځانګړنې:

۱-اوچت تخیل، نازکخیالي، نوښت، نادرې استعارې او تشبیه ګانې ددې ادبي ښوونځي بنسټیزه ځانګړنه ده.

۲-ددې ادبي مکتب پیروان غزل ویونکي دي او دغه ادبي ډول یا فورم یې کمال ته رسولی دی.

۳-د اشعارو موضوع زیاتره د مینې او محبت مسایلو ته وقف شوي؛ شعرونه یې له سوزو سازه ډک دي.

۴-سره له دې چې دا ادبي ښوونځی د هندي مکتب تر اغېز لاندې رامنځته شوی، پښتني ژوند او چاپېریال هم په کې په خپله بڼه انځور شوی، استعارې او تشبیه ګانې یې په دغه خم کې رنګ شوي دي.

۵-د خیال پر نازکۍ او د مانا پر باریکۍ سربېره په الفاظو او عبارتونو کې د ښکلا، سوز او ساز پیداکول، ددې مکتب غوره ځانګړنه ده.

۶- ددې ښوونځي په شعرونو کې متلونه، عامې محاورې او سیمه ییزه اصطلاحات ډېر استعمال شوي دي.

۷-د فارسي ژبې او ادب اغېزه هم ددې مکتب پلویانو منلې ده.

۸-حکایتي ادب او له نورو ژبو، په ځانګړې توګه له فارسي څخه ژباړو ډېر عمومیت موندلی دی.

## ج- فارسي ادبي ښوونځي:

نومیالي ادیب ملک الشعرا بهار په خپل مشهور اثر (سبک شناسي) کې په فارسي شاعرۍ کې په عامه توګه دا څلور ادبي مکتبونه ښودلي دي:

۱-خراساني ادبي ښوونځی

۲-عراقي ادبي ښوونځی

۳-هندي ادبي ښوونځی

۴-د مراجعت دورې ادبي ښوونځی

مخکې تر دې چې دا پورتني ادبي مکتبونه په لنډه توګه دروپېژنو، دلته یو ځل بیا ددې خبرې یادونه ضروري بولو چې دا یاد شوي ادبي

مکتبونه په زیاترو پښتوانیو ادبي څېړنو کې د (ادبي سبکونو ) په نوم یاد شوي، خو ځینې ادبپوهان دا یوه تېروتنه ګڼي چې په ادبي څېړنو او لیکنو کې پرله پسې تکرار شوې او اوس هم زموږ ډېر لیکوال ادبي مکتب او سبک نه سره توپیروي او یو د بل پرځای یې استعمالوي، حال دا چې دواړه ځانګړې ادبي اصطلاح ګانې دي، دا ادبي جریانونه ادبي مکتبونه وو چې هر یوه په پراخو جغرافیوي ساحو کې نفوذ درلود او د ځانګړو ادبي سبکونو د پلویانو له یو ځای کېدو څخه رامنځته شوي او تر پېړیو یې دوام موندلی دی.

## ۱- خراساني ادبي ښوونځی:

دې ادبي مکتب ته کله کله ترکستاني ادبي مکتب هم ویل شوی دی. دغه ادبي مکتب په خپله پراخه لمن ک د فارسي شعر جریان له معلومې ابتدا او پیلامې نه راپدېخوا د اوومې هجري پېړۍ تر نیمایي پورې رانغاړي او د طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو، غزنویانو، غوریانو، سلجوقیانو او... د واکمنیو د بېلابېلو پېړیو په پوړیو کې د ځلاندو او پیاوړو ادبي بهیرونو څرګندویي کوي. ددې ښوونځي په پلویانو کې: د فردوسي، فرخي سیستاني، خواجه عبدالله انصاري، حکیم ناصر خسرو بلخي، مسعود سعد سلمان، سنایي غزنوي، انوري، خاقاني، نظامي ګنجوي، شیخ فریدالدین عطار او نورو نومونه د یادونې وړ دي.

ادبي ځانګړنې:

۱- واکمنو او نورو زورواکو ته د زیاتو مدحو د ستاینو او قصایدو ویل.

۲-په شعر کې د کیسو او حماسو رواجېدل، لکه د فردوسي (شاهنامه) او د (خمسه نظامي) ځینې مثنوي ګانې.

۳-د غزل او اخلاقي شعرونو کموالی.

۴-په شعر کې د درنو او ثقیلو کلمو، اوږدو او مشکلو بحرونو کارول.

۵-لفظي او بدیعي صنایعو ته لږه پاملرنه او د شعري سبک ساده والی.

## ۲- عراقي ادبي بنوونځی:

دا د فارسي ژبې د بر په زړه پورې ادبي مکتب ګڼل شوی، چې د اوومې هجري پېړۍ له نیمایي څخه د لسمې هجري پېړۍ تر وروستیو پورې یې د دري ژبې په حدودو، په ځانګړې توګه د افغانستان او ایران په ځینو برخو کې، دوام موندلی دی.

ددې مکتب په نومیالیو پلویانو کې: مولانا جلال الدین بلخي، سعدي شیرازي، امیر خسرو دهلوي، مولانا عبدالرحمن جامي،

حافظ شیرازي، کمال خجندي، بابا فغاني شیرازي، وحشي باقفي او نور د یادونې وړ دي.

### ادبي ځانګړنې:

۱-په دغه ادبي مکتب کې غزل ډېر د پاملرنې وړ ګرځېدلی دی.
۲- ادبي بدیعي صنایع او د شعر بېلابېل اصناف او ډولونه رواج شوي.
۳-عرفاني او تصوفي افکارو په شعر کې ډېر او ژور منعکس شوي دي.
۴-عربي لغات او اصطلاحات فارسي ژبې او ادب ته ډېر راننوتي دي، خو ددې مکتب د پلویانو د ځانګړي مهارت له مخې په شعر او ادب کې کومه پېچلتیا نه پېښوي.
۵-ددې ښوونځي د پلویانو په شعرونو کې معنوي صنایع، کنایه، ابهام او تمثیل، تشبیه او استعاره ډېر کارول شوي دي.
۶-د شعر او ادب لفظي او معنوي ځانګړنو ډېره پیاوړتیا موندلې ده.

## ۳- هندي ادبي ښوونځی:

د فارسي شعر او ادب دغه ښوونځی د لسمې هجري پېړۍ له پایه یا د یوولسمې هجري پېړۍ له پیل څخه رامنځته شوی، تر دولسمې پېړۍ پورې یې په ایران او تر ډېره پورې په هندوستان، افغانستان او نورو سیمو کې دوام کړی دی.

ددې ادبي ښوونځي په پیاوړو او نومیالیو پلویانو کې د: عرفي شیرازي، غني کشمیري، صایب تبریزي، میرزا عبدالقادر بېدل، میرزا اسدالله غالب او نورو نوموړو د یادونې وړ دي.

## ادبي ځانګړنې:

۱-د نویو او تازه خبرو لپاره هڅه.

۲-مضمون پنځونه.

۳-د لفظي او معنوي صنعتونو په زیات استعمال سره د وینا پېچلتیا او کړکېچ.

۴-په مبالغه کې غلو او افراط.

۵-د مضمون او تشبیه د رامنځته کولو لپاره له چاپېریال څخه ګټه اخیستنه.

۶-د ارسال المثل صنعت زیاته کارونه.

۷-د تخیل زیاته ژورتیا.

## ۴- مراجعت ادبي ښوونځی:

دغه ادبي ښوونځی د دولسمې هجري پېړۍ په وروستیو کې په اصفهان کې رامنځته شوی دی. ددې مکتب پلویانو هڅه وکړه چې ځان د هندي ښوونځي له پېچلتیا څخه وژغوري او د هغوی خلاف مضامین او موضوعات په ساده ژبه بیان کړي.

ددې چارې لپاره دوی بېرته د فارسي ادب لرغونو مکتبونو (خراساني او عراقي) ته مخه وکړه، نو ځکه ورته د مراجعت یا ((بازګشت)) ادبي ښوونځی وایي. ددې مکتب زیاترو پلویانو به د (سعدي شیرازي) او یا (حافظ) په پیروۍ شعرونه ویل.

ددې ادبي مکتب په سر لارو کې د (سید محمد شعله اصفهاني) (۱۱۲۰هـ ق مړ) (میرزا محمد نصیر اصفهاني) (۱۱۹۲هـ ق مړ) (میر سید علي مشتقا اصفهاني) (۱۱۷۱هـ ق مړ) او نورو نومونه د یادونې وړ دي. (۲۲: ۸۲-۹۲).

همدا رنګه یو شمېر نور ادبي ښوونځي، سبکونه او ادبي جریانونه په ختیځ او لویدیځ کې رامنځته شوي چې دا څو یې موږ دا اساسي بېلګو په توګه یاد کړل او د ټولو څېړل یې د یو جلا اثر د لیکلو ایجاب کوي. د ځینو ادبپوهانو په نظر ادبي ښوونځي د کره کتنې له ښوونځیو یا ډولونو سره ډېر ارتباط لري. د همدې ښوونځیو د اصولو، معیارونو او پرنیسپونو له لارې یو ادبي اثر څېړل کېږي، همدا ښوونځي دي چې کره کتنې ته لید لوري، تګلوري او پرنیسپونه ټاکي. ځینو څېړونکو خو ان ادبي ښوونځي د کره کتنې د ښوونځیو او ډولونو مترادف بللي دي، موږ دلته دا څپرکی ځکه تر ډېره حده ادبي ښوونځیو ته ځانګړی کړ چې کره کتونکي ته د مرستې لاس ورکړي چې یو اثر په اسانۍ سره تحلیل او وارزوي او دا ورته څرګنده کړي چې کوم ادبي اثر د کومو ځانګړنو د شتوالي له امله له کوم ادبي ښوونځي سره اړه پیدا کوي. لوستونکو سره هم د ادبي ښوونځي معرفي دا مرسته کوي چې له بېلابېلو ادبي جریانونو، لیدلورو او تګلورو سره اشنا شي.

# د څلورم څپرکي لنډيز

تر اوسه پورې چې د کره کتنې په باب بېلابېل اثار چاپ شوي دي، په هغو کې اکثرو د کره کتنې ښوونځي او ډولونه ځنګ په ځنګ څېړلي دي. خو ځينو ادبپوهانو بيا د کره کتنې ډولونه جلا څېړلي دي او ادبي ښوونځي جلا ، په هر ترتيب په هر ادبي ښوونځي کې د کره کتنې ځرکونه ليدل کېږي. ځينو بيا خپله د کره کتنې ډولونه د يو ځانګړي ډول او کله هم د يوه ښوونځي په توګه څېړلي دي. په دې ډول د کره کتنې ډولونه، ښوونځي او همدارنګه د ادبي ښوونځيو څېړنې ته لا زياته اړتيا ده. کره کتونکو او ادبپوهانو د ادبي ښوونځيو په لړ کې ګڼ شمېر ادبي ښوونځي پېژندلي، چې ځينو ته يې موږه اشاره وکړه. دا هغه ښوونځي دي چې په نړۍ کې د زمانې په بهير کې رامنځته شوي او زيات مطرح دي:

**کلاسيزم:** دا هغه هنري ادبي ښوونځی دی، چې د اروپا د هنر او ادبياتو په ډګر کې يې لږ و ډېر درې پېړۍ (له پنځه لسمې تر اته

لسمي پېړۍ) پورې رواج درلود. د لرغوني زماني د اثارو مطالعه او تقليد ددې ښوونځي ځانګړنه ده. (بوالو)، (پاسکال)، (لافونتن)، (جان مليتون)، (درايدن)، (الفيري) او (ګلدوني) ددې ښوونځي غوره استازي دي.

**رومانتيزم:** دا هغه ادبي ښوونځی دی چې د اتلسمې پېړۍ په پای کې د کلاسيک ادبي ښوونځي د مخالفت له امله په اروپا کې رامنځته شو. لوړ تخيل، د ښکلا ستاينه، د خيال او فکر ازادي ددې ښوونځي ځينې ځانګړنې دي.

**رياليزم:** دغه ادبي ښوونځي د نولسمې پېړۍ تر لومړۍ نيمايي وروسته په اروپا کې رواج وموندو او د اروپا د خلکو پاملرنه يې له خيالي او رومانتيکو افکارو څخه د ژوند واقعيتونو ته واړوله. عيني واقعيتونه او د ژوند پېښې لکه څنګه چې دي، په دې ښوونځي کې همغه شان منعکسېږي.

**ناتوراليزم:** دا ادبي مکتب د نولسمې پېړۍ په پای کې په فرانسه کې رامنځته شو او د شلمې پېړۍ تر لومړيو يې دېره وده او پراختيا وکړه. ددې ښوونځي پلويانو باور درلود، لکه څنګه چې علمي مسايل څېړل کېږي، دغسې بايد د ليکوال اثار هم د هغه د ژوند او چاپېريال د شرايطو په رڼا کې تر څېړنې او کره کتنې لاندې ونيول شي.

سمبولیزم: دا هغه ادبي ښوونځی دی چې د نولسمې پیړۍ په پای کې د (ریالیزم)، (ناتوریالیزم) او (پارناس) ادبي مکتبونو پر خلاف، په فرانسه کې رامنځته شو. دا ښوونځی په شعر کې هیڅ ډول قید و بند نه مني. دوی په رمز، نښو او اشارو کې خپل مفهوم وړاندې کاوه.

د پورتنیو ښوونځیو ترڅنګ د سور ریالیزم، اګزسیتانسیالیزم، سینتمنتالیزم او ځینې ښوونځي هم ډېر مطرح دي.

په پښتو او دري ژبو کې هم یو شمېر ادبي ښوونځي مطرح دي. په پښتو کې د روښان ادبي ښوونځی، د خوشال ادبي ښوونځی، د رحمان بابا ادبي ښوونځی، د حمید-شیدا ادبي ښوونځی مطرح دي. په فارسي کې بیا خراساني، عراقي، هندي او د مراجعت ادبي ښوونځی ډېر زیات مطرح دي.

پر دې سربېره ځینې نور ادبي ښوونځي هم د زماني په بېلا بېلو پړاوونو کې مطرح وو، لکه فورمالیزم، پارناس، امپرسیونیزم، کونستروکتیویزم، اوربانیزم، دادایزم، نانیمیزم او نور... چې موږ ورته پر خپل ځای نغوته وکړه.

# د څلورم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-په لویدیځ کې کوم ادبي ښوونځي زیات مطرح دي؟

۲-پښتو کې د مطرحو ادبي ښوونځي نومونه واخلئ؟

۳-د خوشال بابا د ادبي ښوونځي ځانګړنې په ګوته کړئ؟

۴- په فارسي ژبه کې د عراقي ادبي سبک ځانګړنې په ګوته کړئ؟

۵-د کلاسیزم او رومانیزم ادبي ښوونځیو غټې ځانګړنې کومې دي؟

۶-د ریالیزم او ناتوریالیزم ښوونځیو مخکښان څوک دي؟

۷-سور ریالیزم او اګسزسیتانیسالیزم ادبي ښوونځي چا رامنځته کړل؟

۸-د خوشال، رحمان بابا او حمید ادبي ښوونځیو پلویان څوک دي؟

۹-په فارسي ادب کې کوم ښوونځي زیات مطرح دي؟

۱۰-د هندي ادبي ښوونځي ځانګړنې څه دي او پلویان یې څوک دي؟

# سپارښتنې

- هر محصل دې په دې څپرکي کې یو یاد شوی ادبي ښوونځی په خپله خوښه انتخاب او د هغه په باب دې تفصیلي لیکنه وکړي.
- هر زده کوونکی دې د خوشال، رحمان بابا او حمید په پلویانو کې د یوه تن اثار تحلیل او وارزوي.

# پینځم څپرکی

## کره کتنه په پښتو ادب کې

لکه څنګه چې مو په تېرو برخو کې یادونه وکړه ادبي کره کتنه تر ادبیاتو وروسته رامنځته کېږي. که پر یوه مهال هم رامنځته شي، نو لومړی به یو ادبي اثر وي او بیا کره کتنه. که ادبي اثر موجود نه وي، نو کره کتنه به پر څه شي وشي؟ د یوه ادبي اثر تر لیکنې او د ادبي تجربو تر مسلسل تکرار وروسته د کره کتنې اړتیا پیدا کېږي، یو ادبي اثر هم هغه وخت د یوه فورم بڼه خپلوي چې ډېر اثار په یوه واحده بڼه تر ځینو ورته اصولو ، قواعدو او معیارونو لاندې ولیکل شي. کره کتنه هم د یوه علم په توګه د یو ډول اصولو او پرنسیپونو مجموعه ده، چې اساس یې خپله د یوه ادبي اثر په اصلي جوهر کې خوندي دی. پښتو شفاهي ادبیات طبعاً تر لیکنیو ادبیاتو دمخه راڅرګند شوي دي. ګړنۍ کره کتنه هم تر لیکنۍ هغې دمخه رامنځته شوې، خو څرنګه چې ګړنۍ کره کتنه ګړنۍ وي، نه لیکنۍ ، ځکه خو یې اوس موږ کومې لیکنۍ بېلګې په لاس کې نه لرو. البته په

پښتو ګړني ادب کې د محتوا له پلوه د کره کتنې ډېر څرکونه لرو. دلته غواړو د تاریخي تسلسل له مخې په پښتو ادب کې کره کتنې بهیر ته کتنه وکړو. دلته غواړو د تاریخي تسلسل له مخې په پښتو ادب کې د کره کتنې بهیر ته کتنه وکړو.

## الف- پخوانۍ دوره:

پښتو لیکنی ادب چې څرګنده بېلګه یې د امیر کروړ سوري له شعره پیلېږي، محتوایي پانګه یې ویاړنه ده، تر هغه وروسته په منظوم ادب کې ځینې داسې شعرونه شته چې په خپله محتوا کې د نقد تومنه لري، د (شیخ رضي لودي) او (نصر لودي) شعري مناظره یا تبادله هغه بېلګه ده چې د انتقاد، نیوکې او کره کتنې څرک په کې شته. د دې کلام بېلګې دا دي:

د شیخ رضي لودي د کلام بېلګه:

((د الحاد په تور دې ترپلل — ګروه دې زموږ وکوراوه
موږ رونلې په زیارنه — تا په تور وتوراوه
لرغون ولې ګروهېدلې — چې دې ګوښې اړاوه
هغه ګروه دې اوس اړه کړ — چې پلرو دې رڼاوه
لودي ستا په نامه سپک شو — که هر څو مو درناوه
نصره نه مو یې له کهاله — لودي نه یې په کاوه
زموږ رغا ده ستا له ګروهه — د ورځلوی په رغاوه.))

(۲۸: ۷۰).

د پټې خزانې له مخې شیخ رضی لودي، د شیخ حمید لودي د پاچاهۍ په زمانه کې د اسلام د مقدس دین د تبلیغ لپاره پښتونخوا ته تللی، دی دوه کاله په کسي غره کې ګرځېده او ډېر خلک یې مسلمانان کړل، شیخ رضی لودي ته دا مهال خبر رسېدلی و، چې دده د تره زوی (نصر لودي) له اسلامه اوښتی او د الحاد لاره یې غوره کړې ده، نو ځکه یې پورتنی شعر ورته وو ایه. کله چې دده دا شعر (نصر لودي) ته ورسېد، نو هغه ژر غبرګون وښود او دده د شعر په ځواب کې یې دا شعر وو ایه:

((د الحاد په تور تورن شوم — زه لرغون خو ملحد نه یم

زما دښنه هسې تورا کړي که ملحد یم د دښنه یم

له اسلامه نه ترپلمه — تورانو ځخه په ترپله یم

ګروه مې هغه لرغون دی — اوس هم کروړ په لرغونه یم

د اسلام پر هسک به ځلم — و تورانو ته تیاره یم

د لودي زوی سنتي یم — د حمید له لوړ کهاله یم

تورانې دښن چې وایي — زه له ګروهه په اړه یم

دا یې تور تاسې دروهوي — زه مومن ستاسې په تله یم

د دښنو ویناوې مغړه — زه لودي یمه ځو زه یم.))

(۲۸: ۷۲).

دا دواړه نظمونه چې د سوال و ځواب په بڼه راغلي، په پښتو لرغونو نظمونو کې هغه نظمونه دي چې پر يو بل په کې نيوکې، تنقيد او د هغو معقول ځوابونه ليدل کېږي.

د ابو هاشم ابن زيد السرواني په لومړنۍ منظومه ژباړه کې هم د نقد ځرک شته:

((ژبــه هــم ښــه وينــا کانــدي چــې يــې وينــه
د خاونـــــد پـــــه لاس کـــــې زر او درهمونــــــه
ژبـــــور ورلـــــه ورځـــــي وينــــا يـــــې اوري
د درهـــــم خاونـــــدان تـــــل وي پـــــه وياړونــــه
کـــــه درهـــــم يـــــې ځنـــې ورک ســـو ســـي نتلـــى
پـــــر نـــــرۍ يـــــې وي پـــــه خـــــړو پېژندنـــــه
کـــــه بـــــدهاى ســـــوني وبـــــولي خلـــــک وايـــــي
دا وينـــــا ده رښـــــتاينه لـــــه رښـــــتونه
کـــــه بېـــــوزلى ووايـــــي رښـــــتيا خبـــــره
نـــــور ووايـــــي دا خـــــو ســـــوني دى تېرونـــــه
هـــــو درهـــــم ښـــــندي هـــــر چـــــا لـــــه لويـــــه برخـــــه
د درهـــــم د خاونـــــد هـــــر ځـــــاى پرتمونـــــه
درهـــــم ژبـــــه ده کـــــه ښـــــوک ژبـــــور کېـــــږي
ده وســـله کـــه ښـــوک پـــرې کانـــدي قتالونـــه)) (۳۰: ۷).

په دې ژبارل شوي شعر کې د ټولنې د افرادو له خوا ، مادي شيانو ، پيسو او مالي پانګې ته پر زيات احترام، سرټيټي او ارزښت نيوکه شوې ده، شاعر، خلک اخلاقي ارزښتونو ته رابولي او په ټولنه کې د مادياتو پر نامعقول رول باندې نيوکه کوي. که څه هم دا شعر يوه عراقي شاعر (محمد ابن خلاد ) ويلی دی، محتوا يې هم د هغه وخت د عربي ټولنې ټولنيزو واقعيتونو ته ورګرځي، خو شاعر دا سې ټاکلې محتوا ته اشاره کړې، چې په هره ټولنه کې د همدې يوشان ارزښت لرونکې ده. له هغه وخته نږدې دولس سوه کاله تېرېږي، خو بيا هم دا محتوا نه ده بدله شوې او تقريباً په همدې بڼه کارول کېږي.

د (شيخ اسعد سوري ويرنه هم د نقد ځينې ځانګړتياوې لري، له فلکه ګيله، پر ناخوالو انتقاد ، له ظلمه فرياد او نور هغه څه دي چې په دې قصيده کې د نقد څرک لګوي:

((د فلــک لــه چــارو څــه وکــړم کوکــار<br>
زمولــوي هــر ګــل چــې خانــدي پــه بهــار<br>
هــر غټــول چــې پــه بيــديا غوړېــده وکــا<br>
ريــژوي يــې پــاڼې کانــدي تــار پــه تــار<br>
ډېــر مخونــه د فلــک څپېــړه شــنه کــا<br>
ډېــر ســرونه کــا تــر خــاورو لاندې زار<br>
د واکمــن لــه ســره خــول پرېباسـي مـړ شــي<br>
د ببوزلــو وينــې تــوی کانــدي خونخــوار

څــه تېــرى څــه ظلــم کانــدې اى فلکــه !
ســتا د لاســه نــه دى هــېڅ ګــل بــې لــه خــار
پــه ويرژلــو ، لورنــه کــړې پــه زړه کراړيــه
پــــر نتليــــو اوروې د غــــم ناتــــار
کلــه غورځــوې واکمــن لــه پلازونــو
کلــه کښــېنوې پــه خــاورو کــې بــادار
زمــوږ پــر زړونــو دې نــن بيــا يــو غشــى وويشــت
ودې ژوبللــــه پــــه دې غشــــي هــــزار

پــر ســوريو بانــدې ويــر پرېــوت لــه پاســه
محمد واکمن چې ولاړى په بل دار.)) (۲۸: ۴۰-۴۸).

(شيخ اسعد سوري) د (امير محمد سوري) د دربار شاعر و او کله چې (اميرمحمد سوري) د (سلطان محمود ) د لښکرو په لاس اسير او بيا د ډېر ظلم له امله مړ شو ، ده دا قصيده ويلې وه، په دې قصيده کې د زماني پر جبر په دې خاطر انتقاد شوى، چې ولې عدل او انصاف په کې نه شته. له فلک نه شکايت شوى چې له دليل پرته تنکي ګلان رژوي. که څه هم دا قصيده په خپل ذات کې يوه ويرنه يا مرثيه ده، خو د قصيدې په منځ کې ګڼشمېر داسې بيتونه شته چې انتقادي او کره کتنيزه روحيه لري.

په لرغوني دوره کې نور هم داسې نظمونه او شعرونه شته چې د نقد څرک ترې لګي، خو اوس راځو منځنۍ دورې ته:

ب- منځنۍ دوره:

د پښتو ادبیاتو منځنۍ دوره له پیر روښان او د هغه د پلویانو د اثارو له مهاله پیلېږي. د روښاني پیر شاعرانو او ناظمانو په کلامونو کې هم د نقد ډېر مواد شته او کله چې د روښاني غورځنګ پر ضد د (اخوند درویزه) تحریک پیل شو، نو بیا د دواړو خواوو له خوا د یو بل پر ضد لیکنې وشوې، خپله د (اخوند درویزه) (مخزن الاسلام)، د (پیر روښان) د (خیرالبیان) پر وړاندې یو غبرګون دی. د روښان او د هغه د پلویانو او همدارنګه د اخوند درویزه او د هغو د پلویانو تنقیدونو اکثره مذهبي محتوا درلودله، اساس یې هم پر مذهبي اساساتو د نظریاتو اختلاف و، ادبي یا هنري برخه یې ډېره بډایه نه وه، خو بیا هم د نثر او نظم په بڼه دواړو خواوو یو پر بل تنقیدونه کړي دي. دغه راز د هر یو پلویان او یو بل هم ارزولي دي.

د روښاني پېر شاعر (دولت لواڼی) د (میرزا خان روښاني) په باب وایي:

هېڅ افغان ده غوندې شعر کړی نه دی
دی په خپل عصر کې له هر چا نه بهتر و.

د علي محمد مخلص په باب وایي:

((شــاه طبعانو يې زده قدر

ښــه کــلام دُر عــدن دی

هـــمه دان مخلص دولته

ددې درو پـــه سفتن دی.)) (۲۳: ۱۷۰).

د اخوند دروېزه او د هغه د پلويانو له خوا پر روښان او د هغه پر پلويانو نيوکې زياتره د مذهبي مسايلو پر محور راڅرخي، که پر اثارو يې هم نيوکې کړي، نو د مذهبي ملاحظاتو له مخې دي، هنري جوهر او يا د کلام د ښکلاييز اړخ له مخې نه وې.

خو کله چې د خوشال بابا پېر ته راځو، نو دلته خپله خوشال د يو مفکر او نوښتگر سترگور کره کتونکي په توگه ځرگند ېږي، ځرنگه چې خوشال بابا د کره کتنې په برخه کې ډېر گټور او اساسي کار کړی، نو دلته لازمه ده چې پر کره کتونکي خوشال او دده پر انتقادي روحيې زيات بحث وکړو.

خوشال تر هر چا دمخه کره کتنه له خپله ځانه پيل کړې ده:

((د خوشال بابا ژور او تېز نظر د ژوند هره خوا او د هنر بېلابېل ډگرونه په خپل کلام کې رانغاړلي دي، داسې يې کره کتنه، نيوکه او بيا د سمون لاره هم له ياده نه دي ايستلې. خوشال بابا لکه ځنگه

چې د پښتو ژبې او ادب پلار ګڼل کېږي، داسې په علمي، ټولنيز، ادبي او سياسي ډګر کې هم يو ستر او ژور کره کتونکی دی.

له يوې هنري ښکارندې (شعر) څخه رانيولې بيا تر يوې لوړې ټولنيزې پېښې او عمل پورې چې هر يو دده په نظر نيمګړی معلوم شوی، هغو ته يې د انتقاد ګوته نيولې او بيا يې د سمون لاره هم ورپه ګوته کړې ده.

خوشال بابا يو زړور کره کتونکی و، نه يې د چا مدح کوله او نه يې ځانستايني ته اړتيا لرله، خوشال له فکري، اقتصادي او ټولنيز پلوه په داسې يو دريځ کې و، چې د سالم انتقاد لپاره يې ور صفتونه او ظرفيتونه لرل، نو ځکه خو ده له خپل ځانه نيولې تر خپلو اولادونو، کورنۍ، قبيلې او ټولو پښتنو پورې څه شی چې په کې د انتقاد وړ وو هغه يې څرګند کړي او نيوکه يې پرې کړې، همداسې يې په ادبي او سياسي برخه کې د سمون او اصلاح لپاره ډېرې نيوکې کړې دي. د خوشال بابا د نيوکې محتوا ځکه پر خلکو ښه لګېږي چې حقيقتونه څرګندوي او د رښتيا يني پر بنسټ ولاړه ده.

بابا دومره اخلاقي جرئت لري، چې که په ځان کې يې هم نيمګړتيا وي هغه نه پټوي او په ډاګه يې وايي:

((د مغـــول نمـــک مـــې وخـــوړ شـــېر پېـــړۍ
مـــا د زړو پکـــې روغـــې کـــړې ببـــرۍ

رعیـــت مـــې یو ســـفزیه درســـت ختـک وو
پــه عــزت او پــه حرمــت کــې یــې څــه شــک و
د مغـــــول لپــــاره مـــا تــــورې وهلــــې
پښـتنو بـه راتـه کـړې د بـرې کنځلـې. )) (۲۹: ۲۸۳).

یادا چې:

چې منصب مې د مغـول خـوړ یـو ملـک وم
چې منصب د مغـول نـه شـته اوس ملـک یـم.

خوشال بابا بیا په دویم ګام کې پر خپلو ځینو زامنو او د کورنۍ پر غړو چې دده پر وړاندې په ناحقه راولاړ شوي یا یې نافرماني کړې او یا هم د خپل ولس پرضد ودرېدلي، سخت انتقادونه کړي او د هغو شخصیتونه یې څېړلي، شنلي او څېرې یې ورته څرګندې کړې دي:

((نـــا خلــف مــې حوالــه کــړ پــه تقــدیر
نصـــیحت وربانـــدې نـــه کانـــدي تـــاثیر
خـــوی خصـــلت چـــې ازلـــي وي نـــه نـــورکېږي
پــــه ارشــــاد او پــــه تلقــــین د کامــــل پیــــر
بـــد فرزنـــد دې خـــدای د هېچـــا پیـــدا نـــه کـــا
په خصلت یې پلار په ځان دی مور په ویر. )) (۲۰: ۳۸).

یا دا چې:

((زمـــا زویـــه د ننـــګ نـــه دي غرېتهـــار دي
پـــرې پـــوهېږم چـــې همـــه واړه مـــردار دي
نـــه یـــې لویـــه اندېښـــنه نـــه یـــې لـــوی کـــار شـــته
د مغولـــــو وطبـــــاخ وتـــــه تیـــــار دي
د منصـــب د اضـــافو خبـــرې کانـــدي
پـــه عـــزت، پـــه حرمـــت کلـــه خبـــردار دي
اتفـــاق، یګـــانګي یـــې ســـره نـــه شـــته
همګـــــي روان پـــــه بېلـــــه بېلـــــه لار دي
نـــه د نـــوم دي نـــه د شـــرم نـــه د ننـــګ دي
اندېښـــنې یـــې د نـــاکس، د ناســـردار دي
شـــکایت لـــه نـــورو مـــه کـــوه خوشـــاله
چې خپل زویه هم په ننګ له تا ویزار دي.)) (۹: ۴۳۹).

***

چـــې پیـــدا دي همګـــي زمـــا لـــه ځانـــه
کـــه پنځـــوس دي کـــه شـــپېته دي داغ د زړه دي

***

یـــو و پـــلار نیکـــه تـــه نـــه شـــو
همګـــــي د مـــــور پـــــه شـــــان

***

اشـــرف ســـر تـــر ســـره نفـــس امـــاره دی
پـــه حســـد پـــه حماقـــت کـــې اواره دی

***

د مـــور پـــلار نیکـــه تـــه نـــه دي
دا نـــاکس دي لا بـــــل شـــــان
پـــه ژونـــدون مـــې خپـــل ځـــای ورکـــړ
بانـــــدي زه شــــوم مهربـــــان

***

یـــو ځـــو لا پـــه کـــې افـــت شـــول تـــر دا میانـــه
ځـــوک ((بهـــرام)) غونـــدي بـــدبخت بخیـــل شـــي

***

چـــې هـــېڅ کـــار نیـــولی نـــه شـــي اســـتوار
پـــه شـــامت یـــې خېلخانـــه شـــي تـــار پـــه تـــار
ځـوک ((ســدو)) غونـدي نـامراد عبدالزوجـه شي
پـــه تنګســـه لـــه خپلـــه پـــلاره شـــي ویـــزار
ځـوک ((مـالو)) غونديِ((جلو))غونـدي پیدا شـي
سراســـــر واړه نـــــابود او نـــــا بکـــــار.

***

مــــرګ د نــــا اهلــــو ســــبا بېګــــاه غــــوارم
دعــــــا مــــــې داده الله غــــــوارم
زمــــا توبــــه ده د بهــــرام لــــه خيــــره
دده لــــه شــــره امــــان پنــــاه غــــوارم.

***

زمــــا زړه لــــه چــــا نــــه روغ نــــه دی بهرامــــه
د هرچــــا ســــره مــــې زيســــت دی لــــه ناکامــــه
نــور دې نــوم زمــا پــه زويــو کــې حســاب مــه شــه
د خوشــــال ختــــک وينــــا پــــه دا تمامــــه.

***

چــې پــه ځــای يــې نــا قابــل زويــه خــاني کــا
د خوشــــال خــــاطر پــــه دا پــــاره پــــاره دی.

لکه څنګه چې خوشال خان پر خپل ځان او هم پر خپلو زامنو نيوکه کوي او نيمګړتياوې يې رابرڅېره کوي داسې پر خپلې قبيلې (ختکو) هم نيوکې او انتقادونه لري او د هغو له ځينو عملونو او نيمګړتياوو څخه هم ناخوښي څرګندوي.

لــه ختکــو نــه مــې هــومره زړه نــاخوښ دی
چــې تو بــه د همګــي ختــک لــه نامــه
د نعمــت پــه قــدر هــېڅ خبــردار نــه دي
نــوم ختــک بــه مــې خــلاص نــه وي لــه انعامــه
ختــک واړه د دودام دي کــه يــې ګــورې
څــوک بــه څــه غــواړي د خپلــو لــه دودامــه
د وفــا پــه ځــای همــه واړه جفــا ده
چــې بــه ماتــه رســېده لــه خپلــه قامــه
کــه پــه تــوره ختــک خپــل کــړې ګنــې خپــل شــي
کنــه هــېڅ بــه يــې خپــل نــه کــړې لــه اکرامــه.

***

چــې زمــا اختيــار يــې خــوار کــړ
خــدای دې خــوار هغــه ختــک کــا.

***

((درســت ختــک زمــا پــه دور
نــامور شــو پــه دوران
کــه ختــک پــه مځکــه پــروت و
پــاس مــې يــووړ پــه اســمان.)) (۱۳: ۳۱-۳۲).

***

تفحص کـه څـوک د خـوږ زړونـو کانـدي
د خپـل قـام لـه لاسـه ورک خوشـال خټـک دی.

خوشال بابا د خټکو تر انتقادي دايرې او نيوکې وروسته، پښتانه په خپله انتقادي دايره کې داخل کړي او هغه نيمګړتياوې چې په پښتنو کې دي هغه يې يوه يوه څېړلې ده. په پښتنو کې به د خوشال بابا غوندې هېڅ داسې بل لوی ليکوال تر سترګو نه شي، چې د بابا په څېر د پښتنو پر رواني چلند او ټولنيز ژوند بلد وي او هغو ته يې په خپلو اثارو کې په دې کچه ځای ورکړی وي. خوشال بابا د خپل فطري بغاوت او ژور فکر له مخې د پښتنو نيمګړتياوې هم څېړلي او نيوکې يې پرې کړې دي. د خوشال بابا اثار د پښتنو د ژوند هنداره دي، چې د هغوی ښېګڼې او بدګڼې ټولې په کې په ښه روښانه ډول څرګند يږي:

لېوني شول پښتانه په منصبونو
خدايه ما ژغورې له هسې غضبونو.

***

پښتـانه لکـه مګـس وربانـدې ګرځـي
ورتـه ايښـی دی مغـل د حلـوا تـال.

***

شـــــرم دی ننـــــګ دی کـــــه ډار د ســــــر دی
ســـمه مـــــې پرېښــــوه ځـــای مـــــې غـــــر دی
پښـــــتانه واړه دمغـــــول شـــــوروا خـــــوري
ماتـــــه یـــــې پـــــاتې دا شـــــور و شـــــر دی.

***

پښـــــتانه پـــــه عقـــل پوهـــه څـــه نـــاکس دي
کوتـــــه ســــــپي د قصـــــابانو د جـــــوس دي
اوښ لـــه بـــاره پـــه ولجـــه پـــه کـــور ورغلـــی
پـــــه ولجـــــه د اوښ د غـــــاړې د جـــــرس دي.

***

درســـــت جهـــان پـــه ناپوهـــانو ســـره ډک دی
ولـــــې زیـــات کـــه پکـــې وګـــورې افغـــان دی.

***

کـــــه رښـــتیا وایـــم شېرشـــاه دا هســـــې نـــه و
لکـــه مـــور یـــو نـــن پیـــدا لـــه کوهســـتانه
پښـــتانه چـــې بـــې ننګـــي کـــا څـــوک یـــې څـــه کـــا
ګورســـــتان لـــره بـــه درومـــو لـــه ارمانـــه.

***

((کـــه پـــه نـــور خلکـــو کـــې ښـــه ســـړي مونـــدل شـــي
ولـــــې ښـــــه ســـــړي بـــــه لـــــږ وي افغانـــــان

هره څار د پښتانه ترمغل ښه ده
اتفاق ورسره نه شته دې ارمان
د بهلول او د شېرشاه خبرې اورم
چې په هند کې پښتانه وو بادشاهان
شپږ اووه پيړۍ يې هسې بادشاهي وه
چې په دوی پورې درست خلک وو حيران
يا هغه پښتانه نور وو دا څه نور شول
يا د خدای دی اوس دا هسې شان فرمان
که توفيق د اتفاق پښتانه مومي
زوړ خوشال به دوباره شي په دا ځوان. ) ) (۱۱: ۱۵۳-۱۵۴).

***

پښتانه د ادم زاد له زاده نه دي
د عفريت دی که د ديو دي که د دد دي.

خوشال بابا د پښتنو ترڅنګ مغول هم د خپل انتقاد په دايره کې شامل کړي دي. د خوشال بابا د ژوند او مبارزې يوه زياته برخه له مغولو سره په دوستۍ اودښمنۍ کې تېره شوې ده. لکه څنګه چې بابا ته پښتانه معلوم وو ، داسې ورته مغول هم ښه معلوم وو. نو ځکه خو يې د هغوی ظلمونو ، بدو عملونو او نورو نيمګړتياوو ته

هم نغوته کړې او انتقادونه يې پرې کړي دي. مغول پاچا (اورنګزېب)، چې د خوشال بابا د سياسي مبارزې يو اړخ ورسره تړاو لري، د بابا په کلام کې ډېر زيات ياد شوی او غندل شوی دی او همدارنګه نور مغول هم.

تفاوت د خپل پردي وربانـدې نه شته
که يې ګوري اورنګزېب بادشاه ګمراه دی
دا لاخـه چې هندوستان تـوره تيـاره ده
په هر ځـای دده د خويه بويه اه دی
د اورنګ بادشاه په دور ارام نه شته
چا ويل چې جهان ځای د ارامګاه دی
که زينت وته يې ګوري يو يزيد دی
که طاعت وته يې ګوري اهل الله دی.

***

وخت د اورنګ شاه دی  د هر چا تسپې په لاس دي
خدای(ج) ځيني خبر دی  په اخلاص که په لباس دي

***

((پلار يې په بند ، ورور يې بند بند کړ
ځان يې هم شيخ، هم دانشمند کړ
اوس په غزا کې خپل ځان غازي بولي
په څو څو رنګ يې، خپل ځان ښکند کړ.)) (۱۰: ۱۷).

***

خانان يې واړه تلاوت خوان کړل
د هند هندوان يې دانشمندان کړل
وخت داورنګ دی عمل يې هيڅ نه شته
خو کتابونه يې په عالمګران کړل.

***

ددې دور شيخان ډېر دي لور په لور
اورنګزېب بادشاه د واړو دی انځور
په هغه چاړه قلم سازکا قرآن کښي
په هغه چاړه شهرګ پرې کا د ورور.

***

نو ځکه خو خوشال بابا دداسې واکمن اطاعت نه کوي:

اطاعت د اولوالامر ځکه نه کړم

خليفه د زماني په زړه کافر دی.

بابا د نورو مغولو په باب هم انتقادونه لري:

د هند په تخت چې عالمګير کېناست
په خلکو کاږي د اسمان پرېوت.

بابا د مغولو پرضد په مبارزه لاس پورې کوي او د پښتنو د يووالي هيله کوي، چې ټول پښتانه بايد له کندهار تر اټکه د ننګ په کار کې پټ او ښکاره سره يو شي، چې د مغولو له ستم نه ځان خلاص کړي.

ټول پښتون له کندهاره تر اټکه
سره يو د ننګ په کار پټ او اشکار.

***

ناګهاني په دا ملک فساد بنياد شو
د ما هم د تلافۍ کار را په ياد شو

***

نن د واړو پښتنو په ننګ ولاړ يم
دا چې هسې په هر درنګ ولاړ يم
چې پښتون شوم په دا هسې سپينه ږيره
نور مې خدای مه کړه مغول وايم په خيره.

***

و مغـــول و تـــه بـــه نـــن کـــړم اتـــک پولـــه
ملـــک بـــه خـــلاص کـــړم د مغـــول لـــه غالـــه غولـــه.

خوشال بابا نه یوازې په ټولنیز ژوندانه کې د ټولنیزو نیمګړتیاوو نقاد دی او پر دغو برخو یې نیوکې کړي، بلکې پر هغه چا یې هم سختې نیوکې کړي، چې د ریا عبادت یې د خپل ژوند د اړتیاوو د خړوب وسیله ګرځولی او خلک پرې تېرباسي. خوشال تل دا ډول شیخان غندلي او له دې ډول ملایانو سره یې ورانه ده.

حقیقـي سـجده هغـه ده چـې د یـار پـه لـور یـې کـړې
و کعبـې تـه چـې سـجده شـي دا سـجود دی مجـازي.

***

هر چېرته چې ګرځې په لاحول ورنه تېرېږه
سل بلا په زړه کې سل دانې تسپې په غاړه.

***

د ابلـــیس غونـــدې مکرونـــه یـــې پـــه زړه کـــې
پـــه فریـــب کـــې تـــر ابلیســـه لا مـــاهر دی.

***

ډېر دي چې تر تا نه، خپل ځان ملک کا
په ښو خبرو، ځان په فلک کا
نعوذ بالله، چې ښه يې ځير کړي
شيطان تر ځان پورې، لکه کودک کا.

***

په خوله يې ذکر په زړه کې نور فکر
فساد د دور دانا شيخان دي

***

((چې د کنز د قدوري شي ځان ملا کا
هر حلال حرام په ځان باندې روا کا
نه د کنز په دقيقو څه خبر شوي
نه په مخ د قدوري مبصر شوي
کتابونه په سر کېږدي ځان ملا کا
په هر کلي علت ګرځي تګي غلا کا
کېني شرع پرېکوي په رشوتونو
ځان قاضي کا په غلط روايتونو

و هرچاته مسلې د سخاوت کا
خپله خونه ډکوه بله غارت کا
په مسجد راځي پنځه وخته اذان کا
چې ذکات سرسایه نه وي مسجد وران کا
د میراث مالونه خوري له ظالمانو
نوم په ځان باندې کېږدي د عالمانو
په دا هسې علم برند کېني ملا یي
و عالم ته میراث خور د انبیا یي
نه یې کېنبل زده، نه لوستل زده، تل تګل کا
تعویذونه ورکوي په دروغ کېنبل کا
په ناروغ یې خونبي لا زیاته تر روغ شي
ښنت، تعویذ، دعا، هیکل کې په دروغ شي
لا رنځور غریب صحت نه وي موندلای
چې اخون وي اخیستو ته ورنیولای
که په ورکړه کې څه درنګ څه خو تعطیل وي
په غوغا په شور و شر یې قال و قیل وي
چې دا زر هسې ناسازې کا اغازې
خپل مقصود مطلوب حاصل کا په ناسازې
چې څوک ترس له خدایه نه کاندي غلول کا
اس به پرېږدي زین به باندې په جاهل کا.)) (۱۲: ۳۴-۳۶).

***

په خوله کلیمه لولي نمونځ روژه کاندي کافر شته
دعوې کا د شیخیه، تر شیطانه لا بتر شته
له کوره لوټه واخلي، استنجا لره روان شي
تقوی تر هسې حده، په ولجه یې وړي که زر شته
یوځای الوده نه دی په دا هسې دروېشانو
په دا دور که ګورئ دا ناپاک په هر کشور شته
چې خاص د زماني دي حال یې دا دی، نور وګړي
د غوا وو د خرو د کلي دی خالي نوم باندې بشر شته
چې حال د پرهېزګار و سراسر واړه دروغ شو
رښتیا غواړي له چانه چیرته پاتې دا هنر شته.

***

شیخان چې هسې اوږده نمونځونه کا
په کې باغونه اسونه جونه کا
په کې رنګین رنګین ګنډي وریښمین سکڼي
په کې د سپینو د سرو ګنجونه کا.

***

نمـــونځ، روژه چـــې د ریـــا د پـــاره کېــږي
لـــه اســـمانه بـــه لعنـــت بانـــدې اورېـــږي.

***

کتابونـــــه د اســـــمان د ځمکـــــې لـــــولي
پـــه عمـــل یـــې فـــرق د ځمکـــې د اســـمان دی.
پـــه بـــاطن یـــې زړه ګومـــان ســـره تړلـــی
پـــه ظـــاهر ویـــل پـــه ژبـــه مســـلمان دی
پـــه خبـــرو کـــې یـــې فـــیض مونـــده نـــه شـــي
مذبـــذب پـــه قـــول پـــه عهـــد پـــه پیمـــان دی
پـــه طاعـــت پـــه عبـــادت کـــې کـــه بلعـــم شـــي
پـــه اخـــر انـــس پـــه نغوتـــه بـــې ایمـــان دی
زه خوشـــال ختـــک بنـــده د هغـــه چـــایم
چـــې یـــې رو د زړه د خـــولې ســـره یکســـان دی.

***

تـــل قـــرآن د وړانـــدې ایښـــی قـــرآن لـــولي
ولـــې هـــېڅ عمـــل یـــې نـــه وي پـــه قـــرآن.

***

خوشال بابا د یو لوی مفکر او سالار ادیب په توګه، ادبي برخې هم له نظره نه دي غورځولي، د خپلو لیکوالو ادبي نیمګړتیاوو ته یې هم ګوته نیولې، آن پر داسې لیکوالو یې نیوکې کړي، چې تر ده وړاندې پرې چا د انتقاد جرئت نه شو کولای، خو ده د خپل فنان ذهن او ژور لید له مخې د هغوی اثار وتلل او نیمګړتیاوو ته یې ګوته ونیوله.

تر بابا دمخه ډېر لوی شخص چې مذهبي شهرت او اغېزیې تر لیکنو زیات و، هغه (اخوند درویزه) و، چې چا پرې د انتقاد کولو جرئت نه شو کولای او هغه وخت په ټولنه کې مطرح شخص او لیکوال و، خو خوشال بابا د هغه اثار وتلل او بیا یې پرې داسې نیوکه وکړه:

درویـــــزه لـــــه یـــــوه لـــــوري را پیدا شـــــو
پـــه لـږ علـم پـــه دا ملـــک کـــې لـــوی مـــلا شـــو
د روښـــــــان خیرالبیــــــان یـــــې ولیـــــــدلی
هغـــــه هـــــم مجهـــــول بیـــــان و ناســـــپندلی
ده چـــې خوشـــې میـــدان بیـــا مونـــد ســـخنګوی شـــو
پـــه ویـــل کـــې یـــې چـــې زړه و هســـې تـــوی شـــو
درویـــزه چـــې بیـــان کـــړی خپـــل کتـــاب دی
نـــوم یـــې مخـــزن الاســـلام کـــړی جنـــاب دی

کـــه یـــوه مســـره پـــه شـــل بلـــه پـــه ســـل ده
نامربوطـــــه ناموزونـــــه پـــــه ویـــــل ده
مســـــلې لـــس نظـــم کـــړي پـــه پښـــتو دی
درتـــه څـــه وایـــم چـــې څـــه دي د ایســـتو دي.

د اخوند درویزه د (مخزن) په باب زیاتوي چې دا یو مجهول او بې وزنه کتاب دی او هغه د عربي قصیدې بوصیري ترجمه ښیي.

هـر هـر بیـت د قصـیدې چـې در مرجـان دی
پـــه پښـــتو کـــې تراوربشـــو لا ارزان دی
قصـــیده د بوصـــیري ترجمـــه کـــړې
عربي یې تر پښتو مضحک راوړې.

***

مخـزن مـې د اخـون چـې تمـامي پـه نظـر کښېوت
پـه دې کې عـروض نـه شته نـه یـو بحـر ما موندلی
یـــو کتـــاب دی درویـــزه ســـره جـــوړ کـــړی
د ســوات خلــک یــې لــه کــل علمــه مــوړ کـــړی
نـــا معقـــول مجهـــول بیـــان پـــه کـــې بـــې ځایـــه
پـــه کـــې بـــد د حســـین وایـــه یزیـــد ســـتایه
پـــه حیـــرت بـــه واړو ګـــوتې و چیچلـــې

د اخون په مخزن چاګوتې کښېولې.

خو هغه چا چې پوره او کره شعر ویلی، خوشال بیا هغه ستایلی دی، لکه میرزا خان انصاري:

له چانه په پښتو کې ما میزان میندلی نه دی
میرزا په دا زبان کې ویل کړي دي تللي.

خوشال بابا په یوه قصیده کې د ځینو نورو شاعرانو ارزونه داسې کوي:

یو په حال او په ماضي کې داسې نه و
چې ښکاره یې د خبرو راته خوند کړ
د میرزا د بیوان مې ومنده په ګوډي
مسخره مې ارزاني خویشکی زمند کړ
که دولت و که واصل و که دا نور وو
په خبرو مې د هر یوه ریشخند کړ
کلمې مې ورته سازې کړې د قندو
د اوربشو په ډوډۍ چې به یې شخوند کړ.

***

هـــــــر چـــــــې لاف وهـــــــې د شـــــــعر

نـــــــن پـــــــه دا دور دې ډېـــــــر

خـــدای دې نـــه کـــا چـــې بـــه وایـــم

حـــــال د دیـــــو تېـــــرو بېـــــر

څـــوک پـــاوي څـــوک نـــیم پـــاوي دي

قلنـــــدر پـــــه کـــــې نـــــیم ســـــېر

چـــــې د مـــــوږه پـــــه حســـــاب دي

هـــېڅ مـــې نـــه دی واصـــل هېـــر

بـــــل دولـــــت فقیـــــر درې پـــــاوه

نـــــه تـــــرې څـــــو سرشـــــاهي ســـــېر.

***

د هغـــه شـــاعر دانـــې وشـــه پـــه ژبـــه

چـــې د شـــعر دردانـــې پلـــوري پـــه مـــال.

***

د هغـــه شـــاعر مـــخ تـــور شـــه چـــې پـــه طبعـــه

و هـــر درو هـــر دربـــار و تـــه ولاړ وي.)) (۳۳: ۲۸-۸۸).

د خوشال بابا او رحمان بابا ترمنځ هم شعري مکالمه تبادله شوې، خوشال د رحمان بابا د شعر پر یوه بیت نیوکه کړې او ویلي دي، چې په خپل منځ کې تناسب نه لري او رحمان بابا بیا د هغه پر وړاندې غبرګون ښودلی دی:

خوشال او دولتا مې غلامان دي

زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

***

یو خوشال او یو کم سل خټکه نوره

ځار شه د رحمان د سړبن له یوه فرده

که چېرې خوشال بابا د رحمان بابا پر شعر نیوکه نه وای کړې، د رحمان بابا له دې غبرګون سره نه مخامخېده. همدارنګه د رحمان بابا په کلام کې چې د سترو انساني او روحاني ارزښتونو پالونکی او له دې ارزښتونو څخه د سرغړونکو ډېر پوخ کره کتونکی دی، دده په کلام او د ده پلویانو کې د کره کتنې ډېر څرکونه ښکاري هم. په پښتو کلاسیکه دوره کې کره کتنه د نظم په بېلابېلو فورمونو کې ډېره څرګنده ېږي، خوشال نه یوازې د یوه کره کتونکي په توګه د نظم په برخه کې خپل کره کتنیزه بریا څرګنده کړې، بلکې د یو ټولنیز کره کتونکي په توګه یې په خپل نامتو اثر (دستار نامه) کې هم د ټولنې

د سمون لارې چارې په ګوته کړي او د تولنمشر؛ دستار سړي لپاره يې کره معيارونه هم په ګوته کړي دي.

د خوشال د شاعرانو زامنو په کلام کې هم د کره کتنې بېلګې شته.
اشرف خان د خوشال د شعر د ارزونې په باب وايي:

((اولاً بـــه د استاد لـــه حــاله وايـم
چې يـې شـعر جهـانګير لکـه د قمـر دی
پـه پښـتو ژبـه چـې شـعر چـا بيـان کـړ
د همـــه وو نظـم سـتوري، دی نمـر دی
ثـه خـوبي د هغـه نمـر وايــې مهجـوره
چې يې نام دهر نيـولی سر پـه سر دی.))

(۸: ۲۴۷-۲۴۸).

د خپل شعر په باب وايي:

((په پښتو ژبه مې سيال د شعر نه شته
د معنو په جهان شاه اشرف خټک يم.))

(۷: ۳۶).

د حمید بابا او کاظم خان شیدا په شعرونو کې هم د کره کتنې څرکونه شته:

((د حمید له فکره مه پوښته عام خلک

د زربفتو قدر، څه زده بوریا باف

د حمید د مینې کوټ به کره ووځي

که پرې ځیر شي قدردان، دانا صراف.))

(۲۴: ۱۱۹).

د کاظم خان شیدا ختک په دیوان کې (د پښتو شعر حسب حال) تر عنوان لاندې چې کومه اوږده مثنوي چاپ شوې ده، د دې مثنوي له مطالعې څخه موږ ته د پښتو شعر په باب د شیدا انتقادي نظر ښکاري. دا مثنوي د پښتو شاعرۍ د هغه مهال د ادبي کره کتنو په لړۍ کې حسابولای شو. (۳۱: ۵).

پیرمحمد کاکړ هم د پښتو شاعرانو د شعرونو د فکر او ښکلا د ارزونې په ترځ کې وايي:

((تل په شعر کې هم سیال د خوشال نه شته

که څه درشت دی، دا دده سخندان شعر

که څوک بحر مواج وايي ورته ښايي

په دېوان کې يې مونده شي هر سان شعر
هېڅ تر شعره د رحمان به ډېر کم نه وي
و منصف ته د خټک خوشال خان شعر
د ميرزا شعر به جوړ واى ولې دريغه
په وحشي الفاظو ده کړو ويران شعر
چې انصاف زه پير محمد کړم لافې نه کړم
په همعصرو کې مې خوښ دى د ځان شعر.))

(۲۲: ۴۲).

دا لړۍ نوره هم غځېږي، (عبدالله کندهارى) د (احمد شاه بابا) د شعر د ارزونې په باب وايي:

هر غزل يې عشق اوېز دى او هر بيت يې درد امېز دى
حقيقت دى که مجاز دى دده دواړو سره ساز دى
هم عالم دى هم شاعر دى په نکتو کې ډېر ماهر دى
په تحقيق سره هيرا دى چې دده دېوان هيرا دى
تر هيرا، بلکې فايق دى مشتمل په دقايق دى.

د تېمورشاه دراني د زماني شاعر (بېدل هشنغري) په خپل دېوان کې د عبدالرحمن بابا د کلام د مزاياوو په باب وايي:

((چې مشهور په پښتو ژبه يې دېوان دی
شعراوو کې هغه عبدالرحمن دی
قال و حال يې سره سم زيات و کم نه دی
مسلم ځکه د هر دانا نادان دی
په سلطان الشعرا دی ملقب دی
چې يې بيت مصرع په هر ځای کې برهان دی
دغه واړه ځير کې د بصيرت ده
چې يې فکر شکريز کړی بيان دی.))

(۲: ۲۱۲-۲۱۳).

د پښتو ادب په کلاسيکه يا منځنۍ دوره کې (کره کتنه) يوه په زړه پورې موضوع ده، چې پراخ بحث او اوږدو ليکنو ته اړتيا لري، خو مونږ دا څو بېلګې يوازې ددې دورې له کره کتنې سره سره د اشنايۍ لپاره وړاندې کړې.

## ج- اوسنۍ دوره:

د ادبياتو په تاريخ کې يوه ستونزمنه مسله هم د ادبي دورو ټاکنه ده. ادبي دورې د تاريخي او سياسي هغو په شان نه دي، چې ثابت

مهال په غبرګ کې رانیسي، د یوې ادبي دورې تاثیرات په بله کې هم محسوس وي او د یوې دورې افکار او اغېز بلې ته هم غځېږي. په پښتو کې د اوسنۍ کره کتنې د پیل مسله هم دا سې یوه مسله ده. د افغانستان یو نومیالی څېړونکی او ادبپوه (سرمحقق زلمی هېوادمل) وايي: [ ادبي کره کتنه په اوسنۍ مانا په پښتو ادبیاتو کې د شلمې پېړۍ د لومړۍ نیمايي په دوران کې پیل شوې ده. د غه مهال لر او بر کې د پښتو د ودې او پرمختیا لپاره سرکاري او ولسي اداري فعالې شوې، نوي ادبي جریانونه او د پرمختللې نړۍ ادبي نظریات د هند ، ایران او اروپا له لارې پر پښتو ادبیاتو اغېزمن واقع شول او زموږ ځینې فرهنګیان او ادبپوهان د ادبي کره تنې د پخوانیو شرقي سنتي اصولو تر څنګه د ادبي کره کتنې په باب له نویو خبرو ، نویو مسالو او نویو نظریو څخه هم خبر شول او زموږ ادبیاتو ته هم ادبي کره کتنې له نویو غوښتنو او نویو ځانګړنو سره لار پیدا کړه، خو له هماغه وخته تر ننه پورې، لکه څنګه چې ښایي هسې نه، بلکې ما ته ګوډه تر موږه راورسېده. ))

سرمحقق زلمی هېوادمل د ادبي کره کتنې په باب تیوریکو اثارو ته اشاره کوي، وايي: ((که چېرې موږ ووایو چې په پښتو کې د ادبي کره کتنې د مختلفو خواوو په باب لارښودي اثار نه شته، نو دا هم سمه خبره نه ده ، خو که چېرې موږ د غه اثار په پښتو کې د ادبپوهنې د نورو څانګو د اثارو په پرتله له یوې خوا او د منطقې په نورو ژبو

کې د ادبي کره کتنې په خصوص کې د لارښودو اثارو د موجودیت په تناسب له بلې خوا مطالعه کړو، نو ښکاره به شي چې زموږ په ژبه کې دغه اثار ډېر لږ، بلکې ناڅیز دي.))

سرمحقق زلمی هېوادمل وایي: ((د اروابناد سید رسول رسا (۱۹۹۰م مړ) (ادبي تنقید) د ښاغلي قلندر مومند (تنقید) (د ۱۹۶۳م) کال چاپ) او نظمیات (ترجمه) (د ۱۹۶۳م کال چاپ)، د مولوي محمد اسرافیل له خوا ترجمه کړی (کتاب الشعر)، د پروفیسور محمد نواز خان طایر له خوا د مولانا حالي د (مقدمه شعر و شاعری) پښتو ترجمه، داسې مستقل اثار دي، چې مطالعه یې د ادبي نقد لېوالانو او زده کوونکو ته بې ګټې نه ده، خو د یادونې وړ خبره داده چې لوړ یاد شوي اثار د کره کتنې د معیارونو، ادابو، روشونو، ډولونو او نورو ځانګړنو په باب ډېرې خبرې نه لري. د مثال په ډول د سید رسول رسا (ادبي تنقید) زیاتره د شعر په باب د بحثونو پر محور چورلي او د دې لړۍ ځینې نور اثار هم داسې دروا خله.

دلته باید دا یادونه وشي، چې ایا په پښتو کې د ادبي کره کتنې په باب مشخص لارښودي اثار هم شته او که نه؟ د دې پوښتنې ځواب هم مثبت دی، په لوړو یادو شوو اثارو کې هم ځینې لارښودی ارزښت لري. پر دې سربېره کابل مجلې، د زېري جریدې او د پېښور په (لار، رهبر) او نورو مجلو کې هم کله ناکله د ادبي کره کتنې په

باب لاربنسودي اثار خپاره شوي دي، چې موږ په دې خصوص کې ددغو اثارو له پدله هم سترګې نه شو پټولای.

پر دغو متفرقو مقالو سربېره د کاندید اکاډمیسن روهي په (ادبي څېړنې) نومي اثر کې د کره کتنې په خصوص کې ځینې مطالب خپاره شوي دي، چې د کره کتنې د معرفۍ، تاریخي پس منظر، هدفونو، اصولو او معیارونو او ادابو په خصوص کې بحثونه لري. ددې اثر د کره کتنې بحثونه له هغه چا سره بنه مرسته کولای شي، چې غواړي ځان د کره کتنې پر مسایلو پوه کړي.

همدا ډول دده په بل اثر (د ادب او فولکلور په باره کې) هم د کره کتنې دروشونو په باب یوه لیکنه شته، چې عنواني یې دی: (په ادبي کره کتنه کې د (ولې، څومره، څنګه؟) پوښتنو ته ځوابونه). دا لیکنه هم په تیوریکو اثارو کې حسابېدی شي. کاندید اکاډمیس محمد رحیم الهام چې کوم کارونه په دې برخه کې کړي دي، له هغو هم سترګې نه شو پټولای، دده په (ادبي مسالې) نومي اثر کې د (ادبي کره کتنه) او (زموږ د دوران د ادبي کره کتنې مسالې) تر عناوینو لاندې دوی لیکنې راغلي دي. دغه راز په (افغان یاد) نومي مجموعه کې هم موږ د کره کتنې په باب دده یوه بنه مقاله موندلای شو، چې لاربنسودی ارزښت لري. د استاد پوهاند دوکتور تږي او استاد سعدالدین شپون ددې برخې لیکنې هم د هېرولو نه دي.

ګل افضل ټکور چې د زېري جريدې له ببلابېلو ګڼو (۱۳۵۵-۱۳۵۲) څخه يې د ادبي نقد په خصوص کې ددې جريدې د اقتراح مضامين ټول کړي او د کره کتنې په نامه يې په يوه مجموعه کې چاپ کړي دي، د دې ټولګې ځيني ليکنې هم لارښودی ارزښت لري او د کره کتنې نوي زده کوونکي ګټه ځنې پورته کولای شي.

دغه راز د متن د نقد په باب هم زموږ ژبې تر وروستيو کلونو پورې لازم تيوريک اثار نه درلودل او زموږ پوهانو چې په دې ساحو کې کوم کارونه کول، زياتره د عنعنوي ميتودونو تابع وو او يا يې هم يو پر بل پسې د اقتدا پر اساس دا کار سرته رساوه.)) سرمحقق زلمی هېوادمل زياتوي: ((ماته خپله د متن نقد په باب کومه لارښودې او تيوريکه مقاله نه وه معلومه، په وروستيو کلونو کې چې ما د متن د نقد، تحقيق او تدوين په باب ځيني مقالې له اردو ژبې څخه په پښتو ترجمه کړي، په هغو کې ځيني مطالب داسې هم شته، چې د متن د نقد په باب لارښودی حيثيت لرلای شي. د څلوېښتمو کلونو په جريان کې کابل مجلې د استاد رښتين يوه ليکنه چاپ کړې ده، چې زياتره د خطي نسخو د تصحيح او تدوين پر مسايلو بحث کوي، نه د نقد، خو لکه چې دمخه مې عرض وکړ، دغه اثار او مقالې په هېڅ ډول کافي نه دي او زموږ فرهنګي موسسو ته ښايي چې له ځوانو کره کتونکو او په خاص ډول له هغو کره کتونکو سره چې پر

خارجي ژبو نه پوهېږي، د مرستې په منظور په پښتو کې نوي او نور ډېر لار ښودي اثار وراضافه کړي.))

د پښتو ادبي کره کتنه په برخه کې، په تېره بيا په معاصره دوره کې چې د کره کتنې په باب کومه بله پوښتنه مطرح کېږي، هغه د کره کتنې د وېش ساحې دي؟ په کومه برخه کې کار شوی او په کومه برخه کې نور کار په کار دی. دې پوښتنې ته سرمحقق زلمی هېوادمل ځواب وايي:

((کومې عملي کره کتنې چې د شلمې پېړۍ په دوران کې زموږ کره کتونکو او ادبپوهانو په پښتو کې کړې دي، زما د عقيدې او مطالعې له مخې په څلورو ساحو کې دي:

الف- (د تخليقي اثارو کره کتنې، ب) متني کره کتنې، ج) د ادبپوهنې د ځينو څانګو د تحقيقي اثارو په باب کره کتنې، د) د کره کتونکو پر کره کتنو، کره کتنې.

د رواني پېړۍ په دوران کې لر او بر او حتی جنوبي پښتونخواه کې پښتو نقادانو د پښتو د تخليقي اثارو د نقد په خصوص کې يو څه کارونه کړي دي او د همدې لړۍ په کارونو کې په لسګونو تخليقي اثار، د اشعارو مجموعې، ځانګړي شعرونه، د کيسو مجموعې، د پښتو د يوې دورې شعري بهير او نور تخليقي اثار يې نقد کړي او له خپلو برداشتونو سره سم يې دا ډول کارونه سرته رسولي دي. دا ډول

نقدونه په طلوع افغان، کابل مجله، زېري، اصلاح، انيس، هېواد، ولس، رهبر، لار، ننګيالی، جمهوريت، ژوند، پښتو، شهباز، هېواد، وحدت، انجام او نورو ورځپاڼو، مجلو او جريدو کې خپاره شوي دي.

په دې لړ کې ډېرو ښاغلو قلم چلولی دی، چې د څو تنو نومونه يې دادي: استاد عبدالحی حبيبي، استاد الفت، استاد رښتين، پوهاند عبدالشکور رشاد، ارواښاد شهيد پوهاند دوکتور مجروح، پوهاند دوکتور حبيب الله تږی، کانديد اکاډميسين سرمحقق محمدصديق روهي، سعدالدين شپون، داکتر مجاوراحمد زيار او حبيب الله رفيع. په پېښور کې: دوست محمد خان کامل، قلندر مومند، ايوب صابر، همېش خليل، مهدي شاه پاچا، تقي شراب هاشمي، قمر راهي، افضل رضا، اياز داودزی، ربنواز اورکزی، قاضي احمد سعيد، ولي محمد شويان، محمد اعظم اعظم، پروفيسور محمد نوازخان طاير. په کوټه کې: پروفيسور سيال کاکړ، صاحبزاده حميد الله او نور...

زموږ په ځوانو نقادانو کې زرين انځور، دوکتور لطيف بهاند، خالق رشيد، عبيد الله محک، ګل افضل ټکور، نورمحمد سهيم او نورو نومونه د يادونې وړ دي. د تخليقي اثارو د نقد په لړ کې د استاد شپون مقاله معاصر پښتو شعر ته يوه کتنه او د زرين انځور

اثر (شعرونه او نقدونه) د یادونې وړ اثار دي، چې زموږ ځوان کره کتونکي ښه ګټه ځنې پورته کولای شي.

که چېرې د متن د تحقیق سوابق موږ په پام کې ونیسو، نو ان د نولسمې پېړیو له لومړۍ نیمايي څخه په اروپا کې د پښتو متونو د چاپ او نشر په لړ کې موږ په ځینو متني اثارو کې د متن د تحقیق بېلګې راپیدا کولای شو، چې دا لړۍ تر ننه پورې د ختیځپوهانو په حلقو او دغه راز افغانستان، پښتونخوا او جنوبي پښتونخواه کې راروانه ده. په دې تحقیقي متونو کې ځینې د متني کره کتنې له اصولو سره برابر تهیه شوي دي. د متني کره کتونکو په لړ کې موږ د لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي، پوهاند عبدالشکور رشاد، پوهاند محمد رحیم الهام، استاد عبدالروف بېنوا، استاد رښتین، بسم الله ځیرمن، سرمحقق دوست شینواری، حبیب الله رفیع، سرمحقق عبدالله بختانی او زلمی هېوادمل او نورو؛ په پېښور کې د: استاد کامل مومند، قلندر مومند، صنوبر حسین مومند، همیش خلیل، خیال بخاري او ځینو نورو نومونه نه شو هېرولای، دغو یادو شویو کسانو هر یو د پښتو زیات متون په تحقیقي ډول ترتیب، تدوین احیا او بیا چاپ کړي دي، چې د ځینو کارونه د کره کتنې برخې هم لري.

د تخلیقي اثارو او زړو متونو ترڅنګه په پښتو کې د تحقیقي چاپ شوو اثارو کره کتنې هم شوي دي. دغه کره کتنې زیاتره د هغو کسانو دي، چې د نقد په نورو ساحو کې یې هم کار کړی دی، لکه: استاد حبیبي، استاد رشاد، استاد رښتین، استاد کامل، محمد

نوازخان خټک، قلندر مومند، صنوبر حسین مومند، سرفراز خان عقاب خټک، ایوب صابر، حبیب الله رفیع، همیش خلیل، عبدالله بختانی، دوست شینواری، پروفیسور سیال کاکړ، زلمی هېوادمل، پوهنمل حکیم حلیم او نور.

د ښاغلي هېوادمل په وینا: [په دې کره کتنو کې زیاتره د پښتو ادبي تاریخ، تذکرو او دغه ډول پر معلوماتي مقالو کره کتنې شوې دي، چې که په مجلو او ورځپاڼو کې خپرې شوي دغه ډول کره کتنې وشمارو، نو شمېر به یې ډېر اوږد شي. دلته به له دغه ډول کره کتنو څخه ځینې هغه کره کتنې یادې کړو، چې په مجموعو کې چاپ شوي دي:

۱- پښتو چاپ اثارو ته یوه کتنه. دا د پوهاند رښتین یوه مقاله ده چې د پښتو تذکرو ځینې عمده تېروتنې یې ښوولي دي. دا مقاله په (پښتو چاپي اثار) نومي مجموعه کې چاپ شوې ده.

۲- د پروفیسور سیال کاکړ ځینې دغه ډول کره کتنې د (کسي د لمنې پښتانه لیکوال) دوارو ټوکونو او (ادبي انځور) نومي مجموعه کې چاپ شوي دي.

۳- د همیش خلیل یو نقد (د یو تنقید بازګشت) د یوې ځانګړې رسالې په توګه په پېښور کې چاپ دی. دا نقد د لوی خان خوشال خټک په باب د ښاغلي فضل احمد غازي د یوې کښل شوې مقالې په ځواب کې لیکل شوی دی. دا نقد کېدی شي سړی د کره کتنې (کره کتنه) وبولي، خو په واقعیت کې دا کره کتنه، کره کتنه نه بولم

او هغه دا چې د غازي مقاله کره کتنه نه ده، په دې کې يو لړ عنديات دي، چې سړی هر ډول عندي خبرې کره کتنه نه شي بللای.

**۴**- د ښاغلي قلندر مومند (پټه خزانه فی الميزان) او (د خيرالبيان تنقيدي مطالعه) مقدمه داسې نقدونه دي، چې زه يې په دغسې څېړنو کې ضرور يادوم، خو دا يادونه ددې مانا نه لري، چې زه ورسره موافق يم، زه د دغو نقدونو په سلو کې له نوي خبرو سره موافق نه يم او دغه اثار د نقد له اصولو او معيارونو ډېر په کروهونو لرې اثار بولم. ما د دغو دواړو نقدونو د ځينو برخو په رد کې (د محمد هوتک ژوند او مزار) او (د پښتو د ادبي تاريخ د منابعو پېژندنه او ارزيابي) او نورو اثارو کې څه ليکلي دي. له دې نقدونو سره نه يوازې زه، بلکې زما په څېر په لسګونو نور ليکوال او ادبي محققين هم نه دي موافق.

**۵**- د پښتو د ادبي تاريخ له منابعو څخه د ځينو اثارو کره کتنه، دا مقاله د (زلمي هېوادمل) ده او د پښتو د ادبي تاريخ ميتودولوژي نومي مجموعه کې چاپ شوې ده. په دې مقاله کې د پروفيسور دورن (**۱۸۰۵**-۱۸۸۱ع) د خريستو ماتې پر مقدمه، فرهنګ ادبيات پښتو دوهم جلد، د پښتو غزل او د هشنغر ادب نومو اثارو باندې کره کتنه شوې ده.

**۶**- د پښتو د ادبي تاريخ د منابعو پېژندنه او ارزيابي، دا کتاب هم (زلمي هېوادمل) ليکلی دی او د پښتو د ادبي تاريخ د ځينو منابعو تاريخي تېروتنې په کې له وسې سره سمې شوې دي. دا کتاب د منابعو د پېژندنې ترڅنګه په بېلا بېلو برخو کې د نقد برخې هم لري.

۷- د سرفراز خان عقاب ختک ځيني نقدونه په خوشحاليات او د تواريخ حافظ رحمت خاني او اخلاقنامې نقدونه يې په خوشالنامه کې چاپ شوي دي.

۹- د لوی استاد علامه عبدالحی حبيبي ځيني کره کتنې په ((پښتو نثر ته کره کتنې)) نومې مجموعه کې چاپ شوي دي.

د کره کتنو کره کتنې او همدا راز ځوابي کره کتنې هم زموږ د پښتو کره کتنې په ساحو کې شاملې دي.

په افغانستان کې ددې لړۍ پخوانۍ کره کتنې هغه دي، چې پر (۱۳۲۲هـ ش) کال په انيس ورځپاڼې کې نشر شوي دي. د (ترين) په نامه يوه ليکوال د پښتو پر شعري بهير يوه انتقادي ليکنه په انيس کې نشر کړې ده، ددې مقالې ځينې برخې پر پخوانيو، لکه خوشال بابا، حميد بابا او نورو باندې انتقاد و، دې انتقادي ليکنې زموږ د هغې زمانې ادبا او شعرا پارولي او دده پر کره کتنه يې کره کتنې کړې دي او يا دا چې د ده ځوابي کره کتنې يې کښلي دي. په دې لړ کې ډېرې کره کتنې کښل شوي، د ځينو کره کتونکو نومونه يې دا دي: استاد عبدالروف بېنوا، استاد سيد شمس الدين مجروح، حيدر ژوبل او نور. د لوی استاد پوهاند حبيبي ددې لړۍ د کره کتنې عنوان و: ((ايا حق لرو چې پر پخوانيو تنقيد وکړو؟))

ځوابي کره کتنې زياتره د اثارو د ليکوالو له خوا د نقادانو پر نقدونو ليکل شوي دي، چې مثالونه يې ډېر دي، لکه: د (ميا شرف) د پښتو عروضو پر چاپي نسخه کره کتنه، چې د استاد رشاد له خوا

شوې ده او ورېمې مجلې چاپ کړه او استاد رښتین یې ځواب ویلی دی، دا ځواب هم په ورېمه مجله کې چاپ شوی دی، یا لکه پر (ادبي ستوري) چې استاد رښتین کومه کره کتنه وکښله، استاد حبیب الله رفیع یې ځواب ووایه دا دواړې کره کتنې د کابل مجلې د **۱۳۵۴**هـ ش کال په دوو ګڼو کې نشر شوي دي.

همدا راز د زېري جریدې د **۱۳۵۲**هـ ش کال په ګڼو کې چې د زبردست، فقیر احمد اخوندخېل او احمد د پچکۍ او د (طب نامې) او (بازنامې) د ځینو لغاتو په باب کومې کره کتنې او ځوابي کره کتنې نشر شوي، دا هم ددې لړۍ یوه کړۍ ده، دا کره کتنې د استاد رشاد، استاد رښتین، استاد رفیع او زلمي هېوادمل له خوا لیکلی شوي دي. د کره کتنو کره کتنې څو کاله دمخه د لیکوالو انجمن په ځینو محافلو کې ښې باب شوي، زرین انځور په دې لړ کې ګټور کارونه کړي دي.

د ګل افضل ټکور پر شعرونو چې سرمحقق دوست شینواري کوم نقد لیکلی و، د هغه پر نقد بیا زرین انځور نقد کړی دی، دا نهضت ډېر ښه پرمخ روان شوی و. د کره کتنو، د کره کتنې بل ډېر ښه مثال د قلندر مومند د (پټه خزانه فی المیزان) نقد دی، چې لومړی ځل پر **۱۹۷۲**ع کال پښتو مجلې د یوې مقالې په ترڅ کې نشر کړ. دده پر کره کتنه دغو لاندې ښاغلو کره کتنې ولیکلې او نشر شوې: پروفیسور سیال کاکړ، عبدالرحیم مجذوب، همېش خلیل او نورو، خو کله چې دا کره کتنه د کتاب په شکل نشر شوه، نو لومړی ځل زرین انځور او اصف صمیم پرې یو کتابي اثر ولیکه او په پېښور کې یې چاپ او

خپور کړ چې ((د پټې خزانې میزان رښتیا میزان دی؟)) نومېږي. ددې لړۍ نورې کره کتنې هم شته چې د ټولو یادول خبره اوږدوي.] (۳۱: ۵-۱۸).

د دې ترڅنګ یو شمېر ختیځپوهانو هم د کره کتنې په برخه کې کار کړی چې دلته یې نمونه د یادونې وړ دي او همدارنګه د افغان لیکوالو چې په متفرقه ډول یې کار کړی دی.

## د- د کره کتنې په برخه کې متفرقه کار:

پر پورتنیو ځانګړو اثارو سربېره یو زیات شمېر پښتانه لیکوال شته، چې په پښتو کره کتنه کې یې خپله ونډه اخیستې، د پورتنیو ځانګړو اثارو ترڅنګ یې د کره کتنې په برخه کې ځینې نورې لیکنې هم خپرې شوي، چې هغه لا په دې اثارو کې شاملې نه دي، خو د هغو لیکوالو ترڅنګ چې مستقل او متفرقه لیکنې یې خپرې کړي، په لسګونو داسې لیکوال نور هم شته چې د کره کتنې په برخه کې یې عملي او نظري کارونه کړي او متفرقه لیکنې یې په بېلابېلو وختونو کې په چاپي رسنیو کې خپرې شوي دي، په دې لیکوالو کې بهرني لیکوال هم شامل دي او خپله پښتانه لیکوال هم. دلته به د هغو بهرنیو او پښتنو لیکوالو نمونه واخلو چې پر متفرق ډول یې د پښتو کره کتنې په برخه کې لیکنې کړي دي.

### ۱- ختیځپوهان:

پروفیسور برنهارډ ډورن، میجرهاري جارج راورټي، ډاکتر هنري والستر بیلز، جیمز ډارمستتر، سي. ای. بډلف، ډاکتر میکنیزي، سراولف کیرو، سرایولن هاول، پادري هیوز، ولادیمیر واسیلوویچ کوشیف.

او ځیني نور، دغو ښاغلو ختیځپوهانو د پښتو ژبې بېلابېل متفرق او مستقل منظوم او منثور اثار راټول کړي، اوډلي، متني سمون یې په کې کړی، په سم ډول یې ثبت کړي، تحلیل کړي دي، د مرګ له خطره یې ژغورلي ځیني یې د خپل ژوند پر مهال چاپ کړي او ځیني یې د دوی تر مړینې وروسته نورو ختیځپوهانو او افغان لیکوالو چاپ کړي دي. د ختیځپوهانو په دې کاروزیار کې د کره کتنې برخه هم له یاده نه شي ایستل کېدی او دا برخه یې هم خورا مثمره او ګټوره ګڼل کېږي.

## ۲- پښتانه کره کتونکي:

هغه پښتانه چې مستقل کره کتنیز اثار یې لیکلي د دوی په ګډون ګڼ شمېر داسې نور لیکوال هم شته چې په متفرقه ډول یې لیکنې په چاپي خپرونو کې چاپ شوي دي. دلته به یوازې د هغو نومونه واخلو، پوهاند علامه حبیبي، استاد ګل پاچا الفت، مولانا قیام الدین خادم، پوهاند اکاډمیسین عبدالشکور رشاد، استاد

عبدالروف بېنوا، پوهاند صدیق الله رښتین، کاندید اکاډمیسین محمدصدیق روهي، پوهاند مجاوراحمد زیار، استاد حبیب الله تږی، استاد سعدالدین شپون، سرمحقق عبدالله بختانی خدمتگار، سرمحقق زلمی هېوادمل، سرمحقق نورمحمد نعیم، زرین انځور، ډاکتر لطیف بهاند، اسد اسمایي، اسدالله غضنفر، نورالحبیب نثار، مصطفی سالک، عبدالمالک همت، اصف صمیم، عبدالخالق رشید، ایمل پسرلی، اجمل پسرلی، محمدمعصوم هوتک، عبدالغفور لېوال او نور...

همدارنگه په پښتونخوا کې مولوي احمد، قاضي عبدالسلام زیارتي، دوست محمد کامل، نصرالله خان سفر، مهجور خویشکی، شعید گوهر، مجروح یوسفزی، زبیر حسرت، حنیف خلیل، سیدصابرشاه صابر، میا سهیل انشا، همېش خلیل، قنلدر مومند، محمدعبدالشکور، عقاب خټک، ایاز داودزی، دوکتور اسرار، پروفیسور صاحب زاده حمیدالله... او گڼ شمېر نور.

په افغانستان کې د فعالو او کره کتونکو له جملې څخه یو هم ښاغلی زرین انځور دی. ده په شپېتمو لمریزو کلونو کې د عملي او نظري کره کتنو ډېرې ښېلگې ټولنې ته وړاندې کړي چې اکثره یې ډېرې موثرې واقع شوي او تر یوه حده یې د پښتو شعر د شعاري کېدو مخه ونیوله. لکه څنگه چې د مخه یادونه وشوه زرین انځور په دې برخه کې د (شعرونه او نقدونه) په نوم یو مستقل اثر هم لیکلی

دی چې د عملي کره کتنې یوه ښه بېلګه یې ګڼلای شو. دلته به له دې کتاب څخه ((په پښتو او سني شعر کې د نوښت مساله) یوه لیکنه د عملي کره کتنې د بېلګې په توګه وړاندې کړو.

## په معاصر پښتو شعر کې د هنري نوښت مساله:

د شعر او ټولو هنري څانګو یوه اساسي او بنسټیزه ځانګړتیا داده، چې باید نوي وي. دغه نوښت باید د شعر په رګ رګ کې ولیدل شي او که د دغه عنصر شته والی سو چه له یاده وویستل شي، نو هغه شعر به څو کرښې وي، کاغذ به پرې تور شوی وي، د جوړونکي یا لوستونکي او اورېدونکي، وخت به پرې نیول شوی وي، خو شعر به نه وي او له هنري ارزښت څخه به خالي وي.

زموږ ځینې معاصر شعرونه همداسې دي او زموږ ځینې معاصر شاعران او د نن ورځې شاعران همداسې، هغه نوښت چې باید شعر یې ولري، زموږ په شاعرۍ کې ورته ډېره پاملرنه نه کېږي او دا زموږ د معاصر پښتو شعر یو ستر بحران دی. د دې خبرې یو علت دا کېدی شي چې زموږ ځینې شاعران (بې ضرورته) شعر ونه لیکي. که شعر د یوه ژور ضرورت له مخې ولیکل شي یا وویل شي شاید په دغه ژور ضرورت کې د یوه نوښت څرک هم ولیدل شي یا باید ولیدل شي. د (کنستانتین فدین) په نامه یو لیکوال لیکي: ((یو لیکوال یوازې، هغه وخت باید قلم ته لاس کړي، چې یوه مشخصه او دروني هیله او

اړتیا هغه دې کار ته اړ کړي. که یو داسې څه لیکي چې د نورو له کار سره تو پیر ونه لري، نو اصلاً یې د څه لپاره لیکي؟ اخر له دې څنې څه لذت ورلی شي؟ تل او په هره لاره کې باید یو انسان هڅه وکړي چې خپل ځان پیدا کړي او د لیکنې په کار کې د خپل کار لاره پیدا کړي. لیکوال باید د هنر په هره څانګه او هره برخه کې خپل خلاقیت، انفرادیت او ځانګړی توان وښیي.. ))

همدغه خبره ده چې شاعر باید خپله لار پیدا کړي او هر شعر که په مجموع کې د شاعر د مشخصې لارې لارویان وي، باید په جلا ډول هم د هغه هر یو شعر یو ځانګړی خصوصیت، ابتکار او نوښت ولري او د هغه هر یو شعر هم د ضرورت د جلاوالي پر بنسټ باید د یو مشخص خصوصیت لرونکی وي.

شاید ځینې کسان د ابتکار په بحث کې د شکونو درلودونکی وي، یانې دا چې د تقلید او ابتکار په لړ کې ورسره پوښتنې پیدا شي. د یوه لیکونکي نظر په دې ډول دی چې وایي: ((... هېڅ داسې یو هنري او ادبي اثر نه شته چې هغه ته له یوې مخې ابتکاري ووایو، حتی د شاعرانو او لیکوالو په خیالي تراابداعاتو کې هم د نورو هنرمندانو د خیال د ترکیب اجزا لیدلی شو. په دې توګه هر ډول ابتکار تر یوې اندازې په بل ځای پورې تړلی او راغلا شوی دی. خو دغه موشګافي او زیات افراط په هېڅ ډول له پوهې او منطق سره سر نه خوري. د (ګویته) او (شکسپیر) لپاره فولکلوري او ولسي کیسې او زاړه

پېښلیکونه د کار ماده شمېرله کېدله. داسې لکه تیږه او چونه چې د معمار او مجسمه جوړوونکي د کار اصلي مواد ګڼل کېږي ایا کېدی شي سړی معمار او مجسمه ساز هم په دې خبره ملامت کړي، چې ولې د خپل کار اصلي ماده یانې تیږه او چونه خپله نه خلقوي چې له طبیعت نه یې اخلي.))

معمار او مجسمه جوړوونکی په دې خبره نه شي ملامتېدی، خو که هغه ټکي په ټکي د کوم بل مجسمه جوړوونکي کار تقلید کړي، ځوک به ورته د هنرمند نوم ورنه کړي.

لیکوال یا شاعر هم په طبیعت کې له یوې اجتماعي پدیدې(ژبې) څخه د خپل کار د وسیلې یا مادې په توګه کار اخلي. که هغه د نمونې په ډول یوازې د ولسي کیسو او فلکلوري ادبیاتو ثبتوونکی وي او خپل هنري نوښت یې نه وي ورسره ملګری، نو شاعر یا هنرمند نه دی، د فلکلور یا ولسي ادب د راټولوونکي نوم باید ورکړي او په همدې ډول که د هغه په کار کې د خپل ولس د ادبي جریان له تېرو تجربو سره توپیر ونه لیدل شي بیا هم شاعر یا هنرمند نه دی.

په ټولو هنري ادبي پدیدو کې اصلي او د پام وړ موضوع داده چې هنرمند یا شاعر څه غواړي ووایي یا څه وایي؟ که غواړي یو داسې څه ووایي چې تر هغه مخکې ویل شوي او حتی په ښه توګه ویل شوي، نوبیا ویلو او یا اورېدلو ته یې ضرورت څه دی؟ له همدې

کبله خو د یوه ښه شعر ویل یا د یوې نوې هنري یا شعري خبرې کول دومره سخت ګڼل شوي لکه یو علمي کشف. یوه شاعره وايي: (( د یوه ښه شعر ویل دومره سخت دي او دومره غور، کار او زیار غواړي لکه د یوه علمي کشف غوندې. فکر کوم هر هغه څوک چې په هنري کار بوخت دی، لومړی باید خپل ځان جوړ او بشپړ کړي بیا له خپل ځانه رابهر شي او خپل ځانته هم د هستۍ د یوې برخې په توګه وګوري. په دې توګه به هغه وکولی شي خپلو ټولو فکرونو، حسونو او غوښتنو ته یو عمومي حالت وروښيي. ))

کله چې په یوه شعر کې د یوه کشف په اندازه دقت او غور لازم دی، نو ایا داسې شاعري به څومره په درد خوړونکې وي او څومره به نوې وي. د (علمي کشف) خبره دلته د مفاهیمو پر اساس یاده شوې او د دقت او پاملرنې د راوړلو لپاره ورته اشاره شوې ده.

هره هغه خبره چې نوې نه وي، شعر نه دی خو هره نوې خبره هم شعر نه دی. هره نوې خبره د شعر تر حده باید راښکونکې او ښکلې شي، بیا یې یو سړی د شعریت پر امکاناتو باوري کېدی شي. هسې له ساده، سطحي او سرسري نوې خبرې څخه شعر نه شي جوړېدی.داسې خبره یا موضوع چې د شعر جوړولو استعداد ولري او یو باصلاحیته شخص ( چې باید شاعر ورته وویل شي ) هغه تر شعریته ورسوي. یو لیکوال کاږي: ((ساده ګي د شعر لوی صفت دی. خو په دې شرط چې هغه پیغام، هغه لید او هغه تجربه چې رابرسېره کوي یې مبتذله نه

وي، هغه خيال يا (اميج) چې په شعر کې وي هرومرو بايد داسې وي چې په عادي ورځني ژوند کې که څه هم موږ ورسره مخامخ کېږو، خو د شعور مرحلې ته يې نه شو را ايستلی.))او د شاعر ابتکار په همدې کې دی چې هغه د (شعور) تر مرحلې او د (شعر) تر مرحلې ورسوي او د ژوند هره تجربه چې تر دې ځايه راورسېد له (شعر) دی او هغه چې يې دغه تجربه تر دې ځايه رارسولې ده (شاعر). هره تېره شوې تجربه که په هماغه بڼه بيا بيا تکرارېږي، شعر نه شي ورته ويل کېدی، دا ځکه چې د يوه شعر د جوړښت او سکښت يو اصلي ټکی (نوښت) به په کې نه وي. يو بل ليکوال ليکي: (( شاعر هغه څوک دی چې له ژوند څخه يې ځانګړی او نوی مفهوم موندلی وي. هغه د بيان په قالب کې نغاړي او نورو ته يې انتقالوي. يو تازه او خاص مفهوم ځکه چې که نورو پيدا کړی او بيان کړی وي، د شاعر د دويم ځلي لټون هڅې بېهوده شمېرل کېږي... ته که نړۍ هماغه ډول ګورې چې يوه بل شاعر بيان کړې وي، ښه به دا وي چې خپل وخت او زموږ وخت ضايع نه کړې، ځکه له همدغه ځايه څرګندېږي چې شاعر نه ياستئ!))

وايي چې محمود طرزي په خپلو ليکنو کې له يو غربي منتقد څخه نقل قول کوي چې: (( هغه څوک چې د لومړي ځل لپاره يې د خپلې مينې مخ له ګل سره تشبه کړ، شاعر و او هغه څوک چې د دويم ځل لپاره يې دا کار تکرار کړ، بې شعور!)) شايد د شعر د نوښت په

بحث کې د غربي منتقد دا خبره یو څه (افراطي) تصور شي، خو په مجموع کې د پرنسیپ له پلوه جالبه خبره ده. تقلید که په هره پیمانه وي، د غندلو او ردولو وړ دی.

زمورږ په معاصر شعر کې دداسې تکراري شعري تجربو زیاتې او پرله پسې نمونې لیدل کېږي. د یوه معاصر شاعر یوه مشهوره څلوریزه ده چې:

پتنګ نه دی په ډیوه چې ستي نه شي

بلبل نه دی چې په ګل فریادي نه شي

زړه یې مه بوله تور کاڼی د صحرا دی

په لیدو د زخمي زړه چې زخمي نه شي

او زمورږ د راوروسته شاعرانو له خوا همدغه خبره اړول شوې را اړول شوې ده. خو د دې پر ځای چې ښه او له نویو تجربو سره یو ځای شي، په سرچپه ډول مبتذله شوې، تکراري شوې او سخته کمزرې شوې ده. یوه نمونه یې زمورږ د یوې ځوانې شاعرې( ! ) دغه شعر دی:

ښه هغه دی چې د بل په درد دردمن وي

په لیدو د زخمي زړه یې زړه غمجن وي

اصلاً یې شاعر څه غواړي وو ایي؟ هغه څه چې دا یې غواړي وو ایي، مخکې ویل شوي و تـر دې پـه ښـه توګـه ویـل شـوي دي. دې بې ځایـه خپل ځان ستړی کړی دی. که زموږ په اوسني شعر کې ابتکار نه وي، که دغه ډول انفرادیت (په خپل عمومي هنري مفهوم سره ) پـه کـې نـه وي او که نوي مفاهیم او نوي مضامین په کې نه وي، نو چېرې بـه هـم د منل شوي معاصر شعر او د نمونـه یـي شـعر پـه ښـه تائیـد نـه شـي. د ((شعر او هنر ) ) لیکوال لیکي: (( هغـه هنرمنـد د ازادۍ دعـوا کـولای شي چې ذوق، سلیقه او فکـر یـې د بـل چـا اسـیر نـه وي. مقلـد څرنګـه ازاد دی؟ هغه څوک چې د ذوق او فکر لاس او پښـې یـې بنـد وي چـې هڅو د خلاصون امکانات یې هم نـه شـي لیـدل کېـدی، ولـې د شـعري خپلواکۍ غورې کوي ! غواړي ازاد وي، ددې لپاره چې بنـدي پـاتې شي؟ ازاد وي چې له ځایه ونه خوځېدی شي، ازاد وي چې د بـدمرغو بندیزونو زنځیرونه ونه شلولای شي ! شـاید دا د ازادۍ یـوه نـوې ښـه وي( ! ) زما په فکر په هنر کې هم د ټولنې پـه څېـر د ازادۍ لپـاره هلـې ځلې په کار دي، جرات په کار دی او د ازادۍ د لټولو خاوند بایـد پـر خپل ځان متکي وي... ازاد هنرمند هغه دی چې پر خپل ځان باندې په باور لرلو سره لـه هغـه څـه نـه خپـل ذهـن خـلاص کـړي چـې نـورو ورتـه ښېـلي دي. داسې ګومـان وکـړي چـې تـر هغـه وړانـدې هېچـا هـم ددې پراخې دنیا د وصف لپاره تکل نه دی کړی او هغه د لومړي ځـل لپـاره موظف شـوی دی چـې نـړۍ هـم خپلـه وپېژنـي او هـم یـې نـورو تـه

وروپېژني. که کوم هنرمند پر دغه لار لاړ او کوم سوغات يې له ځانه سره راووړ، د هغه دغه ډالۍ به تازه، نوې او د زيات ارزښت لرونکې وي... ))

په ادبياتو او يا په شعر کې د تقليد پر ځای او د بل په پل د پل ايښودلو پر ځای د (نوښت) اصلي کيفيت په دې کې پروت دی، چې د شاعر په قلم او ژبه بايد د ولس ادبيات او د ولس ژبه غني شي د ژبې پر وړاندې او د ژبې د ادبياتو پر وړاندې شاعر ستر مسوولیت لري. په شعر کې هره کلمه بايد حساب شوې وي. د هغه هر شعر او د شعر هر نوی مفهوم بايد د ژبې د ذخيرې لپاره يوه نوې او حساب شوې او معتبره پانګه وي. د نړۍ يو نامتو منتقد (تي، اس، اليوت) ليکي: (( خپله ژبه له هغه شکل څخه چې وه په پراخه، پاکه او دقيقه توګه راتلونکو ته سپارل،دا دی د شاعر په عنوان د شاعر ستر او ممکن برياليتوب )).

که شاعر د ژبې لپاره دومره کار وکړي دا به رښتيا هم لوی برياليتوب وي او هغه چې شاعر دی بايد هم دومره برياليتوب وګټي. زموږ د پښتو ژبې په کلاسيک شعر کې خوشال، رحمن او حميد او نورو ځکه مخکښان ګڼل کېږي چې هغوی خپله ژبه بډايه کړې ده. هغوی د ژبې په شعر کې مفاهيم وضع کړي دي او ځکه خو زموږ د شعر ځلندې او بلندې څېرې دي او ډيوې. د خوشال په شعر کې که له يوې خوا د وخت د پښتني ټولنې د ژوند دايرة المعارف

پروت دی، نو له بله پلوه هغه پښتو ژبه د شعري پربمانه نويو او خوږو مفاهيمو له لارې غني کړې ده. شايد زموږ ځينې کلاسيک شاعران د همدغو لارو لارويان وي، چې ځکه يې شهرت نه دی موندلی او د مخکښانو نوم نه دی ورکړ شوی.

زموږ د معاصر پښتو شعر د ځينو او زياترو شاعرانو نيمګړتيا په دې کې ده چې هغوی نه يوازې دا چې دې ټکي ته پاملرنه نه کوي، بلکې اصلاً ورته دا خبره مطرح هم نه ده.

هغوی ژبه بډايه کوي نه، نيستمنه کوي يې، غني کوي يې نه، بې وسه کوي يې او دا ځومره لويه بدمرغي ده ! ځومره د افسوس وړ خبره ده ! هغوی د دې پرځای چې د ژبې پانګه بډايه کړي حتی د ژبې له تېرې او موجوده پانګې څخه هم په سمه توګه کار نه شي اخيستلی او دا زموږ د شعر ستره نيمګړتيا ده.

خبره داده چې د ټولنې د پرمختګ له بهير سره سم د ټولنې ادبي بهير هم بدلون مومي او بايد بدلون ومومي. دا يوه ډېره عمومي او حتی (چوکاټي) خبره ده، خو زموږ ځينې اوسني او ځوان شاعران له دغه منل شوي (چوکاټي) پرنسيپ سره هم زياته اشنايي نه لري. هماغه تېرې خبرې، همغه تېر مفاهيم او هماغه د ليلی او مجنون کيسې او مفهومونه او هماغه زړې شوې تکراري خبرې د نويو او اوسنيو شعرونو په نامه وړاندې کوي. د (ژوند او فن) ليکوال او شاعر ليکي: ((... د امير کروړ او بيټ نيکه زمانه د خوشال او د رحمن له

زماني بدله وه. ځکه يې په شاعرۍ کې د وخت د بدلون په لحاظ د موضوعاتو او اقدارو تبديلي واضحه ښکاري. د خليق او عبدالاکبرخان اکبر زمانه د خوشال او د رحمان زمانه نه ده، نو ځکه يې د ادب اقدار هم د زماني په مناسبت بدل شوی... د سوسيايټي له بدلون سره به د ادب انداز بدلېږي، که دا د چا خوښه وي هم او که نه وي خوښه نو هم، ځکه چې که ببټ نيکه وايي:

لويه خدايه لويه خدايه ستا په مينه په هر ځايه

غر ولاړ دی درناوي کې تهوله ژوي په زاري کې

نو په خپل ساده ماحول يې په پاک ذهن او زړه عکس غورځولی دی. دغه وخت دغه د معاشرې ژوند و. که خوشال ووايي چې:

بله هېڅ ليدلی نه شي تر دا منځه يا مغل د منځه ورک يا پښتون خوار

نو د وخت حالاتو ورته دا احساس وربښلی و، ځکه دا سې وايي... ))

زموږ په معاصر پښتو شعر کې نه يوازې دا چې د پرمختګ دغه مجموعي بهير ته په شعوري توګه پاملرنه نه کېږي، بلکې د تېرو شعري تجربو او د تکراري او زړو مفاهيمو هماغه زياته تکراري بڼه چې اوس مبتذله ده، رواج لري.

کومه بله خبره چې دلته يې يادول ضروري دي، هغه دا ده چې د ژوند د تجاربو ځينې عادي برخې زموږ د معاصر شعر زياتې نمونې

جوړوي، داسې نمونې چې نه په کې شعري ابتکار شته او نه هنري تخیل. زموږ د یوه اوسني خپاره شوي شعر یوه برخه لولو او وینو چې څومره عادي خبرې دي؟

څومره تکرار شوې او منلې شوې خبرې:

کـار دی چې مـوږ تــه محبـت ښـېـي
کار دی چې مـوږ ته ستر نعمت ښیي
کـار دی چې معمـار بـه وي د نـوي ژونـد
کـار دی چې نـړۍ تـه بـه زینـت ښیـي
کار دی چې به جنګ او جګړه ختمه کړي
کـار دی چې بـه سـوله امنیـت ښیـي
کـار دی چې بـه واړه سـره وروڼـه کـړي
کـار دی چې کـارګرو تـه وحـدت ښیـي
کـار دی چې سیندونه خیـژوي پـه غـرو
کـار دی چې رغـو تـه طـراوت ښیـي
کـار دی د سـتړیاوې د دمـې ضـامن
کـار دی چې بشـر تـه سـعادت ښیـي
کـار دی چې بـه رنـځ بیمـاري ورکـه کـړي
کـار دی چې صـحت او سـلامت ښیـي
کـار دی چې د لـوږې بـدبختۍ پـر ضـد
مـوږ تـه اسـتحکام اسـتقامت ښیـي
کـار دی چې څـوک نـه شـي تمبـولی بیـا
څـرخ چې د تـاریخ تـه حرکـت ښیـي
کار دی چې به موږ پرې مخ پر وړاندې ځو
کار دی چې بـه مـوږ تـه دا جـرات ښیـي

وګورئ ! سمې خبرې دي او معقولې خبرې ! د کـار ارزښت همدومره او حتی تر دې هم زیات دی، خو خبره دا ده چې لـه دغـو خبـرو سره او له دغو نصیحتونو سره د شاعر خلاقیت څه شی دی؟ همدومره خبرې چې (کار ښه دی، ډېر ښه دی، بېخي زیات ښه دی) دا خو نـو عمـومي

خبرې او د شعر لپاره حتی سطحي خبرې دي، شاعر څه غواړي وواييي او په څه ډول يې غواړي وواييي؟ شاعر په دغه شعر کې کوم نوي ټکي بيانول غواړي؟ هېڅ نوی ټکی نه شته هماغه زوړ واعظ دی او زړې خبرې.

يا مثلاً دا چې د دهقان ارزښت او مقام د زياتې ستاينې وړ دی، خو که زموږ معاصر شاعر د هغه د دريځ تشريح کول غواړي، بايد دا کار د نويو موضوعګانو او نويو مفاهيمو له لارې وکړي، په دې ډول چې سړی پوه نه شي چې کوم شعر دی او که د نباتاتو د پوهنې کوم فصل ! د يوه نوي شاعر يو شعر ته پاملرنه کوو:

((ګرانه دهقانه))

| | |
|---|---|
| راغی موسم د بهار | ښايسته ښکاري ګلزار |
| نباتات واړه بيدار | د ځوان بزګر انتظار |
| وطن مو کار غواړي | زيار ببشمار غواړي |

ګرانه دهقانه

| | |
|---|---|
| پنبه غنم وکره | په دغه دم وکره |
| په زړه بې غم وکره | له چانه مه کوه ډار |
| وطن مو کار غواړي | زيار بې شمار غواړي |

او ګرانه دهقانه !...

او پـه همـدې ډول درواخلـه، زمـوږ ځينـې نـور شـعرونه. پـه دغـه ډول شعرونو کې يو ازې خبرې شته او ښکاره ده چې يو ازې خبرې شعر نـه شي کېدی. شعر بايد يو نوی ټکی او د بيـان يو نوی ډول ولـري او دغه بيان بايد يوازې د شاعر پـه ژبـه او قلم پـورې منحصر وي. ځکـه چې هغه شاعر دی، هغه بايد ددې صلاحيت لرونکی وي او د هغه پـه قلم او ژبه کې بايد دومره توان پروت وي.

زموږ د معاصر پښتو شعر يوه بله ځانګړتيا او يوه بله نيمګړتيا داده چې که يو ځلې کوم شاعر يوه نوې، يوه ښـه او يـوه شعري او هنـري خبـره وکـړه، هماغـه خبره بيـا هنګامې پيـدا کوي او هر شـاعر يـې د تقليـد لپـاره راپـاڅي. هماغـه ډول شـعر ليکـي، خـو تـر اصـل شـعره کمزوری او مبتذل. يوه نمونه وړاندې کېږي:

يوه لوی معاصر شاعر په دې موضوع چې زه شاعر يم او دا چې شاعر بايـد څنګـه وي؟ يـو ښـکلی شعر ليکلی دی، يـوه ډېره لـږه برخـه يـې داسې ده:

| | |
|---|---|
| ته د سلـطان د دربارونو شاعر | زه د محرومو ولسونـو شاعر |
| تـه د خمونو او جامونو شاعر | زه د پېـرۍ د قــيامونو شاعر |
| ... ته د ماڼـۍ د اقبالونو شاعر | زه د کېږدۍ او ادبـارونـو شاعر |
| ته په بزمو کــې د نـازونو شاعر | زه په زندان کې د مرګونو شاعر |
| تــه د نېکمرغـو پسرليو بربښنا | زه د بــدمـرغـو بــارانــونو ژړا |

ته ماښامي کې د بـزمونـو نـڅا　　　　زه سباوون کې د تېغونو ځلا...

او وروسته نو زموږ شاعرانو قلمونه راخیستي دي او همدغه چیغې یـې شـروع کـړي دي چـې: بـس زه د ولسـونو شـاعر او زه دردونـو او غمونو شاعر او زه د پاڅونونو شاعر او همدغسې نورې خبرې چې د لومړني ښکلي او اصلي شعر بې ځایه تحریف په کې لیدل کېږي. یا یوه بله نمونه: زموږ یوه بل معاصر نامتو شاعر په خپل وخت کې یو ډېر ښکلی شعر زمزمه کړ. دا سې شعر چې زیاتې هنګامې او انګازې یې جوړې کړې. شعر د خپل وخت یو لوی پیغام پـه ډېر هنـري ډول پـه خپل ځان کې نغښتی و، یوه برخه یې داسې ده:

نسیم ووې د ګل غوږ کې

بدل شو د یارانې رنګ

غلی شانته انقلاب دی

بدلوي د زمانې رنګ

ورسره نوي رنګونه

رنګا رنګ تحولونه

کړي سمسور به راغ راغونه

موسم بل دی هم بل شوی

د بلبل د ترانې رنګ

غلی شانته انقلاب دی

بدلوي د زمانې رنګ

دړې وړې زوړ رباب دی

زوړ مطرب خانه خراب دی

زوړ اهنګ د روح عذاب دی

هم شو نوی د نغمې رنګ

غلی شانته انقلاب دی

بدلوي د زمانې رنګ

نوی دام نوی صیاد دی

نوی چل نوی بیداد دی

نوی آه نوی فریاد دی

هوښیاري صید لره بویه

بدل شوی د دانې رنګ

غلی شانته انقلاب دی

بدلوي د زمانې رنګ...

دغه ښکلي شعر تر خپرېدو وروسته، بیا هم زموږ شاعرانو ملاوې وترلې، متې یې راونغښتې او قلمونه یې راواخیستل، هېڅ داسې شعر به نه وي چې د (نوي) نوم به په کې نه و اخیستل شوی. هر څه نوي، شاعر نوی، شعر نوی، ژبه نوې، قلم نوی، ساقي نوی، پیاله نوې، میخانه نوې او پیمانه نوې.

زموږ زیاتو شاعرانو خپلو شعرونو ته دغه ډول (نوی) خو تکراري شکل ورکړ. هماغه خبرې ډېرې ډېرې او بې ځایه بې ځایه کارېدلې.

دغه ډول تقلیدي شعرونو زموږ د مطبوعاتو پاڼې ډکې کړې. ددې پرله پسې لړۍ یو (نمونه یي) شعر دلته لیکو:

موسم نوی بهار نوی ارغوان تازه تازه
چمن نوی ګلشن نوی بلبلان تازه تازه
محفل نوی شاعر نوی ساقیان تازه تازه
رباب نوی سرود نوی نغمه خوان تازه تازه
عشق نوی جانان نوی عاشقان تازه تازه
جمال نوی وصال نوی سره لبان تازه تازه
جهان نوی زمان نوی سور اسمان تازه تازه
دوران نوی ژوندون نوی ارمغان تازه تازه
تقدیر نوی تدبیر نوی طرازان تازه تازه

جنت نوی نعمت نوی جنتیان( ! ! ) تازه تازه
...خیال نوی فکر نوی طراحان تازه تازه
معمار نوی تعمیر نوی نقاشان( ! ) تازه تازه
طبیب نوی درمل نوی هم درمان تازه تازه
شربت نوی ګیلاس نوی تشنګان تازه تازه
معلم نوی تدریس نوی شاګردان تازه تازه
شکل نوی مضمون نوی هم عنوان تازه تازه
بیان نوی ادب نوی ادیبان تازه تازه
نثر نوی نظم نوی شاعران تازه تازه
باغوان نوی بوستان نوی ګلستان تازه تازه
له خزان دې په امان وي سره ګلان تازه تازه

ښه نو دا خبرې، دا لیکنې او دا ډول تشې قافیې شعر ګڼل کېدی شي؟ نه ! نه ! هېڅکله هم نه !

زموږ په معاصر پښتو شعر کې که د عشقي سندرو جاج هم واخیستل شي، له بده مرغه چې په زیاترو شعرونو کې هماغه زړې خبرې او هماغه تکراري خبرې بیا بیا تکرارېږي. د سر زوري او سرتېري مین لیاره هماغه لېونی مجنون نن هم زموږ د شعر سمبول دی. هماغه د قرنونو لیلی لا زموږ د شعر د ښایست اتله ده او هماغه سرې شونډې، زرین شال، تورې سترګې او تورې زلفې لا زموږ شعري مفاهیم دي چې په ډېرو لږ توپیرونو سره د یوه او بل شاعر له

خوا په شعر کې په پرله پسې ډول کارول کېږي او که د قافيې ضرورت وي، نو بيا خو زرين شالان، تور چشمان، تور زلفان او سره شونډان هم د معاصر شاعر د شعر مضامين جوړېدلای شي.( ! )

د نن ورځې د شاعر سندره هم بايد د قرنونو له سندرو سره توپير ولري.

دا يو عمده ضرورت دی او دا ځکه چې که مونږ وايو: ( معاصر پښتو شعر )، نو بايد د خپل عصر ټول خصوصيات له ځانه سره ولري او که نه خو که يې تاريخ او د شاعر نوم ورسره ونه کښل شي، شايد معلومه نه شي چې دغه يا هغه شعر نن او پرون ويل شوی او که په لسمه يا دولسمه هجري پېړۍ کې. او بيا دا چې که زمونږ د شعر مفاهيم همدا سې په مبتذل ډول دوام وکړي شايد د معاصر شعر د رشد لپاره د امکاناتو په لټون کې مو څه برياليتوب په برخه نه شي. د يوه تقريباً ښه عشقي شعر نمونه دلته وړاندې کوم او وينو چې څومره ښه او خواږه شعري مفاهيم په کې کارول شوي دي. دا د پخوا وخت يو شعر دی خو يو نسبي ابتکاري شعر يې ګڼلای شو:

سپيدې مګر خيال د چوولو لري — چې زړه تلاش د تېبدلو لري

اوښکه به څو وي په زانګو د سترګو — دا هلک وخت د تلو راتللو لري

د وصل صيد په دعا رام کله شي — وحشي خو خوی د ترهېدلو لري

د خال دانې په هوا زړه الوزي — دا مرغه ذوق د الوتلو لري

پــه ښکلـي مـخ کې خنتما نه اوسي | خط دې نـوبـت د راوتلـو لـــري
نـــازو نـخرې بــه رســاقد کوې څو؟ | دا سبر وخت د کــړېدلــو لري
لکــه ســحر تــاجر په مينه کې ستا | نوبـت د خپـل ګرېـوان څيرلـــو لـــري.

معاصر شـاعر بايـد خپـل شعر تـه د واعـظ د خبرو يـا د ناصح د پند رنګ ور نه کړي. هغه بايد په شعر کې د لويو او وړو نيمګړتيـاوو پـر وړاندې راپورته شي او په خپل شعر کې داسې خبرو تـه ځـای ور نه کړي چې له ده پرته پرې حتی ټول عادي خلک هم پـو هېږي. هغـه بايـد ژورتياوې راوسپړي او په ډېر دقت يې راوسـپړي. هغـه بايـد پـه خپـل شعر کې د خپلې ژبې لپـاره نـوي مفـاهيم وړانـدې کـړي. د غنـي دغـه شعر همداسې يو نوښت لري او دقت ورته په کار دی:

((پيدايش))

او ما ځان له ساز کړ پخپله جوړ | د خپـل خـوب نـه، د خپـل
خيـــــــــــــــــــــــــــــــــــال نـــــــــــــــــــــــــــــــــــه
د خـــپل غــم نـه، د مـــستۍ نه | د خـــپل تـــول نـــه، د خپـل تـال نـه
او ماځان له يار کړ پخپـــله جوړ | د خپـــل سوز نـــه، د ارمـــان نـــه
د خوبـو نـو نـه، د رنګونـو نـه | د ګـــلونــــو نـــه، د خـــزان نـــه
او ما ځان لـه غـم کړ پخپله جوړ | د خنـــدا نـــه، د خـــوشالـــۍ نـــه
د وصـــال نـــه د خـــمار نـــــه | د بـــــهار نــــــه د لـــــولـــۍ نــه
او ماځان له ژوندون کړ پخپله جوړ | د امـيـــــد نـــــــه، د
رڼـــــــــــــــــــــــــــــــــــا نـــــــــــــــــــــــــــــــــــه

د تـــيارو نـــه، د ښـــېرو نـــــه
د غـــمونـــو نـــه د ســـودا نـــــه

او ما ځان له مرګ کړ پخپله جوړ
د ژونـــدون نـــــه، د مـــستۍ نـــه

د پـــسرلـــي د زېـــړو ګلـــو نـه
د لالونـــو نـــه، د ځـــوانـــۍ نـــه

خبره رالنډوو او وايو چې د نن ورځې شاعران بايد يوازې (خبرې) د شعر په نامه وړاندې نه کړي. د نن ورځې شعر د پېړيو پېړيو پخوا زمانو شعر نه دی. خو زموږ ځينې شاعران نه يوازې دا چې د نن ورځې شاعران نه دي، بلکې هغه د پېړيو پېړيو پخوانۍ عنعنه يې هم نه ده ياده او نه پرې پوهېږي.

او د (فضل الحق شيدا ) يو بيت زموږ د معاصر پښتو شعر د ابتکار يا تقليد د بحث د پای ټکی جوړوي. موږ يې معاصر شعر او معاصر شاعر ته خطاب ګڼو:

تېل يې وچېږي خپلې وينې په کې ژر واچوئ
هسې نه مړه شي د جونګړو مو ډيوه ملګرو ! ) )

(۳: ۲۲-۴۴ ).

ادبي بهيرونه: لکه څنګه چې د مخه يادونه وشوه، پر ليکوالو سربېره يو شمېر ادبي او علمي مرکزنو هم وخت پر وخت د کره کتنې عملي غونډې جوړې کړي، له هغې جملې څخه په شپېتمو کلونو کې د افغانستان د ليکوالو ټولنې او په تېره بيا د هغې د ځوانو ليکوالو

ځانګې وخت پر وخت کره کتنيزې غونډې جوړولې، دې غونډو خپل خپل تاثيرات درلودل. د تنظيمي جګړو پر مهال دا غونډې له منځه لاړې. وروسته په اويايمو کلونو کې په پېښور کې افغان ادبي بهير جوړ شو، په دې بهير کې هره اوونۍ د کره کتنې غونډې جوړېدې، وروسته بيا په کوزه پښتونخوا، کابل، ننګرهار، کندهار، خوست، پکتيا، کندوز، بلخ، لغمان او د هېواد په ګڼ شمېر نورو سيمو، ولايتونو او علمي مرکزونو کې ادبي خوځښتونه رامنځته شول. په دې بهيرونو کې د کره کتنې په سوونو عملي بېلګې وړاندې شوې چې تر دې دمه يې په هېواد کې ساری نه و ليدل شوی، دا کره کتنيزې غونډې اوس هم ښې په درز کې روانې دي.

# د پنځم څپر کي لنډ يز لنډ يز

له هغه وخته چې په پښتو ادبياتو کې ليکنی ادب رامنځته شوی، نو کره کتنه هم ورسره تړو کېدلې ده. البته دا کره کتنه له ادبي اثارو څخه جلا د مستقلو اثارو په توګه نه ده ترلاسه شوې، کله چې موږ په لرغوني دوره کې پښتو ادبيات ګورو، نو د کره کتنې محتويات يې هم په متن کې تر سترګو کېږي. په لرغوني دوره کې د (شيخ رضی لودي) او (نصر لودي) په شعري مناظره يا مکالمه کې د نقد لومړني څرکونه شته، د ابو هاشم ابن زيد السرواني په لومړني ژباړل شوي شعر کې هم د کره کتنې محتويات راغلي، د شيخ اسعد سوري قصيده هم کره کتنيزه او انتقادي مالګه لري او همدارنګه د ځينو نورو شاعرانو په شعرونو د کره کتنې ځينې ځانګړنې ليدل کېږي.

د پښتو ادبياتو په منځنۍ دوره کې بيا د لرغوني هغې په انډول د کره کتنې برخه زياته شوه، د روښاني دورې د شاعرانو په اثارو کې د کره کتنې محتويات راغلي، که څه هم دا نيوکې اکثره پر مذهبي اساساتو راڅرخېدلې، د اخوند دروېزه او د هغه د پلويانو اثار چې يوه برخه يې د روښاني غورځنګ پر وړاندې غبرګون و، هم انتقادي محتويات لري. تر هغه وروسته بيا (خوشال) په ډېره غوڅه ژبه د

دوا ړو جریانونو پر اثارو ډاګیزه کره کتنه کړې ده. د خوشال په منظومو او منثورو اثارو دواړو کې د کره کتنې جوهر شته، خو په منظومو اثارو کې یې کره کتنیز جوهر زیات ځلیږي. تر خوشال وروسته هم د منځنۍ دورې ګڼ شمېر شاعرانو په خپلو شعرونو کې د کره کتنې محتوا ځای کړې، د شعر او نظم په ژبه یې د نورو شاعرانو د شعرونو شننه او ارزونه کړې ده. خو په منځنۍ دوره کې چې خوشال کره کتنې ته څومره پاملرنه کړې، بل هېڅ شاعر او لیکوال د کره کتنې په برخه کې دومره کار نه دی کړی. خوشال له خپل ځانه نیولې، بیا تر خپلې کورنۍ، قبیلې، ټولو پښتنو او ټولو افغانانو پورې پر هر یوه پر خپل ځای کره کتنه کړې ده. پر خپل چاپېریال او په هغو کې یې د ملایانو او نورو په ګډون پر بېلابېلو ټولنیزو کرکترونو ټینګې نیوکې کړې او په دې دوره کې د یوه لوی کره کتونکي په توګه څرګند شوی دی.

د پښتو معاصرو ادبیاتو په بېلابېلو پړاوونو کې کره کتنې ته زیاته پاملرنه وشوه.

ددې دورې په بېلابېلو پړاوونو کې بېلابېلې ادبي ټولنې جوړې شوې، کره کتنیزې غونډې یې جوړې کړې او مستقل اثار یې رامنځته کړل. د سیدرسول رسا (ادبي نقد)، قلندر مومند (تنقید) د مولوي محمد اسرافیل له خوا ترجمه کړی (کتاب الشعر)، د کاندید اکاډمیسین محمدصدیق روهي (د کره کتنې تاریخي پس منظر او

معیارونه)، د پوهاند محمد رحیم الهام (ادبي کره کتنه) او ځینې نور اثار د یادونې وړ دي.

د شلمې پېړۍ په بهیر کې د پښتو کره کتنې په برخه کې ګڼ شمېر لیکوالو لکه، استاد عبدالحی حبیبي، استاد الفت، استاد صدیق الله رښتین، پوهاند عبدالشکور رشاد، پوهاند دوکتور بهاوالدین مجروح، دوکتور حبیب الله تږی، کاندید کاند میسین محمدصدیق روهي، استاد سعدالدین شپون، دوکتور مجاور احمد زیار، حبیب الله رفیع، زرین انځور، لطیف بهاند، دوست محمد خان کامل مومند، قنلدر مومند، ایوب صابر، همېش خلیل، مهدي شاه باچا، افضل رضا، قمر راهي، ایاز داودزی، محمد اعظم اعظم، پروفیسور سیال کاکړ، صاحب زاده حمیدالله او نور ګڼ شمېر لیکوال او کره کتونکي د یادونې وړ دي.

# د پنځم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-په پښتو لیکني ادب کې د کره کتنې څرک له کومه وخته لیدل کېږي؟

۲-د پښتو ادب په منځنۍ دوره کې کومو لیکوالو پر یو بل کره کتنې او یا نیمه کره کتنې کړې دي؟

۳-د خوشال د کره کتنې، کرکترونه، چاپېریال او محتویات کوم دي؟

۴-ایا مونږ په پښتو لرغونې او منځنۍ دورو کې د خوشال په شان بل کره کتونکی لرو؟

۵-خوشال ولې کره کتنې ته ډېره پاملرنه کړې ده؟

۶-د پښتو د معاصرو ادبیاتو په پیل کې کومو لیکوالو کره کتنې ته ډېره پاملرنه کړې ده؟

۷-په معاصره دوره کې له پښتو ادبي اثارو سره د کره کتنیزو اثارو انډول برابر دی؟

۸-په معاصره دوره کې کوم کره کتنيز اثار د تائيد او کوم د تامل وړ دي؟

۹-د ليکلو اثارو ترځنګ ادبي بهيرونه هم د کره کتنې د بهير لپاره موثر دي او که نه؟

۱۰-کومې ستونزې دي چې په معاصره دوره کې يې پښتو کره کتنه ډېرې ودې ته پرې نښوده؟

## سپارښتنې

۱-محصلين دې په خپلو څېړنو هغه پښتو اثار او کره کتونکي په ګوته کړي، چې په دې اثر کې يې يادونه نه وي شوې.

۲-هر محصل دې له خپل ليدلوري په معاصره دوره کې د پښتو کره کتنې پر ستونزو يوه تحليلي او څېړنيزه ليکنه وکړي.

# شپږم څپرکی

## د کره کتنې ډولونه

څومره چې د ادبیاتو محتوایي او شکلي ډولونه زیاتېږي، د کره کتنې ډولونه او د ادبیاتو د تشریح او توضیح میتودونه او لارې چارې هم ورسره زیاتېږي.

ادبپوهانو کره کتنه د خپلې محتوا او تخصص له امله پر بېلابېلو برخو وېشلې ده. سره له دې چې پر بېلابېلو ډولونو او په تېره بیا د کره کتنې د وېش پر ثابت شمېر د کره کتونکو د نظریو والی نه شته، خو پر دې ټول ادبپوهان متفق دي، چې کره کتنه په لومړي سر کې پر دوو ډولونو: (نظري او عملي کره کتنې ) وېشل کېږي.

[نظري نقد یو لړ اصول او روښونه رانغاړي، چې د همدغو روښونو په مرسته په نظري کره کتنه کې له ادب او هنر سره د مربوطو مسایلو او مباحثو ارزونه کېږي، جاج یې اخیستل کېږي او

د ادبي مېچونو او چېولو له لارې د تخليقي اثارو د معيارونو تجزيه او تحليل کېږي.

ادب څه شی دی؟ کره کتنه څه ارزښت لري؟ له تخليق سره د کره کتنې څه ارتباط دی؟ نقاد څه مقام لري؟ او د بېلابېلو ژانرونو د فني ښېګڼو او بدګڼو د ټاکلو لپاره د لارښودو اصولو تشکيل او تحليل، د دغو او داسې نورو پوښتنو لپاره د ځوابونو پيداکول، د نظري نقد کار دی. يوازې دانه، بلکې د لوړو ټولو پوښتنو پر ټولو ځوابونو نقد هم په نظري نقد کې شاملېږي، يا په بله ژبه نظري کره کتنه، د کره کتنې کره کتنه هم ده.

کله چې د نظري نقد د وضع شويو اصولو په رڼا کې او يا د يوې بلې ذريعې له لارې، د ادبي تخليقي اثارو ښېګڼې او بدګڼې وښودل شي، نو دې کار ته بيا عملي نقد ويل کېدی شي. د عملي او نظري نقد له جلا او ځانګړو يادونو څخه مطلب دا نه دی، چې ګوندې موږ کره کتونکی هم په عملي کره کتونکو او نظري کره کتونکو سره جلا کولای شو؟ اصلي خبره داسې نه ده، ځکه چې يو کره کتونکی د کره کتنې د نظريو د جوړونې تر څنګه عملي نقد هم کولای شي.

د يو څېړونکي په وينا: ((د کره کتنې د نظريو او عملي کره کتنې ترمنځ بېلتون تر زياته حده مصنوعي دی، خو په دغو دواړو ډولونو کې توپير کول کاري ثابتېږي. دا پوښتنه چې ادب څه شی دی؟ او يا د يو خاص ادبي اثر د ځانګړنو د ښودلو عمل که څه هم په خپلو

منځو کې سره مربوط او هماهنګ ښکاري، خو دغه دواړه د يو ځانګړي نوعيت لرونکي دي او د هغو ځانګړې مطالعه په يقيني ډول د اثر په پوهېدنه کې د صراحت او اسانتيا سبب ګرځي. ))

په دې لړ کې دا هم بايد په نظر کې ولرو، د نظريې جوړونې لپاره چې ځومره اساسي او ژور فلسفيانه شعور، منطقي استدلال او رسا ذهن ته اړتيا ليدل کېږي، هماغومره زياتره نقادان له دې ذهنيت څخه محروم دي، نو له همدې امله د خپلو نظرياتو په رڼا کې پر خپلو نظريو ولاړ عملي کره کتونکي ډېر لږ پيدا کېږي. که کوم ستر نظريه جوړوونکي دومره همه ګير ثابت شي، چې ډېر نور نظري کره کتونکي ترې بالواسطه يا بلا واسطه ګټه واخلي، نو په دغسې مواردو کې د هغې نظريې انفراديت يوازې په هغه حالت کې ټينګ پاتې کېدلای شي، چې دوی په پټو سترګو د چا تقليد ، ونه کړي.

ددې لپاره چې موضوع يو څه نوره هم روښانه شي، غواړو د نظري او عملي کره کتنې په باب لږ څه نوره رڼا هم واچوو او د کره کتنې ډولونه له همدې نظري کره کتنې پيل کړو:

## ۱-نظري کره کتنه:

د نقد د دغه ډول بل نوم Literary Aesthtics هم دی. دا ډول نقد د بېلابېلو ادبي او تنقيدي مسايلو په باره کې پر مباحثو او نظرياتو خبرې لري. ځينې ادبپوهان پر همدې اساس وايي مور دا ډول نقد د

کره کتنې د ځانګړي ډول په توګه نه شو منلای. ځکه د ارسطو له بوطیقا څخه نیولې د نن ورځې تر کره کتونکو پورې ټول نقادان په پرله پسې ډول د نظریاتو پر نوي کولو او جوړولو مصروف دي. په انګلستان کې د اسپانیا او ایټالیا د کره کتونکو په څېر J.C.Scaliear او vives تر اغېز لاندې د (سډني) په زمانه (۱۵۷۰ع) کې نظریاتي نقد لږ ډېر ظهور وکړ او په غالب ګومان د (رچرډ ډیلز) کتاب De,poetical کولای شو، د نظریاتي نقد په لاره کې لومړنی اثر حساب کړو. دا کتاب پر (۱۷۷۳ع) کال خپور شوی دی. په شپاړسمه پېړۍ کې (سډني) تر ټولو زیات مشهور شو، ګواکې دی بالعموم لومړنی انګرېزي نقاد منل کېږي، خو دده د مشهور تالیف د لیکنې تاریخ په باب د نظریاتو اختلاف دی دی. عام قیاس دادی چې دا اثر پر (۱۵۸۰ع) کال پای ته رسېدلی دی او یا پر ۱۵۸۱ع کال بشپړ شوی دی، البته دا کتاب دده په ژوند کې چاپ نه شو، بلکې دده تر مړینې نهه کاله وروسته پر ۱۵۹۰ع کال چاپ شو. ددې کتاب دوه ایډېشنه خپاره شوي دي، په یوه ایډېشن کې یې نوم Anapology for poetire او په بل ایډېشن کې یې نوم The Defence of poesie راغلی و او له دې څخه ښکاري چې مسوده یې بې عنوانه وه.

دا د نظریاتي نقد پیل و او تر دې وروسته ددغه ډول نقد په پانګه کې زیاتوالی راغی او لکه: (هابس)، (اډیسن)، (برک)، (کولرج)،

(میتوارنولډ)، (اوتی)، (اس ایلیت) او نورو له ادبیاتو او نقد سره تړلي مباحث له فلسفیانه مسایلو سره اشنا کړل.

لنډه دا چې نظري نقد د یوه ادبي اثر د ارزونې په باب نظریې وړاندې کوي، په حقیقت کې د نقاد د نظریو یوه مجموعه ده چې په دې کې د کره کتنې معیارونه پرنیسپونه او میتودونه ټول شاملېږي.

## ۲-عملي کره کتنه:

عملي کره کتنه د کره کتنې تطبیقي اړخ دی. په دې کره کتنه کې هغه اصول، معیارونه او پرنسیپونه چې په نظري کره کتنه او یا هم د کره کتنې په نورو ډولونو کې بیان شوي، هغه په عمل کې پلي کېږي یا د هغو په رڼا کې یو اثر شنل کېږي. عملي کره کتنه تر نظري هغو ځکه سخته ده چې دلته ټول معیارونه او پرنسیپونه عملاً پر یو اثر تطبیقېږي.

عملي کره کتنه له عملي بېلګو پرته ممکنه نه ده. یو اثر باید موجود وي، چې پر هغه د کره کتنې عملیه تطبیق شي. په دې مرحله کې باید له ډېر احتیاط څخه کار واخیستل شي.

له نظري کره کتنې سره د نظریاتو اختلاف وي، خو دا اختلافات له عملي کره کتنې سره ډېر زیات دي، که په عملي کره کتنې کې له ډېر دقت څخه کار وانه خیستل شي، نو د کره کتنې او کره کتونکي پر

وړاندې ډېرې ستونزې راولاړولای شي. ( په پښتو او سني شعر کې د نوښت مساله ) لیکنه چې مخکې راوړل شوه، د عملي کره کتنې یوه بېلګه ده، چې دلته د شعر یا نظم عملي بېلګې راوړل شوي او پر هغو کره کتنه شوې ده. عملي کره کتنه کېدی شي د هنري ادبي اثر پر هر ډول ترسره شي.

## ۳-تاریخي کره کتنه:

تاریخي نقد یا کره کتنه د نقد یو ډول دی، چې ځینو کره کتونکو هغه د نقد یو ځانګړی ښوونځی او ځینو یو ډول معرفي کړی دی. د (کره کتنیز او ادبي ښوونځي ) څپرکي کې مو دې ډول کره کتنې ته ځینې اشاره کړې ده. باید وویل شي چې د ادب په تخلیق کې ډېر او بېلابېل عوامل دخل لري، د ادبي ایجاد ګر له خوا قلم او چتول او د اثر ایجادول کومه میخانیکي بڼه نه لري، بلکې د هغه تخلیقي شعور ته خاص جهت ورکول، په پوره اندازه یو پېچلی عمل دی. څنګه چې ډېر ځله د محرکاتو او عواملو له یوځای کېدو څخه خاص نظر را زېږي، ددغو عواملو او محرکاتو شننه او بیا د هغو د اهمیت ټاکنه د نقد په مهمو مسایلو کې راځي، ددغه مقصد لپاره پر ادب او ادبي ایجادګر باندې د تاریخي حالاتو او حوادثو د اغېزمنې کتل او جاج اخیستل لازمي بریښي او په نقد کې تاریخي نظریه یا ښوونځی د همدې اړتیا د پوره کولو لپاره رامنځته شوی دی. (عابد علي عابد ) په خپل اثر (اصول انتقاد ادبیات ) کې کښلي دي:

(( په تاريخي لحاظ د ادبي انتقاد منظم پيل د اوه لسمې پېړۍ له ابتداء څخه شوی دی. پر ۱۷۷۵ع کال د (دنپلز) فلسفي رساله (نوی علم) خپره شوه. دا رساله د تاريخ پر فلسفه بحث کوي. په دې رساله کې غالباً په تاريخ کې لومړی ځل د ادب د اجتماعي تعبير کوښښ وشو او وروسته تر دې دغه تصوير ډېر زيات مقبوليت وموند، چې د هنر او ادبياتو مطالعه او تشريح او تعبيرول له دې لوري په کار دي او دا خبره واضح شوه، چې د ادبياتو او هنر د پوهېدنې لپاره لازم دي، ټول هغه سياسي، اجتماعي، تاريخي او فرهنګي حالات بايد مطالعه شي، چې ادبيات يې تر اغېز لاندې ايجاد شوي دي.

له زماني او مکاني اړخ سره سره (جانسن) دغه ډول نظر وړاندې کړی دی، لکه: (( د يوه تخليقي اثر په باره کې د سمې پرېکړې لپاره موږ اړ يو، چې د هغې زمانې عمومي فضا ځانته ښکاره کړو او دا وښيو، چې خلکو څه ډول ژوند کاوه، د خلکو غوښتنې څه ډول وې؟ او ادبي ايجادګر د خلکو د غوښتنو د پوره کولو لپاره څه ډول وسايل استعمال کړي دي. ))

(جانسن)، د (ايډمنډ شيرر) Edmondscherer په څېر تاريخي نقاد نه و، خو له دې اقتباس څخه ضرور دومره څرګندېږي چې پخوانيو نقادانو ته هم د تاريخي عواملو ارزښت څرګند و او پر اهميت يې پوهېدل.

د تاریخي نقد منظم پیل د فرانسوي نقاد (ایډمنډ شیرر) له زماني څخه ګڼلای شو. ده پر (ملټن) باندې د (والټر) او (میکالی) انتقادي نظریات مطالعه کړي وو. (شیرر) پر دې خبرو ټینګار کاوه چې د یو ادبي اثر په انتقادي مطالعه کې باید تر ټولو دمخه شخصي خوښه یا نه خوښه او د خپلې زمانې ادبي تعصبات یوې خواته کېږدو او اثر ته د خپلو شرایطو په رڼا کې کتل په کار دي. ددې مقصد د ښه ترسره کولو لپاره د ادبي اثر د مفصلې او هر اړخیزې کتنې تر څنګ د ادبي اثر د ایجادګر شخصي ژوند ، د هغه د ژوند زمانه، ماحول او په هغه زمانه کې د سیاسي، اجتماعي او ادبي عواملو شننه او کتنه هم ضرور ده او دا باید ښکاره شي چې دغو عواملو پر ادبي اثر باندې په څه ډول مثبت یا منفي اغېز ښندلې دی.

د ریچارډ مولټن (Rechard Moulton) په څېر (شیرر) هم له معیار ټاکنې او درجه بندۍ سره مخالف دی، دده په خیال د نقاد وظیفه دا نه ده، چې دی د ادبي اثارو بیه وټاکي، د نقاد وظیفه داده چې دی په بېطرفۍ سره د تاریخي او نورو عواملو په رڼا کې ادبي اثر وشني او بیا د اثر د معیار او ارزښت پرېکړه لوستونکي ته پرېږدي. فرانسوي نقاد (سان) د (شیرر) نظریاتو ته زیاته پراختیا ورکړه. پته دې نه وي چې (سان بو) خپل علمي ژوند د طب له مطالعې څخه پیل کړی و. د همدې لپاره دی په نقد کې د نسل او نسلي وراثت اغېزمنۍ ته هم په زیات اهمیت قایل دی او په همدې

علت دی وایي چې د ادبي اثر تر مطالعې د مخه د ادبي ایجاد ګر مطالعه هم ضروري ده. ده یو ځل یو ځای ویلي وو: (( زه ادب او ادبي تخلیق له انساني تنظیم څخه کوم بېل شیز نه ګڼم )).

د (سان بو) نظریاتو ته بیا بل فرانسوي نقاد (دالاتین) زیاته پراختیا ورکړه، (تین) د ادب د تفهیم او د تخلیقي محرکاتو د شننې لپاره پر خپلو وضع کړیو اصولو تر دې حده ټینګار کاوه چې هغو د یوې خاصې فارمولې حیثیت ځانته غوره کړی و، هغه فارموله داده: (نژادي ماحول او د تخلیق شېبه) د دې نظریې له مخې ادیب د خپلې زمانې پیداوار دی هغه له یو خاص نژاد سره تړلی دی او په یو جلا ټولنه کې زېږېدلی دی او سربېره پر دې د کوم ځانګړي مقام او تاریخي شېبو د خاصو اثراتو له یو ځای کېدو څخه دده شخصیت جوړ شوی، ادبي شعور او تخلیقي استعداد په یو مخصوص قالب کې اچوي او په یو خاص ډول د اظهار جامه وراغوندي.

تاریخي کره کتنه له دې امله هم ډېر اهمیت لري، چې لومړی ځل یې د هغو اجتماعي عواملو تاریخي محرکاتو او نژادي اثراتو اهمیت څرګند کړ چې په یو ډول نه یو ډول د ادیب شخصیت په یو خاص قالب کې اچوي او د تخلیقي شعور لپاره یې په یو مخصوص انداز کې سره تنظیموي. څنګه چې تاریخي نقد یوازې هغو مسایلو ته اهمیت ورکوي، چې سرو کار ورسره لري، نو د همدې لپاره ډېر ژر یې خامۍ هم څرګند برې.

(متیو ارنلډ ) ځان له افراط او تفریط څخه ساتي او د تاریخي نقد په باره کې ډېر زیات متوازن نظر ورکوي، دی لیکي: (( په موجوده زمانه کې تاریخي نقد ډېر مهم او مشهور دی، خو ددې خبرې یادوه هم په کار ده، چې که وو ایو یوازې ددې مطالعې له لارې د ادب سم تفهیم کېدی شي نو دا یوه خطرناکه نظریه ده. ))

د ایران مشهور لیکوال او کره کتونکي عبدالحسین زرینکوب بیا د تاریخي کره کتنې په باب وایي: ((که چېرې یو کره کتونکی د یوه ادبي اثر د تحلیل او ارزونې لپاره، تاریخي حوادثو، یا هم تاریخ پورې نورو اړوند مسایلو ته لاس وروړي، یا هم د یو شاعر شعر څېړي او یا د هغه همعصره شاعرانو اثار تحلیل کړي، یا د اثارو تاریخي قدامت څېړل کېږي، دغه ډول کره کتنې ته تاریخي کره کتنه ویل کېږي. دا ډول کره کتنه د کره کتونکي د استعداد په اندازه د هغه ډېر زیار ته اړتیا لري، ځکه چې په دې ډول کره کتنه کې یوه اثر ته له ذوقي لیدلوري ډېر نه کتل کېږي. ځکه نو کره کتونکی د یو اثر له هنري درک او ارزښت څخه عاجزېږي. په دې ډول ویلای شو چې تاریخي کره کتنه د یوه شهکار ادبي اثر پر واقعي تحلیل نه بریالی کېږي. ))

## ۴-تشریحي او توضیحي کره کتنه:

د (جارج واټن) په خیال تر (۱۶۲۰ع) کال د مخه انګرېزي نقد قانون جوړونکی او یا نظریه جوړونکی نقد و. (ډرایډن) لومړنی نقاد دی، چې په خپل (Dramatic poesie) نومي اثر کې یې توضیحي نقد په عام او پراخ مفهوم استعمال کړ. دا کتاب پر (۱۸۲۸ع) کال چاپ شو او په یوه وینا د نقد تاریخ له ده څخه پیلېږي او پر همدې اساس (ډاکتر جانسن) دی د ((نقد بابا)) بللی دی؛ په دې باب دده خپل الفاظ دادي: ((ډرایډن بې له شکه د انګرېزي نقد بابا ګڼلای شو، ځکه چې ده لومړی ځل ادبي اثار د ستاینې د اصولو په رڼا کې راوپېژندل.))

## ۵-ښکلا ییزه کره کتنه:

ادبپوهان په دې نظر دي چې د ښکلا ییز نقد او د هغه د اصولو تر مطالعې او کتنې دمخه د ښکلا پوهنې اجمالي مطالعه هم ضروري ده، ځکه چې له ښایسته زیاتې زمانې څخه، د شاعرۍ او نورو ښکلو هنرونو په نقد کې ښکلا پوهنه له ډېرو مهمو مباحثو څخه شمېرل کېږي. د ښکلا پوهنې مطالعه له دې پلوه هم مهمه ده، چې په ښکلا پوهنه کې د (کروچه) په څېر فلاسفه هم تېر شوي دي، د (کروچه) مفکورې د ادبي نقد پر معیارونو او له هغه سره پر تړلو مباحثو له یوې نوې زاویې څخه رڼا اچوي.

(ذموقراطیس) لومړنی فیلسوف دی، چې د هغه په اقوالو کې موږ د ښکلا پوهنې په باب ځینې اشارې پیدا کولای شو، خو دده افکار د ښکلاپوهنې په اړه اساسي اهمیت نه لري، ده په منظمه توګه د ښکلا پوهنیزو مفکورو د وړاندې کولو کوښښ نه دی کړی او دا خو افلاطون و، چې په منظم ډول یې دې خوا ته مخه وکړه او په خپلو اثارو کې یې له ښکلا پوهنې سره تړلي اصول او قوانین تدوین کړل.

اوس په دې برخه کې له تاریخي کرونولوژیک بحث څخه تېرېږو او اصلي مسئلې ته راځو او ګورو چې حسن او د هغه رنګارنګ مظاهر په یو نه یو ډول انساني ژوند اغېزمن کړی دی، خو تراوسه د هغه د ماهیت ژوره مطالعه لا نه ده شوې او په همدې علت د هغه جامع تعریف موږ نه شو وړاندې کولای. دا په دې مانا چې له خالص جسماني نظري لوري نیولې تر صوفیانه نظریاتو پورې په دې باب بېلابېلو خلکو د کره کتنې زیارونه ایستلي دي او د ځوانۍ د خوب غوندې، د ښکلا هم په سلګونو تعریفونه دي، خو خبرې لا هسې بنیاد نه دی پیدا کړی او ددې وجه داده چې د نېکۍ، شر، خیر، محبت او نورو په څېر حسن هم یو مجرد کیفیت دی. ارسطو چې د استنباطي منطق د تعریف لپاره څو مره قواعد وضع کړي دي، د هغو اطلاق د هغو پر مجردو کیفیاتو نه شي کېدی، دغسې د رنګونو د حسي تاثر، له محسوسولو سره موږ د ژبې، سور او نیلي رنګ تعریف نه شو کولای. دا د انسان بدمرغي ده چې حسن ګوري او د

هغه له ساحرانه کیفیاتو مدهوش کېږي، خو خپل دغه احساسات په الفاظو کې نه شي راوستلای، پر همدې اساس د حسن په باره کې چې کوم تعریفات وړاندې شوي دي، هغه یوازې د الفاظو شعبده بازي ده.

اوس یوه ډېره با اهمیته پوښتنه دا راپیدا کېږي، چې حسن انسان څنګه متاثر کولای شي؟ او ددې وجه څه ده چې د ګلاب ګل، کهکشان، سرې شونډې، نیلي سترګې، شفق، د بوډۍ ټال او نور څنګه پر انسان تاثیر کولای شي؟

په دې لړۍ کې د ښکلا او د هغه د لیدونکي ترمنځ یوه اړیکه یا رشته شته او هغې ته لوی اهمیت حاصل دی، موږ په ښکلا کې له اسراره ډک یو کشش حس کوو او موږ ددغه کشش له امله په ښکلا کې یوه لېوالتیا محسوسوو. دلته بیا سوال پیدا کېږي، دا لېوالتیا د څه شي زېږنده ده؟ دا لېوالتیا تخیل رازېږولې ده؟

د ښکلا په باب تر لوړې اجمالي او لنډې یادونې وروسته، د ښکلاییز نقد وار رارسي، خو په پیل کې یوه خبره څرګنده په نظر راځي، چې د نقد هره طریقه تر یوه حده پورې د اظهار او ابلاغ په وسیله کې جذابت پیدا کوي، خو ښکلاییز نقد، د نقد له نورو ښوونځیو پر دې پیلېږي، چې په دې نقد کې د ښکلا او ښکلاییزو مسایلو مطالعه د تنقید اساس نه منل کېږي او پر دې سربېره کوم بل څیز هم نه مني، د همدې لپاره یو ښکلاییز نقاد په ادبي تخلیقاتو

کې د حسن او زړه راکښونو د ځانګړنو تحلیل ته په خپل قضاوت کې اساسي اهمیت ورکوي.

د ښکلا پوهنیز نقد اصطلاح مشهوره او زیاته ده، خو زیاته پخوانۍ نه ده، حال دا چې د حسن فلسفه، حسن او ښکلا زیات پخواني دي.

دا چې د ښکلا ییز نقد اصطلاح ولې پخوانۍ نه ده، وجه یې دا ده چې د ښکلا پوهنې اصطلاح تر دوو سوو کلونو زیاته پخوانۍ نه ده.

(بام ګارټن) (۱۷۱۴-۱۷۶۲ع) تر هر چا د مخه د ښکلا Aesthetics اصطلاح وضع کړه. دا اصطلاح ډېره پخوانۍ نه ده، خو دغه الفاظ بې حده پخواني دي. او دا ټول له دوو یوناني لفظونو څخه مرکب شوي دي او مطلب یې داسې شی دی چې د پنځه ګونو حواسو په وسیله یې درک کېدل ممکن وي، خو (ګارټن) دا پخپله تر لغوي حده پورې نه محدودوي او په عام ډول یې د ښکلا فلسفې لپاره استعمالوي.

د ښکلا ییز نقد اساسات د حسن د هغو مظاهرو پر ادراک پورې تړلي دي، چې ادبیات یې په یو نه یو ډول اظهار وي. د ادبي اثر د پنځوونکي شعوري ژورتیا چې کله د حسن له صورت منلو سره مرسته کوي او یا یې په یوه ځانګړي بڼه اظهاروي، نو دا بیا ښکلا ییز تخلیق دی. ښکلا ییز نقد هم د ښکلا او هنر له بېلابېلو

صورتونو سره تر حده زياته لېوالتيا لري، چې ښکلا څه شی دی؟ او تر دې هم مهمه دا چې څه شی ښکلا نه ده؟ ايا د حواسو په وسيله د حسن بشپړ ادراک ممکن دی؟ ايا ادبي ايجادګر د بشپړ حسن په اظهار قادر دی؟ ايا لوستونکی په ادبي اثر کې د حسن د وړانګو د ليدنې او کره کتنې د صلاحيت حامل دی؟ له دغو سوالونو او ځوابونو څخه د ښکلا ييز نقد معيارونه جوړېږي، خو که په دقيق ډول وکتل شي، دا ګرده سوالونه د نوعيت په لحاظ فلسفيانه دي.

په ادبي تخليق کې د حسن د مخصوص کيفيت د اندازه کولو لپاره د ښکلا ييز مېچ اصطلاح استعمالوي. په دې ضمن کې کله کله د جمالياتي حسن د اصطلاح نوم هم اوربدل کېږي او د همدغه حسن په وسيله هر انسان له ښکلا څخه تر يوې اندازې پورې د خوند اخيستلو صلاحيت پيدا کوي. ګنې د ښکلا د ادراک لپاره انسان پنځه ګونو حواسو ته اړ دی، خو له دغه ادراک سره تړلي کيفيات د خپل بې حده لطف له امله د انسان په زړه کې څپې او په روح کې مستي پيدا کولای شي. د لطيفو احساساتو د څښتنانو شديد ښکلا ييز حس په نسبي ډول زيات قوي وي. همدا حس لومړی د ايجادګر شعور او وجدان په يوه ښه اغېزمنوي، بيا د همدې ښکلا تر اغېزې لاندې دې ايجاد ته تمايل پيدا کوي، خپل دغه کيفيات په يوه ځانګړي قالب کې اچوي او د نړيوالو مخې ته يې د يوه هنري اثر په بڼه وړاندې کوي. په دې ترڅ کې د لطيف حس، سليم مذاق، ذوق

او وجدان غوندې اصطلاحات هم استعمالېږي اوددې ټولو مطلب دادی چې د همدغو ذوقونو په مرسته انسان له یوه هنري اثر او د هغه له بېلابېلو کیفیاتو څخه د خوند اخیستلو صلاحیت لرلای شي. تر دغو اساسي اصطلاحاتو وروسته باید ووایو، چې ښکلاییز نقد، د نقد له نورو ډولونو سره په ځینو اساسي مسایلو کې د بېلوالي له امله ځینې اساسي توپیرونه لري، یانې دا چې د ادبي اثر د تشریح، تفهیم یا ارزښت ټاکلو لپاره د هغه د بېلابېلو اجزاوو یا مهمو خصوصیاتو تحلیل نه کوي، دویمه دا چې د اثر د ارزښت د ټاکنې لپاره پرېکړه خو کوي، خو دغه پرېکړه د نقد پر ځینو اصولو، یا ژبنۍ قاعدې او کومې هنري طرېقې باندې د ټینګښت زیار نه باسي او ددې مقصد لپاره له پخوانیو مهمو انتقادي نظریاتو څخه د مرستې غوښتلو کوښښ نه کوي.

ښکلاییز نقد په اصل کې (ادب د ادب لپاره) د مفکورې ضمني زېږنده و. ددې نظریې له مخې ادب له ژوند سره کوم تعلق نه درلود او پر همدې اساس ښکلاییز نقد هم له ژوند او د ژوند له مختلفو مظاهرو سره خپل اړیکي شلوي.

(ادب د ادب لپاره) نظریې په څېر ښکلاییز نقد هم د جان رسکن (John Ruskin) د معیار خوښوونې او اخلاق پالنې پر ضد یو عکس العمل ګڼلای شو او ښایي پر همدې اساس وي چې ښکلاییز نقاد هم هر هغه شی چې د ښکلا او له هغې څخه د حاصل شوي خوند

خلاف وي، د هغو پر مستردولو ټينګار کوي. والترپيټر ( Walter peter ) د ښکلا ييز نقد مهم مخکښ ګڼلای شو ، ده چې د خپل کتاب (The Reaiscance ) په سريزه کې د کومو خيالاتو بيان کړی دی، هغه په حقيقت کې د ښکلا ييز نقد نچوړ دی. ددې سريزې پر بنسټ کله چې ښکلا ييز نقاد د کوم ادبي ايجادګر د اثارو شننه کوي، پر دغه خبره ورته فکر په کار دی چې دغه اثر پر ذهن څه ډول نښې پرېږدي او اغېزمني يې تر کومه حده ثابتېږي؟ ښکلا ييز نقاد دغه ډول سوالونه پيدا کوي: دغه ادبي اثر څه شی دی؟ ددغه اثر له مطالعې څخه څه ډول اثرات را زېږي؟ له هغه څخه خوښي پيدا کېږي که نه پيدا کېږي او بالاخره دغه خوښي څه ډول خوښي ده؟

دده په فکر د ښکلا ييز نقاد فريضه هم ده، چې هغه د ادبي اثر هغه خواوې راڅرګندې کړي، چې د خپل حسن پر بنسټ د خوند موجبات جوړوي. په دې ترڅ کې به ده د ځينو ښکلا ييزو اغېزمنيو د ماخذونو وضاحت کاوه او ورسره به يې پر دې خبره هم رڼا اچوله چې دغه اغېزمني څنګه رامنځته کېږي. ؟

په اوسنۍ زمانه کې د ايټالوي فيلسوف (کروچې) افکارو هم پر ښکلا ييز نقد ژور اغېز پرې ايښی دی. هغه په ښکلا پوهنه کې د (Expressionism) له بنسټګرو څخه دی. دی په ځينو برخو کې (والترپيټر) او (اسکرووايلډ) ته نږدې دی. د مثال په ډول (کروچه) هم د هر ډول موخې او خارجي حقيقت ليکنې مخالف دی. دی له ادب

ثخه له ښکلا له پرته د بلې هرې افادې د اوچتولو مخالف دی. (کروچه) د ادبي پنځونو د ښکلاییزو کیفیتونو پر سم ابلاغ باندې ټینګار کوي. په نقد کې تجزیه، تحلیل او عقلي جواز ضروري او مهم نه ګڼي، دده په فکر په یوه هنري اثر کې د حسن د بشپړ ابلاغ قوت په خپله یو ضرورت دی، نو پر همدې اساس په هنري اثر کې د اخلاقو، مقصد او منطقي صداقت تلاش بې ګټې کار دی، ځکه چې تخلیق ځانته د ښکلا خپل جهان دی. د تخلیق د ښکلا په دې جهان کې د عقل نه، بلکې د وجدان سکه چلېږي. هغه، تجزیه او تحلیل د نقد لپاره نا ضروري څیز ګڼي، دده په فکر مانا، صور، مواد، اډانه او اسلوب دا ګرده عناصر په یو ناوېشلي لوړوالي کې د ښکلا د ابلاغ سبب ګرځي، له وجدان ثخه مرسته غواړي او له هغه ثخه ګټه اوچتوي، چې په علمي طریقو سره ددې چارو تحلیل ممکن نه دی.

د (کروچه) په فکر تخلیق تر څلورو مرحلو وروسته بشپړېږي.

۱- تر ټولو دمخه پنځوونکی اغېزمن کېږي.

۲- تر دې وروسته د خپل تخیل او ښکلاییز ذوق په مرسته په یو نوي ډول د خپل ذهن او وجدان له امتزاج ثخه کار اخلي، چې دی ورته (Expression) وایي.

۳- له دغه وجداني ترکیب او امتزاج ثخه پنځوونکی ښکلاییز خوند اخلي (په دې خوند کې دده د اثر لوستونکی هم شریک دی).

۴- تر دې وروسته دغه ټولې اغېزمنۍ او د هغوی ښکلا ییز ترتیب، د وینا ، رنګ، اواز او اهنګ په ښه نورو ته د رسېدلو جوګه کېږي. (ډاکټر زرینکوب) بیا د ښکلا ییزې کره کتنې په باب وايي((دا هغه کره کتنه ده چې په یوه اثر کې د هغې له خاصې محتوا پرته د هنر ښکلا ییز جوهر څېړي. ددې ډول کره کتنې اساس او ریښه کولای شو په اروپا کې د (کالیریج) او په امریکا کې د (ادګارالن پوه) په نظریاتو کې ومومو. (الن پوه) هنر ته د ښکلا پېژندنې له لید لوري ګوري او په هنر کې د اخلاقو عنصر پردی ګڼي، د ده په نظر هنرمند ته چې کوم شی اهمیت لري دا نه دی چې کومه خاصه نظریه بیان کړي او کوم فکر څرګند کړي، بلکې هغه ته دا مهمه ده چې پر لوستونکي یو واحد او ټولیز تاثیر پرېباسي. دده په نظر ادبي اثار هغه ودانۍ ده چې یو معمار یې جوړوي، خو کوم څه چې په دې کې ارزښت او اهمیت لري، د هغې انډول او هماهنګي ده.

په فرانسه کې د (پارناس) (هنر د هنر لپاره) ادبي ښوونځي هم په یوه ډول د همدغې کره کتنې بیان توجیه کوي. که څه هم (هنر د هنر لپاره) تعبیر د لومړي ځل لپاره (ویکتور هوګو) اعلان کړ، خو وروسته بیا (تئوفیل ګویته) د هغه پر توجیه او دودونې لاس پورې کړ. هغه د هنر په باب وايي: (( د هنر ګټه څه شی دی؟ ښکلیتوب، ایا همدا کافي نه ده؟ لکه ګلونه، عطرونه، الوتونکي او نور هغه شیان چې بشر نه شي کولای له خپلې لېوالتیا سره سم یې تغیر او ضایع

کړي. په ټولیز ډول هر هغه څه چې ګټور شي، نور نه شي کولای ښکلي اوسي، څکه چې ورځني ژوند ته داخلېږي.))

## ۶-حکمي کره کتنه:

دا کره کتنه د یو لړ داسې اصولو او معیارونو له مخې کېږي، چې د مخه وضع شوي. کره کتونکی د نقد پر وخت پخواني ټاکلي معیارونه مخې ته ږدي او د هغو په رڼا کې د ادبي اثر په هکله حتمي فیصله ورکوي. ادبپوهان په دې کره کتنه کې یوه لویه نیمګړتیا دا ګڼي، چې د کره کتنې دا روش له هغو ادیبانو سره زیاتی دی، چې په ادب کې ارتقا او بدلون ته قایل دي. په لنډه وینا ویلی شو چې د کره کتنې دا لاره په ادب کې د نویو لارو چارو د رامنځته کېدو پر وړاندې لوی خنډ دی.

## ۷-اروا پوهنیزه کره کتنه:

د اروا پوهنیز یا اروایي کره کتنې ښوونځی او ډول ډېر زوړ نه دی، ځنګه چې په ډېره لږه موده کې اروا پوهنیزو تحلیلونو د انساني فکر لوری بدل کړ او د مذهب، معاشرې، اخلاقو او ښکلا په اصولو او طریقو کې یې د یو نوي انقلاب هنګامه توده کړه، دغسې اروایيز نقد هم د ادبي او تخلیقي نظریو په پوړیو کې اساسي بدلونونه راوستل، وینا او پیغام د بېلابېلو تجربو لپاره د تهیج د برابرولو سبب شو.

د اروايي کره کتنې اساس د (فرويد ) په نظرياتو کې نغښتی دی، د وروستيو اروا پوهانو نظرياتو ورته ژوروالی وبانښه او حتی نن د ايرا پروګوف (Ira progoff Depth psycoloty) په بنه اروا پوهنې او د هغې تر څنګ اروايي نقد زياته پراختيا موندلې ده. د اروايي نقد تر نقادانه مطالعې دمخه پر دې خبره پوهېدل په کار دي، چې نن په ادبياتو کې د اروا پوهنيزو مباحثو مقبوليت او يا په نقد کې د اروا پوهنې د اصطلاحاتو د عام منښت دا مطلب نه دی، چې د کره کتنې له دغه ښوونځي څخه رومبی هېڅکله کوم نقاد له اروا پوهنې څخه کومه ګټه نه ده پورته کړې او نه له دې دا پوهېدل پکار دي، چې يوازې د (فرويد ) او (ايدلر) او (رژنګ) غوندې د لويو مفکرينو تعليماتو په ادبي کره کتنه کې اروايي مسايل راداخل کړل او له دغو مسايلو څخه يې ګټه واخيسته. څنګه چې روحيات د انساني ذهن او دده د چلند او کړو وړو د تفهيم نوم دی، نو دا ښکاره خبره ده، چې له اروا پوهانو څخه دمخه هم ځينو خلکو او ايجاد ګرانو له دغسې ذهني کيفيتونو سره لېوالتيا لرله. همدا وجه ده چې له اوسنۍ اروا پوهنې او د اروا پوهنې له اصطلاحاتو څخه ناخبره پخوانيو نقادانو، ځينې داسې اروايي څرګندونې کړې وې، چې په هغو کې اروا پوهيز بصيرت ځلا موندلې وه، لکه: (ډيوډ ډيشز) (David Daisches) چې دی اروايي پوهه ان تر افلاطونه پورې رسوي. دده په فکر افلاطون چې په (Ion) که د ادبي تخليق د

عمل پېچلتیاوې په کوم ډول څرګندې کړې وې، هغه په نفسیاتي طریقې پورې اړه لري.

همدارنګه ایټالوي نقاد لان جینس (Lon Ginus) په خپل کتابګوټي (On the subline) کې د خپلې ادبي نظریې د څرګندولو په ترڅ کې ځینې داسې افکار څرګند کړي، چې هغه مونږ د ارواییي نقد تر عنوان لاندې راوړی شو. (ډاکټر زرینکوب) د اروا پوهنیزې کره کتنې په باب وایي: ((په دې ډول کره کتنه کې کره کتونکی هڅه کوي چې د شاعر او لیکوال باطني او رواني احوال درک او بیان کړي او د هغه استعداد، ځواک او هنري ذوق و سنجوي، د هغه د عواطفو او تخیلاتو ځواک وټاکي او له دې لارې هغه تاثیرات چې د چاپېریال، دودونو او ټولنې له خوا ددې جریان پر ټوکېدو وارد بڼي، مطالعه کړي. ځکه نو کره کتونکي، د ادبي اثارو د پوهېدنې لپاره اروا پوهنیزو ارزښتونو ته پاملرنه مهمه ګڼي او د کره کتنې د نورو ډولونو او برخو دخولې دروازه یې ګڼي، په حقیقت کې شعر او ادب د شاعر او لیکوال اروا پوهنه ګڼي.

د انسان د روح د لیدلورو څېړنه له ډېر پخوا څخه د یونان په ډراماتیک شعر کې موجوده وه، وروسته بیا په اروپا کې د (راسین)، (شکسپیر)، (ایبسن)، (متیرلینګ) او (داستایوفسکي) په شان اشخاصو دې پلټنې ته دوام ورکړ او دې سره یو نوی فکري فلسفي بهیر، ددې سبب شو چې ادبیات د

اروا پوهنې له نظره وڅېړي او دا د (فروید ) (یونګ ) او (ادلر ) د نظریاتو تاثیر و.

د (فروید ) په نظر: د انسان روان د مرګ او ژوند د غریزې ترمنځ کشمکش دی. د انسان ارامي د هغه ژوند د غریزې بریالیتوب او د نارامۍ هغه یې د مرګ د غریزې بریالیتوب دی.](۱۸: ۲۱-۴۱ ).

له لوړو عمومیاتو نه چې ورتېر شو اروایي نقد په عمومي ډول د اثر جاج داسې اخلي:

ـ د ایجادګر د شخصیت د نفسي اساس پیدا کول او بیا د هغه په رڼا کې د تخلیقي شخصیت مطالعه.

ـ د اروا پوهنیزو اصولو په شیاق او سباق کې د مخصوصو تخلیقي پلټنو تشریح او توضیح او بیا د هغه د ادبي مرتبې ټاکنه.

د اروایي نقد د عمل د دایرې له دې ټکو څخه څرګند یږي، چې اروایي کره کتونکي پر یوه وخت د تخلیقي عمل او ایجادګر له مطالعې څخه یوې نتیجې ته درسېږدو کوښښ کوي. تخلیقي عمل د ایجاد په ډګر کې د ځینو داسې مخصوصو تعبیراتو سبب ګرځي، چې دده د شخصیت لپاره د ځینو اروا پوهنیزو ګټو باعث کیږي او هغه د یوه له مطالعې سره، د بل مطالعه لازمي ګڼي. که اروایي کره کتونکی یوازې په ایجادګر پورې ځان محدود کړي، نو دا به د روحي معالج د کار خبره وي او که ددې برعکس دی په تخلیقاتو کې

د اروايي مسايلو لټون وکړي، نو دا به بيا د غشي ويشتونکي خبره شي. له اروايي نقد څخه د مخه تاريخي نقد او ټولنيز نقد هم د ايجادګر د شخصيت او د چلند د محرکاتو د پېچلتياوو پر پوهېدنه ټينګار کوي، خو په اروايي نقد کې دې چارې ته زيات ارزښت ورکول کېږي.

د (فرويد ) د لاشعور نظريه او د هغې پر نتايجو بنا د اروايي تحليل نظريه اوس هم متنازع فيه حيثيت لري، خو دلته زموږ د دې نظريې له ښه والي او يا بدوالي سره کوم کار نه شته دلته يوازې دومره ويل کافي دي چې اروايي تحليل، اروا پوهنې ته يوه نوې پراختيا ورکړه او ژوروالى يې ور وباښه، لکه څنګه چې د ژوند او هنر د نورو څانګو په څېر يې ادبي نقد هم له اغېزمنتيا څخه په امان کې نه پاتې کېږي. (فرويد ) د نفسي تحليل نظريه د عصبي ناروغانو د شفا لپاره وړاندې کړې وه. اما تر ده وروسته د ده شاګردانو او مقلدينو زياتې څېړنې وکړې او د اروايي مسايلو د اهميت په باب يې مواد راټول کړل. د دې نظريې ځلېدلو پراخ حيثيت غوره کړ. که څه هم (فرويد ) نه ادبي نقاد و او نه ده د خپلو نظرياتو په رڼا کې د ادبي نقد طريقې تدوين کړې دي. خو هغه (داستايوفسکي ) او نورو ، چې پر دې موضوع يې مقالې وليکلې او د (موناليزا ) پر خالق (ليو ناردو ) يې هم مفصله مقاله وليکله. اما د دغو ليکنو لومړنى

مقصد د ادبي مباحثو تفهيم نه و ، بلکې د جنس او د هغه د کارونو د تنوع د څرګندتيا لپاره د شواهدو ټولول وو.

تر (فرويد ) وروسته د ده شاګردانو او له اروا پوهنې سره د ژورې لېوالتيا لرونکو کره کتونکو په پرله پسې او پېيلې ډول د ادبي شننو او د ليکوالو د حالاتو د څېړنې لپاره د اروايي تحليل څراغ روڼ کړ. په دې لړ کې د (فرويد ) د شاګرد او د هغه د مشهور سوانح ليکونکی (دکتر ارنست جونز ) ځانګړې يادونه په کار ده. دی په خپل کتاب (Hamlet and Oedipus ) کې د (شکسپير ) (هملت) له اروايي پلوه تحليلوي، پر (۱۸۵۹ع) کال دکتر، جي، سي، بکنل (Dr.J.C. Bucknil ) په خپل کتاب ( Psy chloty of Shakespeare ) کې تر (دکتر ارنست جونز ) څخه څه وړاندې دا خبره کړې وه، چې د (هملت) انتقادي مطالعه د اروا پوهنې له لارې پکار ده، ده خپله د (هملت) اروايي مطالعه وړاندې کړه.

په دې لړۍ کې د (فرويد ) يو بل شاګرد داکتر هنس ساش (Dr. Hans sachs ) نوم هم اخيستلای شو. ده د (شکسپير ) يوه بله ډرامه (Measure for measure ) د اروا پوهنې د اصولو له مخې مطاله کړه. د ده کتاب (Crative unconscious ) ډېر مشهور دی. ده د ځينو ځانګړو ادبي اثارو له مطالعې سره سره د ادبياتو اروايي تحليل هم وکړ.

د ادبي اثارو له اروايي تشريح سره سره د اروايي نقد بله مهمه فريضه د ليکوال يا شاعر د اروايي جوړښت ټاکنه او بيا د هغه په رڼا کې د هغه د تخليقي اثارو شننه او کتنه ده. ځينې وختونه د غسې شنني او کتنې يوازې په تخليقي اثارو پورې محدودې پاتېږي، ځينې وختونو کې د دې خبرې لټون کېدی شي دا په ډاګه کړي چې دغه تخليقات تر کومه حده پورې د ليکوال د اروايي جوړښت او له دغه جوړښت څخه د رازېږېدلو پېچلتياوو زېږنده دي.

د اروايي جوړښت د پيدا کولو لپاره له لاندې طريقو څخه کار اخيستلای شو:

۱- د ادبي ايجاداتو له تجزيې څخه د داسې طريقو را ايستنه چې د هغو په مرسته د ايجادګر پر نفسي وارداتو هم رڼا واچوي. د دې مقصد لپاره خو په کار دي، چې دده ټول ايجادي اثار وکتل شي او وشنل شي. که نه وي دا سې تخليقات خو دې ضرور مخې ته پراته وي، چې مهم او د استازو تحقيقاتي اثارو د ارزښت له لرلو سره سره د اروايي اهميت لرونکی هم وي.

۲- د ايجادګر (ليکوال) د ژوند له خارجي واقعاتو سره سره شخصي خطوطو، ورځپاڼو، د ځان ليکلو سوانحو، اعترافاتو ،تذکرو او نورو دغسې اثارو په مرسته د ليکوال د شخصيت او دده تخليقي ذهنيت د جوړوونکو عواملو له ټاکنې څخه دې دده د ژوند د مهمو اروايي حوادثو پته ولګوي او بيا دې د هغو په رڼا کې دده د

ایجادیاتو عمومي شننه وکړي او یا دې ځانګړي ادبي اثار تر څېړنې لاندې ونیسي. دا طریقه ډېره ګټوره او د مخنۍ طریقې په پرتله څو ځله زیاته سمه او خوندي ده او زیاتې اروایي څېړنې ددې طریقې په وسیله ترسره کېدی شي. کله چې (هربرت رید ) پر (بربایرن) باندې د خپلې مقالې پر لیکنه پیل وکړ، نو ده نه یوازې خپل نقادانه مسلک څرګند کړ، بلکې د اروایي څېړنې اهمیت یې هم ددې طریقې په کالب کې په ډاګه کړ، د ده په وینا: ((د بایرن د ژوند او هنر د نوي طرز د شننې لپاره یوازې همدا یوه طریقه کېدی شي، د استناد وړ وي او هغه دا چې د دده ټولو منظومو، لیکونو او د ژوند له نورو شخصي کیفیتونو څخه موږ په بشپړ ډول ځان خبر کړو. ))

۳- د لوړو یادو شویو دوو طریقو له یو ځای کولو څخه کولای شو، دریمه طریقه هم وضع کړو، یانې دا چې د ایجادګر د ژوند حالات او دده د پنځونې څنګ په څنګ سره کېښودل شي، بیا د هغو کتنه او شننه وشي او بیا دې ځانګړی ایجادي اثار د ژوند د ځانګړو حوادثو د اروایي پېښو او حالاتو تابع شي، نو دا طریقه به هغه وخت زیاته ګټوره او سودمنه واقع او په زړه پورې پایله به ترې ترلاسه شي.

د (داستایوفسکی) ژوند په ځانګړي ډول یو ښه داستان دی او دده ځینې ناولونه لکه: (The Gambler, the House of the dead) او (The idiot) او نور دده د ژوند د بېلابېلو دورو ښکارندوی دي. ده

 څو کاله په (سايبريا ) کې تېر کړي دي. دده لومړی ناول د ده د ژوند ددې دورې په باره کې دی. د غسې (منشي پريم چند ) هم دروا خله. دا طريقه په زړه پورې خو ده، ليکن يوازې ددې طريقې جواز ليوالتيا نه پيداکوي، بلکې دا د کره کتونکي وظيفه ده چې خپلو لوستونکو ته داسې شواهد پيدا کړي، چې د هغو په رڼا کې د تخليق ځينې نوي ځنګونه راڅرګند کړي او پر هرې ځانګړتيا يې له يوې نوې زاويې رڼا واچوي او يا د تخليقي محرک له ټاکنې څخه، د تخليق پس منظر رونښانه کړي او بيا يې ارزښت او بها وټاکي. ددغسې مقاصدو تر بشپړونې وروسته، بيا نو ددې طريقې کارول جواز لري.

د ارواپوهانو لپاره د ټولو اساطيري فرضيو يا پخوانيو مفکورو تائيد ضرور نه دي، خو ارواپوهانو پر شاعرانه لېونتوب ډېر غور کړی او هغه يې تائيد کړی هم دی. اروايي حالات او پېښې پخوا هم پېښېدلې او اوس هم پېښېږي، د افهام او تفهيم لپاره تو پير يوازې له ژبې او اصطلاحاتو څخه پيدا کېږي. په دې ترڅ کې د (رژنګ ) خبرې د اورېدو دي: (( د هنرمند رباني لېونتوب تر خطرناکه حده پورې د ناروغتيا له حالاتو سره اړه لري، تر يوې زماني په اروايي نقد کې ددې نظريې سکه چلېدله، خو تر ژورو څېړنو وروسته ددې نظريې پر خلاف د احتجاج اواز لوړ شو، دا طلسم باطل شو او په مخالفتونو کې يې (لايلي ترننګ ) د ځانګړي اهميت لرونکی دی، هغه په خپل مضمون (Art and neurosis ) کې چې ډېر مشهور دی

وویل : (( موږ ته ددې حقیقت یاد ساتل په کار دي، چې ادیب د خپل کار د ځانګړتیاوو له مخې له یو ډول نه یو ډول فانتیزي سره په ارتباط درلودلو مجبور دی. دده کار دادی چې که دی د خپل لاشعور اظهارول وغواړي، د وسایلو رنګارنګي دده د لاشعور د جامو د بدلولو زیار باسي، خو د جامو دغه بدلون ځان پتهول نه دي، بلکې حقیقت دادی چې که چېرې یو ادیب د خپلو تخلیقاتو له خپل ذات او باطن څخه د ځان پاللو کولو کوښښ وکړي یو څه زیات دده شعور په څرګند ډول مخې ته راځي. ))

د ادبي تیورۍ مولفینو ، (رنه ویلیک ) او نورو هم په دې باب ځینې ښې خبرې کړې دي. د دوی د فکر بنیادي پوښتنه دا ده ، چې ایا عصبي خلل د ادیب لپاره د موضوع د تخلیق یا محرک سبب ګرځي؟ د دوی په عقیده عصبي خلل د تخلیق موجب ګڼل یوه غلطه نظریه ده او له سرې څخه لاره ورکوي، خو په انتقالي ډول کېدی شي یو ادیب پر عصبي خلل مبتلا وي، مګر د عصبي خلل هر مبتلا ناروغ ادبي ایجادګر نه شي کېدی.

## ۸-متني کره کتنه:

متني کره کتنه لوستونکی د متن له رموزو ، ماناګانو او قرینو سره اشنا کوي او د یوه اثر د صحت او سقم په باره کې ژوره څېړنه کوي. د متني کره کتنې هدف دادی چې د مختلفو نسخو له مخې د یوه اثر

اصلي متن احيا کړي. د نولسمې پېړۍ تر نيمايي پورې د متني کره کتنې عمده هدف دا و چې تر ټولو ښه نسخه لاس ته راوړي. خو اکثرو کره کتونکو ددې هدف د تحقق لپاره کوم منلی مېتود نه درلود. (کارلپخين) پر (۱۸۳۲م) کال يو نوی تخنيک رامنځته کړ چې په هغه کې دوی مرحلې په نظر کې نيول شوې دي: بيا کتنه او سمونه. په بيا کتنه (recension) کې ټولې هغه نسخې پلټل کېږي چې احتمالاً له لرغونو نسخو سره اړه لري او د يوې مشکلې پروسې په ترڅ کې هر ډول جزييات په نظر کې نيول کېږي. په دويمه مرحله کې د ټولو نسخو له پرتلنې څخه اصلي نسخې ته ډېره ورته نسخه ترتيبېږي چې دې مرحلې ته سمونې (emendation) ويل کېږي.

## ۹-مارکسستي کره کتنه:

مارکسستي نقد هم د تاريخي او ټولنيز نقد په څېر له ټولنې او معاشرې سره تړلو عواملو ته اهميت ورکوي او دا ښيي چې ټولنه او معاشره اديبان او ادبيات څنګه متاثره کوي. په لومړي نظر د ټولنيز نقد او مارکسستي نقد ترمنځ کوم توپير نه محسوسېږي. د کره کتنې دواړه ښوونځي له انساني معاشرې څخه بحث کوي، خو دا يو شانوالی سطحي دی او دا ځکه چې ټولنيز او تاريخي نقد له معاشرې ټولنې سره لېوالتيا لري، خو د ټولنې او معاشرې له جوړوونکو او اساسي عناصرو او محرکاتو سره کوم تعلق نه ساتي. د کره کتنې دواړه ښوونځي يا ډولونه انساني معاشره، لکه څنګه

چې ده هسې مني. خو کله چې مارکسستي نقاد دغه مسایل تر کتنې لاندې نیسي، د کومو پر بنسټ چې معاشره جوړه شوې ده، نو د هغو محرکات شني او تجزیه کوي یې. د کره کتنې له نورو ښوونځیو څخه د مارکسستي نقد د بېلتون یوه اساسي وجه داده، چې ددغه نقد پیل خاص د ادبي مقاصدو لپاره نه و او دا نقد تر یوې اندازې پورې له اروایي نقد سره نږدېوالی لري، دا دواړه ښوونځي د ادبي نظریاتو او نقادانه غورځنګونو زېږندوی نه دي او دا دواړه د ځانګړو علومو ضمني زېږنده دي.

د مادي ایجادیاتو په رڼا کې چې څوک د ادب مطالعه کوي، نو هغوی ایجاد د تفریح څیز نه بولي، بلکې وایي چې تخلیق، د فرد او ټولنې د همېشني ارتباط او طبقاتي مبارزې ترجماني کوي. په اشتراکیت کې شعور، فکر او تخیل هم د مادي حقیقتونو او اقتصادي عواملو تابع وي، پر همدې اساس په دې سیستم کې مادې او د هغې مظاهرو ته اساسي اهمیت ورکول کېږي؛ حال دا چې خیال او شعور ته ثانوي. په مارکسیستي نقد کې د ادبیاتو د مطالعې لپاره له اجتماعي حالاتو، طبقاتي وېش او د تاریخ د مادي عواملو جایزه اخیستل تر حده زیات ضروري برېښي او ددغو ټولو عواملو له سمې تجزیې پرته پر ادبیاتو سم تنقید نه شي کېدی. د نقد نور ښوونځي، لکه: ښکلاییز نقد، اروایي نقد او نور، لوړو یادو شویو عواملو ته ډېر زیات ارزښت نه ورکوي، اما مارکسستي

نقد او د کره کتنې دا ډول نور ښوونځي بيا دا ډول فکر د ادبياتو لپاره نه يوازې ناموزون ، بلکې بې ګټې بولي چې له سره ي څخه لار ورکوي. ځکه نو مارکسستي نقادان پر اروايي نقد او د نقد پر نورو ښوونځيو انتقادونه لري او د نقد دغسې نظريې د پانګوالي نظام مولود ګڼي. په مارکسستي نقد کې ادبيات د ژوند او ټولنې په مادي ارتقاء کې شريک بولي او وايي چې ددې ارتقا د بېلابېلو پوړيو انځور هم وړاندې کوي. د مارکسستي نقاد په ګروهه که چېرې ادب د ژوند پراخه او پېچلې مبارزه کې د عوامو ترجماني ونه کړي، نو له دغه ډول ادبياتو څخه کومه ګټه نه ده متصوره. لنډه دا چې په دې ډول نقد کې د ادب او ژوند مرکز مزدور انسان وي، لکه چې (مارکسسم ګورکي) ويلي دي: (( زموږ د ليکنو هيرو او قهرمان بايد مزدور وي، يا په بله وينا هغه زيار کښ انسان چې په زيار او زحمت ژوند کوي. )) د مارکسستي نقد له مخې (ادب د ادب لپاره) نظريه غلطه ده. دوی وايي دا داسې نظريه ده چې له خلکو لاره ورکوي او وايي چې دا ډول ادبي نظريات د عوامو په استثمار کې موثريت لري. ادب د ژوند لپاره پر همدې هدفمن ادب چې دغه ډول نقد څومره زور اچوي، ښايي. تر دې دمخه د نقد يوه ښوونځي هم پرې دغه رنګه ټينګار نه وي کړي. د مارکسستي نقاد لپاره اساسي سوال دادی چې اديب په طبقاتي کشمکش کې د کومې طبقې حمايت کوي؟ څنګه هغه د پربوتو ارزښتونو او مراتبو سندرې وايي

او د مړه نظام بوللې بولي؟ او که په ژوند کې د مادیت صفت کوي؟ پاڅونوالو عوامو او زیار کښانو ته اوږه ورکوي او پرمخ درومي؟ که دی د زیار کښانو او خلکو دوست وي، نو دا سمه خبره ده او د ادبي تخلیقاتو مقصد همدا دی او دا دی د مارکسستي ادبي نقد مقام او منزل.

## ۱۰- قانون جوړوونکې کره کتنه:

ددغه ډول نقد کار د عملي نظریو په بیان کې ددغسې اصولو وضع ده، چې هغو اصولو او قوانینو ته په پاملرنه شاعر ښه شعر ویلای شي او په دې ډول نقد کې د نقاد کار د خرابو شعرونو د خامیو ښوول او د ښو شعرونو د ویلو لپاره تر مشورې ورکولو پورې محدود پرې. د سرفلپ سډني (Sir Philip Sidney) له استثنایي مثاله که تېر شو، په ټوله شپاړسمه پېړۍ کې او د اوه لسمې پېړۍ تر نیمایي پورې د انګرېزي نقد همدا شکل و. له دغه ډول نقد سره د لوستونکو لږه، خو د لیکوالو او شاعرانو ډېره لېوالتیا وه. په اوه لسمه پېړۍ کې جان ډرائیډن (John.Drydin) ددغه نقد او راتلونکي نوي نقد ترمنځ د یوې کړۍ حیثیت غوره کړ. ددغه نقد قوانین قوي، اصول یې ګران او تر کره کتنې لاندې اثر سخت ګیرۍ یې، نه یوازې د زغم وړ نه و، بلکې کله کله دغه روشونه د تخلیقاتو لپاره ضرر رسوونکي هم وو، پر همدې اساس کله چې ددې کره

کتنې زور مات شو، نو بیا د همېش لپاره د کره کتنې دا طریقه متروکه شوه.

## ۱۱- ټولنیزه کره کتنه:

د تاریخي نقد نظریه یې د نژاد، چاپېریال او د تخلیق د شېبو پر درېو بنیادونو متکي ښوولې ده، دغه رنګه د ټولنیز یا د ځینو په اصطلاح اجتماعي نقد له دغو درېو عناصرو څخه یوازې د چاپېریال له عنصر سره سروکار لري او ماحول په ژور ډول تر کتنې او تجزیې لاندې نیسي. په دې نقد کې نقاد له چاپېریال سره تړلي بېلابېل عوامل له یوې محدودې هېنداري څخه مطالعه کوي. د ادبي اثارو د تخلیق او د ایجادګر په تشکل کې د ټولو اجتماعي محرکاتو تلاش ته اساسي اهمیت ورکوي، او دا کار ادبي نقد ته د اجتماعي عواملو د یوې څانګې حیثیت ورکوي.

تر ټولو د مخه د دې خبرې څرګندونه لازمه ایسي، چې په ټولنیز نقد کې ټولنه، چاپېریال او ټولنیزو عواملو غوندې اصطلاحات په خپله محدوده مانا نه استعمالېږي، بلکې ټولنه یوه لویه دایره ده، چې په هغې کې کلتوري عناصر او تمدني عوامل هم شامل دي. څنګه چې د ټولنې په تشکل کې کلتوري او تمدني محرکات اساسي حیثیت پیداکوي، نو د هغو ځانګړې مطالعه هم په خپل ذات کې موږ ته په علم کې نوي څنګونه روښانه کوي.

که څه هم په یوه ټولنه کې ځینې انګېرنې، رواجونه او رسمونه یا هم کرکې، کړنې او نور په ځرګنده ازاد، او خپلسري ښکاري، خو په حقیقت کې دا ټول یو له بله سره اړه لري او په شالید کې یې د پېړیو پېړیو لرې زمانو انساني شعور ځای لري. یوه عقیده په یوه ټولنه کې په اسانۍ سره ریښه ځغلوي او وده مومي او همدا عقیده بیا په یوه بله ټولنه کې د یو پردي نیالګي په ډول مړاوې کېږي. دا خبره ولې داسې ده؟ دې او دې ډول نورو پوښتنو ته د ځوابونو د برابرولو لپاره باید علم الانسان (بشر پوهنې) ته مخه شي. د انسان او د انسان په لاس د جوړ شوي تمدني او هم کلتوري تغیراتو مقایسه یې کتنه به کېږي او په دې ډول به د پخوانیو نا متمدنو ټولنو او اوسنیو معاشرو ترمنځ د فکري مسیرونو ورتوالی او توپیرونه ځرګند بړي، په دې مانا چې پخوانی فکري ځرنګوالی او اوسنی په کومو برخو کې سره یو شی او په کومو برخو کې سره توپیرونه لري. دغه ډول مسایل هم مورږ د بشر پوهنې په رڼا کې حلولای شو.

د ټولنیز کره کتونکي دوه مهمې دندې دي، یو دا ده چې تر ټولو دمخه باید له یوې خاصې ټولنې او معاشرې سره تړلي رجحانات تجزیه کړي او د یوې ځانګړې زمانې ذهني شالید باید وټاکي، په دې لړۍ کې باید د ټولنې له هرې هغې څانګې څخه مرسته وغواړي، چې په یو نه یو ډول دده په مطالعاتو کې د نویو لیدلورو د راپیدا کېدو سبب ګرځي. د دغه ذهني شالید او د هغه د جوړوونکو

تمدني عناصرو تجزیه ځکه اهمیت لري، چې کره کتونکی د همدغو په مرسته د ادبي پنځوونکي، ادبي تخلیقات مطالعه کوي.

د ادبي تاریخ د مطالعې په بهیر کې که موږ له ځینو استثنایي مثالونو تېر شو، نو راڅرګندېږي، چې په بېلابېلو زمانو کې د ځینو خاصو فکرونو او نظرونو څراغ روښان شوی دی او د همدغسې فکرونو تر اغېزې لاندې یو خاص ډول ادبي اثار تخلیق شوي او همدا د ټولنیز نقد تر ټولو لویه ګټه ده، موږ د هغو په مرسته دا اندازه لګولای شو، چې په یوه خاصه زمانه کې څنګه او څه ډول د یوې زمانې ادبي ایجاد ګر د بلې زمانې له ادبي ایجادګر څخه څنګه او څه ډول بېلېدی او توپیرېدی شي؟

ددې مسلې یا سوال ځواب (هډسن) داسې ویلی دی:

په انګرېزي ادبیاتو کې د ناولونو د مطالعې لپاره له ټولنیز نقد څخه په خاص ډول ګټه پورته کېږي او ددې وجه داده چې په ناول یا لنډه کیسه کې لیکوال ژوند ته د هغه په ټولنیز مفهوم ګوري. کېدی شي د نظر څرنګوالی بالکل شخصي وي، ژوند ته هم له یو خاص لیدلوري څخه وګوري او لوستونکو ته یې هم له یوې مخصوص زاویې څخه وښیي، خو بیا هم دی کولای شي، چې د ټولنې بېلابېل تصویرونه وړاندې کړي، د همدې لپاره ټولنیز نقد په دې ساحه کې ډېر ګټور تمامېدی شي.

(ایډمنډولسن)، (چارلس دکنز) او (کیپلنګ) د ټولنیز نقد پر اساس خپله مطالعه کړې ده. همدا ډول د (همفری هاوس) د کتاب ((ډکنز ورلډ)) نوم هم په دې لړۍ کې یادولای شو. که له ټولنیز نقد څخه د هر ډول ناول او لنډې کیسې په کره کتنه کې ګټه وانه خلو، نو د هغو ناولونو او افسانو په نقد کې خو باید ضرور ترې ګټه پورته شي، چې پر ټولنیزو مسایلو بحث کوي او که نقاد پر دغسې اثارو د بحث پر وخت له ټولنیزو عواملو سترګې پټې کړي، نو دا په خپله یو لارورکی عمل دی. دلته د یوې بلې خبرې یادونه هم ضرور او د دغسې اثارو د نقاد لپاره لازمي ده، هغه دا ده چې نقاد باید د هماغې ټولنې پر خصوصیاتو او ټولنیز ژوندانه پوه وي. که چېرې نقاد ته په خپله د ټولنې په باب څه نه وي معلوم، نو دی به څنګه حقیقت راوسپړي او پر حقیقت به پوه شي؟

له لوړو مثالونو څخه ښایي ځینو کسانو ته دا فکر پیدا شي، چې ټولنیز نقد به یوازې د کسییز ادب لپاره لارښودی ارزښت ولري، خو خبره داسې نه ده، شعري تخلیقات هم موږ ددغه ډول نقد په مرسته کتلای او شنلای شو.

په دې کره کتنه کې د ټولنې او ادبیاتو ارتباط څېړل کېږي، پر ادبیاتو د ټولنې او پر ټولنې د ادبیاتو اغېزې شنل کېږي. ټولنیزه کره کتنه تل ادبیات د ټولنې او ټولنیز چاپېریال محصول ګڼي. ځکه نو وروستیو کره کتونکو هڅه کړې چې په ادبیاتو کې هر ډول تحول

او بدلون يوازې په ټولنه کې د ټولنيزو بدلونونو له ليدلوري بيان کړي. د دوی په نظر که شعر د شاعر د زړه د عواطفو ترجمان او ژبه ده، خو کوم څه چې دا عواطف يې راټوکولي هغه د ژوند له چاپېريال، زمان او مکان پرته بل څه نه دي. ځکه نو د شخص د عواطفو او احوال د دقيق درک لپاره د ټولنيزو حوادثو د علومو له پيداکولو پرته بله لار نه شته.

نامتو فرانسوي کره کتونکی (هيپوليت تن) په دې نظر دی، چې ادبيات د ((زمان)) ((ټولنيز چاپېريال)) او ((نژاد)) محصول دي. دده په نظر ټولنيز حوادث او احوال د دغو درېو پورتنيو عواملو نتيجه ده.

## ۱۲- رومانتيکه کره کتنه:

رومانتيک نقد د روماني ادبي غورځنګ محصول دی، پر همدې اساس که چېرې مونږ رومانيت يا روماني ادبي غورځنګ په پام کې ونه نيسو، نو بيا مونږ د رومانتيک نقد کتنه او مطالعه نه شو کولای. د رومانتسيزم له پرمختيا سره سم رومانتيکې کره کتنې هم پرمختيا ومونده او د هغه له زوال سره دې ډول نقد هم زوال ومونده؛ اوس نه روماني ادبي غورځنګ ژوندی دی او نه رومانتيک نقد تر سترګو کېږي، خو رومان، روماني فکر، رومانيت، روماني احساس، روماني طرز، روماني فکر او نور داسې الفاظ او

اصطلاحات نن هم استعمالېږي، خو په زړه پورې خبره یې داده چې له استعمال سره سره یې په مفهوم کې کوم قاطعیت نه شو پیدا کولای، په ډېرو حالتونو کې دا مفهوم د غوټې د خلاصونې پرځای تر زیاتې حده انجړبنجړ او پېچلی بهیر پیدا کوي. په رومانیت او له هغه سره په اړوندو مباحثو کې رومان د کیلي حیثیت لري، د رومانیت د څرګندونې لپاره په عام ډول له کلاسیکیت سره د هغه موازنه کېدی شي، خو په دې ترڅ کې دا خیال ساتل په کار دي، چې د رومانیت برعکس کلاسیکیت د کوم ادبي غورځنګ نوم نه دی او دا یوازې د ښکلو هنرونو او ادبي تخلیقاتو د ازمېښت لپاره د یوه ځانګړي فکري ډول نوم دی. په غالب ګومان تر ټولو د مخه (ګویته) پر رومانیت باندې د کلاسیکیت پر مفهوم بحث پیل کړی و، د هغه په قول ((رومانیت ناروغي ده او کلاسیکیت روغتیا)). د مقایسوي بحث دغه طریقه د منلو وړ ده او راتلونکی نقادان بالعموم د کلاسیکیت او رومانیت موازنه کوي او پر دې هم باید پوه شو چې څه شی چې کلاسیکیت دی، هغه رومانیت نه دی، په بله وینا که موږ کلاسیکیت مثبت فرض کړو، نو د نفې په حالت کې یې د رومانیت خصوصیات راڅرګندېږي.

کله چې (شال دال) د کلاسیزم برعکس رومانیت د زمان غوښتنه او د وخت اواز و مانه، نو یې کلاسیزم ته یو عمومي حیثیت ورکړ. د همدې نظریې پر اساس ټولې اساسي ادبي پنځونې لومړی روماني

دی او بیا تر عامې مننې ورو سته کلاسیکه ښه غوره کوي. (ویکتورهوګو) د (کراسول) په سریزه کې رومانیت په ادبیاتو کې له ازادۍ خوښوونکو رجحاناتو سره مرادف باله.

اوس دلته پوښتنه پیدا کېږي چې د کلاسیزم د پردې تر شا رومانیت په څه ډول موجود دی؟ د دې خبرې ځواب د رومانیت له دې تعریف څخه، چې (هر برت رید) وړاندې کړی دی، ترلاسه کېږي. دده په فکر ((د رومانیت اصول په دې تصور کې نغښتي دي، چې هغه ته د تخیل (رغانده قوت) وویل شي او دا هغه ځواک دی، چې دوه عنصر سره یوځای کوي او یوه نوې جامه ور اغوندي. له ډول ډول عناصرو څخه رازېږېدلی دغه وحدت یا سکښت ته هنري اثر ویلی شو.))

په بله وینا همدا رغانده قوت دی، چې په هره دوره کې جاري وي او د رومانیت د تشکل سامان راټولوي او زمینه ورته برابروي.

دا هغه اساسي مباحث دي چې د روماني غورځنګ او روماني نقد د تفهیم لپاره د یو تناظر حیثیت اختیاروي.

د رومانیت د غورځنګ تر مطالعې وړاندې ذهن ته د دې خبرې سپارل په کار دي چې تر ډېرو وختونو پورې انګرېزي، فرانسوي او جرمني ادبیات، یوناني او لاتیني تخلیقات د نقد د اصولو په رڼا

کې ګام په ګام پرمخ درومي، چې نتیجه یې د انفرادي فکر په مرګ کې ځان ښکاره کوي.

په انګلستان کې (ډرایډن) او په جرمني کې (ویلک مین) تر ټولو دمخه د یوناني اصولو او ضوابطو د زنځیرونو دما تولو زیار ویوسته او پر دې خبره یې ټینګار کاوه، چې موږ د خپل عصر ازاد ترجمانان یو. په انګلستان کې تر (ورډزورتهـ) پخوا (ولیم بلیک) لومړی شاعر و، چې انګرېزي شاعري یې له یوناني اثراتو څخه وژغورله او پر دې خبره یې ټینګار کاوه چې: ((موږ ته په خپلو ادبیاتو کې د رومن یا یوناني مثالونو څه ضرورت نه شته، موږ ته یوازې له خپل تخیلي قوت څخه، چې زموږ له روماني قوت سره تړلی دی، د پلوۍ ضرورت دی.))

(بلیک) شاعري یو الهامي شیز باله او تر دې حده ازادي خوښوونکی و، چې له پخوانیو عروضو څخه یې د ځان ژغورلو هڅه کوله، (بلیک) د تخیل قوت ته قایل و او شاعرۍ یې یو الهامي شیز ګڼله او د دې مفهوم د بیان لپاره یې د نویو قالبونو پر لټون ټینګار کاوه، نو پر همدې اساس نقادان د رومانیت اثرات د همده له لیکنو څخه پیلوي.

په جرمني کې (لسینګ) (LeSSing) ډېر مهم نقاد و، د هنري کارونو او ادبیاتو د مطالعې په ترخ کې یې په هنري اثر کې پر ښایست او د هغه د اغېزمنې پر ځانګړنو زیات ټینګار کاوه. پر دې

سربېره (ګویته) او ځینو نورو فیلسوفانو ویل چې ((د علم د حصول لپاره رومانیت یوه ذریعه ده، لکه څنګه چې جذبات، احساسات او مسرت تر مناسب او موزون حالت لاندې زموږ لپاره د خیر ښېګڼې سبب ګرځي او له همدغه حالت څخه موږ د پوهې او محبت د حصول په لاره کې ممکنه مرسته ترلاسه کولای شو.))

لنډه دا چې مسرت، حسن او جذبات د رومانیت اساس جوړوي، (ورډزوتهـ) په خپله سریزه کې ځینې داسې سوالونه هم رامنځته کړي چې تر هغه وخته پورې جدي توجه نه وه ورته شوې، لکه: شاعر څوک دی؟ شاعر له کومو تخلیقي عملیو څخه تېرېږي او په کوم ډول ذهني حالت کې هغه تخلیق ته لېوالتیا پیداکوي؟ دا داسې سوالونه دي، چې په اروا پوهنیز نقد کې اساسي حیثیت پیداکوي. (ورډزورتهـ) په شاعرۍ کې ژبې ته په خاص اهمیت قایل دی او دی زیار باسي چې له ادبي تخلیق سره تړلي جذبات، احساسات او د هغو د اظهار لپاره د کوټلې ژبې خپل منځي روابط څرګند کړي. څنګه چې هغه د فطرت او ادبي ایجادګر هماهنګي خوښوله، نو د همدې لپاره هغه د فطرت په څېر د سمې، ساده او له تصنع څخه د پاکې ژبې تلقین کاوه.

د (کولرج) په فکر د یو نظم لومړنی او اساسي مقصد یوازې د صداقت ترجماني نه ده، نظم باید خوښي هم وبښي، دی وایي، که څه هم شاعري باید په مجموعي ډول د خوشالۍ ښنلو ترڅنګ

صداقت هم ابلاغ کړي، خو د نظم لپاره د خوښۍ ښښل لومړنی شرط دی. یو نظم چې څومره د خوښۍ په انتقال کې بریالی وي، هومره خپل نظمي حیثیت هم لرلای شي او ښه نظم هغه دی، چې لوستونکي ته د خوښۍ اسباب برابر کړي. ددې کار لپاره شاعر ته ښايي، چې د ژبې خواته هم زیاته پاملرنه وکړي، ځکه چې د موزونو او مناسبو الفاظو د استعمال له لارې د خوښۍ د انتقال په لاره کې بریالی کېدی شي، په دې برخه کې د ده دا لاندې وینا د غور وړ ده:

((د ډېر ښو الفاظو استعمال نثر دی، خو کله چې ډېر ښه الفاظ په ((ډېر ښه هنري ډول استعمال شي، نو هغه بیا شعر شي.)) د همدې لپاره ده د شاعرۍ لپاره معیار وضع کړ او ویل یې چې ښه شاعري هغه ده چې د هغې له هر ځل لوستو څخه خوښي ترلاسه شي. که چېرې په کوم شعر کې د الفاظو په تغییر او تبدیل سره کوم اثر نه پرېوځي، نو هغه شعر بېکاره او د شعریت درجه یې پرېوتې ده.)) تر (ورډزوتهـ) او (کولرج) وروسته دریېم کره کتونکی (شیلي) ګڼلای شو، پر ده هم د(ورډزورتهـ) او (کولرج) مفکورو ژوره اغېزه درلوده.(شیلي) هم د دوی په شان الهامي قوت ته قایل و او شاعري یې د جذباتو او احساساتو د اظهار وسیله بلله. د قیدونو او عروضو پر وړاندې ده هم باغیانه فطرت درلود، دده په فکر تخلیقي اظهار د یوې منظمې ژبې له لارې کېدی شي. روماني نقد او روماني شاعري په اصل کې د هغه وخت په لرغونپالي انګلستان کې یو داسې

بغاوت و، چې د تخلیق په کچه یې ځان څرګند کړ. په روماني نقد کې چې پر حسن، مسرت، جذباتو او احساساتو کوم ټینګار شوی و، د هغو غبرګون په وروستیو ادبي غورځنګونو کې لا ډېر تېز و، لکه څنګه چې نورو ادبي غورځنګونو او د کره کتنې نورو ښوونځیو ټینګ نقدونه پرې وکړل.

## ۱۳- تحلیلي کره کتنه:

(ډیوډ ډیشنز) د کره کتنې دغه ډول د یو ځانګړي ښوونځي په توګه نه مني. دده په ګروهه دا د ادبیاتو د پوهېدنې یوه طریقه ده، چې مثالونه یې موږ په پخوانیو کره کتنو کې لټولای شو. ددې ډول نقد یادونه، (ارسطو)، (ډرایدن)، (ډاکتر جانس) او (کولرج) او نورو کړې ده. که چېرې د (ډیوډ ډیشنز) نظریه ومنو او تحلیلي نقد ته د یوه ځانګړي ښوونځي مفهوم ورنه کړو او په پراخ مفهوم یې استعمال کړو، نو بیا د نقد هره طریقه تحلیلي ګڼلای شو.

که له عمومیاتو تېر شو، نو دا ډول نقد د کره کتنې د یو ښوونځي په توګه تر ټولو دمخه (ولیسم ایمپسن) Wiliam Epson مشهور کړ او دی یې تر ټولو مهم لاربښود ګڼلای شو. (ولیم) د (دریچاردز) شاګرد و. (ریچاردز) چې له الفاظو سره کومه لېوالتیا لرله، هغه له چا څخه پټه پناه خبره نه ده، څنګه چې ده هم د خپل نقد بنسټ د هغه پر نظریاتو بنا کړی دی، نو دده نظر هم د الفاظو له بېلابېلو مانیزو

ځنګونو څخه پیدا شوی، د بېلابېلو پیغامونو ځانګړې کتنه یې د خپل کار اصلي مقصد ګاڼه.

د (ایمپسن) په فکر د شاعر، شعر د جلا جذباتو او احساساتو له مخې ممتاز حیثیت نه غوره کوي، بلکې دا د ژبې استعمال دی، چې هغه له عامو خلکو او نثر لیکونکو څخه بېلوي، یا په بله ژبه شاعري د ژبې د یوې ځانګړې بڼې د منلو نوم دی.

د (ریچاردز) په فکر نقاد د الهام په مرسته ژبې ته یو نوی صورت وربښي، دغه نظریات بیا (ایمپسن) د خپلو انتقادي نظرونو د بنسټ په توګه ومنل، په دې برخه کې دده څه استدلالونه دادي، چې د شاعرۍ اساس ژبه ده او د ژبې اساسي پیغام رسول دي. پر همدې اساس شاعري هم یو پیغام دی، نو ځرنګه چې د شاعرۍ مانۍ پر پیغام ولاړه ده، نو د پیغام له تحلیلي مطالعې څخه درې مسالې مخې ته راځي:

۱- د تخلیق پر مهال یا د پیغام د عمل تر جوړښت منلو دمخه د شاعر ذهني کیفیتونه څه وو؟

۲- ددې پیغام په نتیجه کې د لوستونکي په ذهن کې کوم کوم بدلون راځي؟

۳- که چېرې مورږ د پیغام جایزه واخلو، نو دا پیغام د شاعر او لوستونکي ذهنونه له څو ډوله کیفیتونه سره مخامخوي؟

(ریچاردز) د پیغام له امله د شاعر او لوستونکي په اذهانو کې د روحیاتي مطابقتونو مطالعې او د هغه روحي اهمیت خواته هم توجه کړې وه.

د (ایمپسن) د افکارو له پورتنۍ لنډې یادونې څخه دا څرګندېږي چې تحلیلي کره کتونکی د ادبي اثر د تفهیم لپاره الفاظو ته لکه څنګه یې چې زړه غواړي، برابر، برابر داسې طلسمي اهمیت ورکوي، چې له هغو سره د ټړلو ټولو مفاهیمو د روښانولو زیار باسي. دی په دې نظر دی چې د لوستونکي او لیکوال ترمنځ الفاظ د پیغام رسولو وسایل دي، نو پر همدې اساس کره کتونکي ته پکار دي، چې دی د الفاظو د استعمال له ټولو ممکنو توکو څخه خبر وي، تر دې وروسته دې لوستونکي ته ټول مربوط مفاهیم ورتفهیم کړي. دا د کره کتنې هدف او دا هم د کره کتونکي کار دی. د همدې لپاره د کره کتنې په دې ښوونځي کې پر ادبي اثارو د پرېکړې پر وخت د مرتبې د ټاکلو څه اړتیا نه پېښېږي او په دې توګه د لیکوال د افکارو او اندونو د ښوولو په څېر هومره ارزښت نه لري، لکه څومره چې د پیغام دی. څنګه چې لفظ د پیغام کیلي ده، نو پر همدې بنسټ دې ډول کره کتنې ته یوازې الفاظ په زړه پورې دي.

له الفاظو سره د تحلیلي کره کتنې تر زیاته حده لېوالتیا، د ختیځ، د کره کتنې له هغه روایت سره، چې کره کتونکی یوازې د صرف و نحوې او د بیان د علم پر اساس د اشعارو ښېګڼې او بدګڼې

 څرګنـدوي، ډېـر نږدې ـوالى لـري. د ختـيځ پـه زيـاترو تـذکرو کـې د کره کتنې د غه ډول جريان درلود.

د اثـر د مرتبې ټاکنـه او د هغـه پـه بـاب پرېکـړه د نقـد اسـاس ګڼـل کېږي، خو د کـره کتنـې د غـه ښـوونځى دا دواړه توکـه مسـتردوي. د تحليلـي کـره کتونکـو پـه فکـر پرېکـړه يـو فلسـفيانه عمـل دى. کـره کتونکي بايد د يو ساينسپوه په شان له بشپړ نـاپېيلتوب څخـه کـار واخلي او د ادبي اثر تشريح او توضيح وکړي، لکه څنګه چې (ولـيم ايمپسـن) ويلـي دي: ((د نـوي تحليلـي نقـد پـه هـر پـړاو کـې دې لوستونکى د اصلي متن مراجعې ته اړ باسي، دا چې لوستونکى د نقاد له تشريحاتو سره موافقه کوي يا يې نه کوي، دا خبره هومره مهمه نه ده، خو د کره کتونکي د استدلال او د بحث د پوهېدو لپاره ده تـه د اصـلي مـتن د محتـاطانـه مطـالعې اړتيـا پېښـېږي، دا چـې لوستونکى د کره کتونکي دلايل نه مني دا پر کره کتونکي کوم اغېز نه لري، ځکه چې تحليلي کره کتـونکى يـوازې خپلـه رايـه څرګنـدوي او پر نورو يې د منلو هڅه نه کوي.))

## ۱۴- استقرايي کره کتنه:

د کره کتنې د دغه ښوونځي بنسـټګر پروفيسـور (ريچـارډ مـولټن) (Prof. Richord Moulton) دى. د ده پـه فکـر کـره کتنـه هم بايـد د ساينس په څېر بېطرفي ولري، د کره کتونکي وظيفـه دا نـه ده، چـې د

تخلیقاتو ښېګڼې او بدګڼې څرګندې کړي او د هغوی ادبي مرتبه وټاکي. دده په وینا: (( نن سبا د کره کتنې په مروجو طریقو کې د مرتبې ټاکنه تر ټولو زیات ارزښت لري او ددغه مقصد لپاره د پرتلې له لارې د تخلیقاتو د مقام د ټاکنې زیار ایستل کېږي. ))

دی د معیار پالنې تر نامه لاندې کېدونکو کره کتنو، نقادانه پرېکړو او د مرتبې ټاکنې پر هر ډول هڅې سخته نیوکه کوي او د استقرایي نقد ادبي مقام داسې بیانوي: ((ددې ډول کره کتنې مقصد دادی، چې ادبي کره کتنه دې د استقرایي علومو په لړۍ کې شامله کړای شي. ))

په نقد کې د اثر د مرتبې د مقام د ټاکنې لپاره موازنې او مقایسوي مطالعې ته بنیادي ارزښت ورکول کېږي او د هرې زمانې کره کتنه پر هغې باور کوي، خو (مولټن) ته دا مسایل د منلو وړ نه دي، دده په وینا: لکه څنګه چې د بوټو یو پېژندونکی د ګلابو یو ګل او نورو ګلانو په ډله کې یو ته ښه او بل ته بد نه وایي، بلکې دی ټول بېلابېل ګلان بولي او هر یو په ځانګړي ډول مطالعه کوي، د هغو د ودې او زیاتوالي قوانین پیدا کوي، دغه ډول نقاد هم ددې حق نه لري، چې دی د دوو شاعرانو د کلام موازنه او مقابله وکړي او بیا دې یو پر بل وړ ثابت کړي، استقرایي نقاد د معیار پالنې تر نامه لاندې له ټولو نقادانه نظریاتو سره مخالفت کوي. د هغه په فکر څنګه چې په ساینسي پوهنو کې له اصولو او قوانینو د باندې کوم عمل نه شي

نافذېدی، بلکې د زیاتې مطالعې په منظور مشاهده او تجربه د خپل لټون له لارې د لاربنود په توګه قبلوي، نو د غه ډول نقاد هم باید تر هر څه دمخه له موجودو اصولو، پخوانیو روایاتو او د کره کتنې له فورمولونو څخه ځان وساتي او د ساینسپوه په څېر د ایجاد ګر د ټولو ایجادیاتو تر مطالعې وروسته پر هغو د کره کتنې لپاره، د کره کتنې د اصولو لټون وکړي، ګنې دا ډول نقد د دوو بېلابېلو شاعرانو د کلام او اندېښنو جاج د یو معیار په وسیله نه اخلي، بلکې د هر یوه د اثارو تر ځانګړې مطالعې وروسته، د ځینو لاربنودو طریقو له لارې لټون کوي او یوازې د همدغو طریقو په رڼا کې د هر یوه د اثارو شننه او تحلیل کوي. د استقرایي نقد اصول له معیار پالنې سره مخالفت لري او هر ادبي صنف او هر ادیب په ځانګړي ډول مطالعه کوي او د هر اثر په مطالعه کې نقادانه اصول هم بدلېږي. دا ډول نقد نه څوک غټ ثابتوي او نه د چا غندنه کوي. (مولټن) لیکلي دي: ((استقرایي نقد د ادبي اثر تعریف یا غندنې ته اړتیا نه لري، استقرایي نقد د ساینسي څېړنو په څېر د اثر کتنه او مطالعه کوي، دا ډول نقد ادبي قوانین، په ادبي اثارو کې لټوي او ادبیات هم د فطري مظاهرو په څېر له ارتقایي عمل سره تړلي بولي.))

د کره کتنې په ځینو ښوونځیو په خاص ډول په ښکلاییز نقد کې، ذوق او وجدان ته اساسي اهمیت ورکول کېږي، خو استقرایي نقد

يې مستردوي، لکه څنګه چې ساينسپوه د خپلې ځاني خوښې يا نه خوښې پرځاى پر تجربه، مشاهده، څېړنو او له هغو څخه پر استخراج شويو استثنايي جولو ډډه لګوي، نو دغسې بېطرفي توقع له نقاد څخه هم کېدى شي او دا په دې مانا چې نقاد بايد د ذوق په نامه له خپلې شخصي خوښې، نه خوښي او د معيار پالنې له تعصباتو څخه لوړ وي او په يوه بېطرفه موقف کې دې کره کتنه وکړي.

استقرايي نقد تعصب او تنګ نظري غندي او د کره کتنې د زيات درنښت او قطعي کولو زيار باسي.

خو استقرايي نقاد يو اساسي حقيقت هېروي او هغه دا چې ادب له احساساتو او جذباتو سره اړه لري او اديب د هغو تر اغېز لاندې ژوند داسې انځوروي، چې د لوستونکي هېجانات او احساسات په خاص ډول اغېزمن کړي، خو ساينسپوه برعکس د ژوند دا اړخ نه ويني، ځکه هغه هر څه د علمي مشاهدو او لابراتواري تجربو په رڼا کې ويني. سربېره پر دې د ادبي اثر په تخليق کې، اجتماعي، روحي، اقتصادي او تاريخي محرکات مهم نقش ادا کوي، استقرايي نقد دا ګرده له پامه غورځوي.

دغه ډول د ژبې په استعمال کې هم توپير شته، ساينسپوه د طبيعت د پيداکولو لپاره پر اصطلاحاتو انحصار نه کوي، بلکې په ليکنه کې د کفايت او په تفهيم کې د سهولت لپاره اشارات (Signs)

وضع کوي او هره نقطه له خپلې لغوي مانا سره سمه استعمالیږي، خو په ادبیاتو کې د اغېز ښندلو لپاره الفاظ نه یوازې په مجازي او نا لغوي مانا استعمالیږي، بلکې د مبالغې او ادبي صنایعو په مرسته په نا شعوري ډول د له قطعیت څخه مفهوم د پاکولو کوښښ کوي.

لنډه دا چې د ساینس او ادب له دې مقایسوي مطالعې څخه راښکاري، چې په اساسي ډول د دواړو ترمنځ کوم معیار او ارزښت شریک نه دی، نو بیا د یوه د پوهېدنې لپاره له بل څخه څنګه ګټه پورته کېدی شي؟

د کره کتنې استقرایي ښوونځی د منازعې وړ یو ښوونځی دی. پر (مولټن) سربېره (ګریوز)، (مس ستهل) او ځینو نورو هم په دې ښوونځي کې نوم پیدا کړ. اکثریت نقادانو دا ښوونځی نه دی منلی، د مثال په ډول (ریچارډ) په خپل مضمون ( Speculative Instrument ) کې دا ډول نقد یوه مضحکه بللې ده. (هربرت د نګل) په (Science and litery Criticism) کې پر ساینسي کره کتنه سخت انتقاد کړی دی او د کره کتنې دا ډول یې مسترد کړی دی. همدا رنګه (ایس، ایلیت) په خپل مضمون (For ntiers Criticism) کې په څرګندو ټکو کې ویلي دي:

((نقد نه ساینس دی او نه له هغه څخه ساینس جوړېدی شي.))

## ۱۵- پرتلییزه کره کتنه:

د مقایسوي نقد له مطالعې څخه ددې خبرې څرګندول ضروري دي، چې مقایسوي نقد یوه طریقه ده او دا د کره کتنې کوم مخصوص ښوونځی نه دی. دا طریقه د ادبي تخلیقاتو له موازنې، مقابلې او پرتلنې څخه د اثر د معیار او مرتبې د ټاکنې زیار باسي.

که له نقادانه بحثونو او علمي اصطلاحاتو تېر شو، نو په عامه ذهني سطح کې هم لوستونکی په شعوري او یا نا شعوري ډول په خپلو ادبي پرېکړو کې له مقایسوي نقد څخه کار اخلي، لکه د ډېرو ادیبانو له جملې څخه یوه ته ځانګړی ارزښت ورکول او یا پر یوه موضوع د څو اثارو له جملې څخه د یوه خوښونه، په عام ژوند کې د مقایسوي نقد عام مثالونه دي. د ادبي نقد په تاریخ کې د ډېرو مهمو نقادانو له مقایسوي نقد څخه کار اخیستی دی، لکه: له (درایدن) او (جانسن) څخه نیولې تر (متېیو ارنلد واتي)، (ایس ایلیت) پورې نقادان. که د هرې مفکورې نقادان دي، دوی په یو نه یو ډول له مقایسوي نقد څخه کار اخیستی دی. په عام ډول د دوو لیکوالو مقایسوي موازنه، مقایسوي نقد ګڼل کېدی شي. ددې نقد تر ټولو منلی شکل دا دی، چې د دوو شاعرانو تر مقایسوي مطالعې وروسته یوه ته ترجیح ورکول کېږي، خو ددې ترجیح لپاره بېطرفي

لازمي شرط دی. که چېرې نقاد په خپل قضاوت کې بېطرف نه وي، نو ګڼنې دا نقد ، نقد نه دی. د مقایسوي نقد پر پورته ډول سربېره ددې نقد بل ډول دادی چې د یوې ژبې په ادبي اثارو کې د یوې ځانګړې موضوع اثار او اشعار له پیله تر پایه پورې په مقایسې ډول تحلیل او تجزیه شي. د مثال په ډول د یوې ژبې په ادبیاتو کې د ویرنو جاج اخیستل کېږي. په دې ډول پرتلیز نقد کې یوازې دا نه ویل کېږي، چې چا د ویرنې په تکنیک کې ښه تجربه کړې ده او چا په کې نوې موضوعات ورځای کړي دي، بلکې دا هم ورسره ویل کېږي چې د چا مرثیې ډېرې ښې دي.

د پرتلیز نقد وروستی صورت دادی، چې د دوو یا زیاتو ژبو یا هېوادونو د ادبیاتو یو خاص ادبي ژانر د لیکوالو او ویناوالو د بېلابېلو اړخونو د څرګندونې په منظور په مقایسوي ډول مطالعه شي.

د مقایسوي کره کتنې بېلابېلې بڼې البته د نقاد لپاره ګټورې دي، خو ددې مانا دا نه ده چې د نقد دا طریقه له خامیو او اعتراضونو څخه لرې ده. د نقد پر دې ډول تر ټولو لومړنی اعتراض دادی، چې د اروا پوهنې له مخې ان په یوې کورنۍ کې دوه وروڼه بېلابېلې طبعې او خصوصیات لري، رواني تمایلات یې سره بېل دي، نو بیا څنګه کېدی شي چې د دوو ادبي ایجادګرو مقایسوي مطالعه دې وشي،

هغـه هـم پـه دې دلیـل چـې دواړه ادیبـان دي او پـه یـوه عصـر کـې اوسېدلي دي؟ په اروايي لحاظ دا ډول مطالعه ناممکنه ده.

لـه دې او داسـې نـورو اعتراضـونو څخـه لـږ تـر لـږه ضـرور دا څرګندېږي چې مقايسوي نقد ګټه ور دی، خو له دې نقادانه مطالعې څخه چې کوم نتـايج ترلاسه کېږي، د هغـو د نتـايجو پـه بـاره کـې د احتياط ساتل پکار دي.] (۳۱: ۳۲-۲۳).

## ۱۲- لغوي کره کتنه:

[دا په یوه ادبي اثر کې د ژبې او ګرامر د اصولو، قاعدو او ګرامـر لـه کارونې سره سروکار لري او همدا برخـه ارزوي. څرګنده خبره ده چې یوه کلمه هغه وخت کولای شي خپل مانـا پـه ښـه ډول وښندي چې پـه ښکلې او ظريفانه ډول پر خپل ځای وکارول شي.

له هغه پرته د کلمې مانا له ستونزو سره مخامخېږي او دې سره د یوه اثر ارزښت راټیټېږي. ځینـې کـره کتـونکي بیـا پـه دې نظر دي چې د ژبې له معمولو قواعدو څخه سرغړاوی، په ژبه کې یـو ډول تحـول او حرکت رامنځته کوي او دا کار د یوه اثر جذابیت څرګندوي، خـو دې سره سره ځینـې نـور بیـا پـه دې نظر دي چې لیکوال بایـد د ژبـې نـور نورمال قواعد مراعـت کـړي او خپـل کـلام تـه همـاهنګي ورکـړي، پـه دې برخه کې باید مانا له ابهام سره مخامخ نه کړي. کره کتونکي باید لیکـوال تـه څرګنـده کـړي، چـې تـر کومـه حـده د ژبـې لـه قواعـدو

سرغړاوی کولای شي او تر کومه بریده باید د ژبې قواعد مراعت کړي.

د کلمې سمه کارونه، د ښکلو تعبیراتو او نورو شیاتو پنځونه او جوړونه او دا چې یوه کلمه د جملې په کوم ځای کې راشي، هغه مسایل دي چې په لغوي کره کتنه کې پرې بحث کېږي. مترادفې کلمې که له شکلي پلوه وي که له محتوایي پلوه، هم په لغوي کره کتنه کې راځي. ))

## ۱۷- فني کره کتنه:

دا کره کتنه په نثر او نظم دواړو کې د بلاغت بېلابېل فنون څېړي، د هغوی ارزښت او اعتبار مطالعه کوي. ددې کره کتنې بنسټ په یونان کې د (ارسطو) او (اریستاک) او په روم کې د (هوراس) له خوا ایښودل شوی دی او د سکندریه د پوهانو له خوا پالل شوی دی. په عربي او فارسي ادب کې هم دا مهمه کره کتنه ګڼل کېږي، په عربي ادب کې د (قدامة بن جعفر)، (ابو هلال عسکري) او (عبدالقاهر جرجاني) په شان پوهانو دې کره کتنې ته ډېر کار کړی دی.

په فارسي ادب کې (رشید الدین وطواط) او (شمس قیس رازی) ددې کره کتنې اصول او قواعد وضع کړي دي. په عمومي ډول په دې کره کتنه کې د مانا، بدیع او بیان په ګډون د بلاغت پر ټولو اړخونو

بحث کېږي. خو د هغې پر اصولو او قواعدو پوهېدل ددې مانا نه ورکوي چې ليکوال يا شاعر دې د يو اثر په پنځونه بريالی شي، خو پر دې اصولو پوهېدل له ليکوال سره د يو اثر په ښکلا کې مرسته کولای شي.

## ۱۸- اخلاقي کره کتنه:

په دې کره کتنه کې اخلاقي ارزښتونه د کره کتنې اساسي اصل ګڼل کېږي، کېدی شي د ادبي کره کتنې ډېر پخوانی ډول وي. اپلاتون په شعر او ډرامه کې د هغو اخلاقي او ټولنيزو تاثيراتو ته توجه کوي، له شعر او ادب څخه يې په همدې خاطر انکار کاوه چې کېدی شي د ځوانانو اخلاقو ته زيان ورسوي. (ارسطو) هم په دې باور دی چې د شعر په تېره بيا د تراژيدي هدف بايد د نفس تصفيه او تذکيه وي. (هوراس) بيا د شعر ارزښت د هغه په ګټورتيا او ښکلا کې ګوري. په هر حال اکثره پخواني مفکران د شعر او ادب روزنيز او اخلاقي اړخ ته قايل وو.

په اروپا کې په منځنيو پېړيو کې يوازې د کليسا پلويانو، په دې خاطر چې شعر د اخلاقو په خدمت کې نه و، د شيطان غذا ګڼله، د اوولسمې پېړۍ کلاسيکانو هم د شعر لپاره د ظاهري ښکلا ترڅنګ اخلاقي هدفونه هم لازم ګڼل. په اتلسمه پېړۍ کې فرانسوي (ديدرو) پاکي پالنه، د ازايلو غندنه، او د عيبونو راسپړنه د هر ډول هنر

اهداف ګڼل. ویل به یې (( د یو ادبي اثر هدف دادی چې په سړي کې د مینې او تقوا روحیه وروزي او له وحشت څخه یې لرې کړي. )) د همدې پېړۍ انګلیسي لیکوال (دکتر جانسون) په دې نظر دی چې شاعر باید نړۍ لکه څنګه چې ده تر هغې ښکلې انځور کړي )).

د شلمې پېړۍ په پیل کې (تولستوی) او ګڼ شمېر نورو کره کتونکو د ادبیاتو پر اخلاقي اړخ ټینګار وکړ او نورو لیکوالو او کره کتونکو هم دا لاره تعقیب کړه.

د کره کتنې دغه پوره بېلابېل ډولونه چې هم د کره کتنې د بهیرونو او هم د ښوونځیو په نامه یاد شوي دي، دلته مو په لنډیز سره معرفي کړل، خو یو زیات شمېر ادبپوهانو چې کله هم د کره کتنې ښوونځیو ته اشاره کړې، نو هلته یې ادبي ښوونځي معرفي کړي دي، ددې ښوونځیو تشخص یې په واقعیت کې د کره کتنې د ښوونځیو تشخص ګڼلای دی. د کره کتنې پر پورته ډولونو سربېره چې ځینو پوهانو د کره کتنې د ښوونځیو په نامه هم یاد کړي دي، د کره کتنې ځینې ډولونه، لکه تاثراتي، نیوهیومانیستي ، فتوایي، محاکاتي، عیني، صوري یا شکلي، ټولنیزه-کلتوري، انطباعي او ځینې نورې کره کتنې هم شته، خو پورتني ډولونه یې هغه دي چې ډېر کارول شوي او لا هم کارېږي.

# د شپږم څپرکي لنډیز

لکه څنګه چې دمخه مو (د ادبي ښوونځیو ) په څپرکي کې یادونه وکړه، یو شمېر لیکوالو او څېړونکو د کره کتنې ډولونه، د کره کتنې ښوونځي او ادبي ښوونځي سره څنګ په څنګ څېړلي، یو بل کې ډېر نغښتي او یو بل سره اوډل شوي، په تېره بیا د کره کتنې ډولونه او ښوونځي، دلته غواړو د کره کتنې د ډولونو په باب ډېرې لنډې څرګندونې وکړو:

کره کتنه په لومړي پړاو کې پر دوو لویو برخو وېشل کېږي: نظري کره کتنه او عملي کره کتنه او په نظري کره کتنې کې د کره کتنې فکري لیدلوری، نظرونه، پرنسیپونه، اصول او معیارونه راځي. په عملي کره کتنه کې عملاً یو اثر تر څېړنې، ارزونې او شننې لاندې نیول کېږي.

د کره کتنې له بېلابېلو ډولونو څخه یو قانون جوړونکی نقد دی. دا ډول کره کتنه د عملي او علمي نظریو د بیان لپاره اصول وضع کوي.

په تاريخي کره کتنه کې يو ادبي اثر د تاريخي شرايطو او چاپېريال له مخې ارزول کېږي.

په ټولنيزه کره کتنه کې بيا په يوه اثر کې د نژاد، چاپېريال او تاريخي شېبو رول ارزول کېږي.

په رومانتيک نقد کې، مسرت، ولولې، رومانيت ددې ډول کره کتنې اساس جوړوي.

په ښکلا ييز نقد کې په يوه هنري ادبي اثر کې د هغه اثر د ښکلا ييز اړخ تحليل او تجزيې ته زياته پاملرنه کېږي.

په تحليلي کره کتنه کې کره کتونکی ناپېيلی پاتې کېږي. په دې ډول کره کتنه کې د ادبي اثر پيغام تحليلېږي، پر لوستونکي يې اغېز ته پام کېږي، روحياتي مطابقتونو ته پام کېږي، خو کره کتونکی کومه فيصله يا حکم نه صادروي.

په استقرايي کره کتنه کې وايي چې کره کتنه بايد د ساينس په څېر بې طرفه وي. ددې ډول کره کتنې هدف دادی چې ادبي کره کتنه د استقرايي علومو په لړۍ کې شامله شي.

په مارکسيستي کره کتنه کې د ټولنې او ادبياتو ترمنځ اړيکي شنل کېږي.

په اروا پوهنيزه کره کتنه کې په يوه ادبي اثر کې د پنځوونکي نفسي اساس ته توجه کېږي او د هغه په رڼا کې د تخليقي اثر د پنځوونکي شخصيت څېړل کېږي.

په مقايسوي او پرتليز نقد کې بيا د کره کتونکي له خوا د يوه ليکوال اثر د بل ليکوال له اثر سره پرتله کېږي او يا هم د يوې ژبې د يوې دورې اثار د هغې ژبې د بلې دورې له اثارو سره مقايسه کېږي. همدارنګه د کره کتنې نور ډولونه چې پر هر يوه يې په خپل ځای کې رڼا اچول شوې ده.

# د شپږم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-نظري کره کتنه کومې کره کتنې ته وايي؟

۲-عملي کره کتنه څه ډول کره کتنه ده؟

۳-رومانتيک نقد څه ډول نقد دی، بنسټګر يې څوک دي؟

۴-تحليلي کره کتنه څه ډول کره کتنه ده، چېرته رامنځته شوه او پلويان يې څوک دي؟

۵-د استقرايي کره کتنې اساسي محتويات څه دي؟

۶-ايا مارکسستي کره کتنه اوس هم د چلند او تطبيق ساحې لري؟

۷-د اروا پوهنيز نقد بنسټګر څوک دی او ددې کره کتنې اساسات پر څه شي ولاړ دي؟

۸-ايا پرتليزه کره کتنه يوه ګټوره او ممکنه کره کتنه ده؟

۹-ښکلا ييز نقد څه ارزښت لري؟

۱۰-پر پورتنيو کره کتنو نورې کره کتنې کومې دي؟

# سپارښتنې

- هر محصل دې له دې پورتنيو کره کتنو څخه يوه په نښه او پر هغې دې ځانګړې څېړنيزه ليکنه وکړي.
- محصلين دې په يادو کره کتنو کې دوه په نښه او يوه دې له بلې سره پرتله کړي او په ټولګي کې دې په ګړنې او يا ليکنې ډول نورو محصلينو ته وړاندې کړي او د هغوی پوښتنو ته دې ځواب ووايي.

# اووم څپرکی

## د کره کتنې اصول او معیارونه

کره کتنه د یوه علم په توګه ځانګړي اصول او معیارونه لري، خو دا معیارونه د ساینسي هغو په شان فکس او کانکرېټي نه دي، لکه د ټولنیزو علومو د نورو برخو په شان، دلته هم معیارونه د یوه نسبي توافق تر حده پورې دي.

د ارزونې لید لوري هم کله کله توپیر کوي. کره کتنه اکثره د شکل او محتوا د ځانګړنو له مخې ترسره کېږي. د شکل لپاره معیارونه څه دي؟ او د محتوا لپاره څه معیارونه په کار دي؟ ((هنري یا ادبي اثر کومې ځانګړنې لري؟ د ادبي اثر مضمون مهم دی که یې شکل؟ که شکل مهم دی نو خصوصیات یې څه دي؟ که مضمون ته ارزښت ورکول کېږي، په هغو کې کوم اړخ تر نورو د مخه دی؟ ښکلا ییز،

اخلاقي، عقیده یي، سیاسي او که بل څه؟ په ادبي اثر کې څومره واقعیت او څومره تخیل شته او افاده یې په کوم سبک شوې ده؟ د ادبي اثر هدف او غرض څه دی؟ تر لاس لاندې متن ثقه دی؟ د ادبي اثر ژبه صریحه او خوږه ده؟ د ادبي اثر د تخلیق چاپېریال څه ډول دی؟ له عصري معیار سره سم یې ښکلاوې او عیبونه کوم دي؟ اثر ابتکاري دی که مبتذل او تکراري؟ د لیکوال دریځ او په اثر کې کلتوري انعکاس څنګه دی؟ اثر په کوم ادبي جریان پورې اړه لري؟ د لیکوال هدف او ارزښتونه څه دي؟ ایا ادبي عنعنې په کې مراعات شوي دي او داسې نورې پوښتنې او غوښتنې... )) (۲۲: ۳۵-۳۶).

که څه هم ادبپوهانو د کره کتنې د معیارونو په باب بېلابېل نظریات څرګند کړي چې پر خپل ځای به ورته اشاره وشي، خو دوه معیارونه یا اصول یې تر نورو زیات مطرح ګڼلي دي، غواړو په پیل کې د کره کتنې دې دوو اصولو او معیارونو ته په لنډیز سره اشاره وکړو:

## ۱- مطلق اصول او معیارونه:

یو شمېر ادبپوهان په دې نظر دي چې په کره کتنې کې یو لړ داسې مطلق اصول او معیارونه شته چې هغه پر هر ځای او هر زمان کې پر یوه ادبي اثر د تطبیق وړ دي. ښکاره پیغام، اخلاقي ارزښتونه، تصویر او نور هغه معیارونه او اصول دي، چې د هغو په رڼا کې یو

ادبي اثر ارزول کېدی شي او یو ادبي اثر باید دا ځانګړنې ولري، چې ورته ادبي اثر ووایو، دا اصول او معیارونه د زمان او مکان حدود نه پېژني، په واقعیت کې نړۍ شموله دي او د هرې ژبې پر ادبي اثر د تطبیق وړ دي.

## ۲- نسبي اصول او معیارونه:

یو شمېر نور ادبپوهان بیا په دې نظر دي چې د کره کتنې اصول او معیارونه مطلق نه دي، بلکې نسبي دي، یو کره کتونکی یو اثر ته له یوې زاویې ګوري او بل ورته له بل لید لوري. په دې کتنه کې د کره کتونکي شخصي نظر، فکر او ذوق هم دخیل دی او د اثر چاپېریال هم، چې دا ډول د بل کتونکي له اثر او چاپیریال سره توپیر کوي، د دوی په نظر د کره کتنې اصول او معیارونه د ساینسي فورمونو په شان مطلق نه دي، بلکې نسبي دي، دا دواړه نظریې خپل پلویان او مخالفین لري او دواړه خپل خپل دلایل. د دې لپاره دا دلایل لا ښه څرګند شي او همدرانګه د کره کتنې نور ډولونه او معیارونه را ته په ډاګه شي، خپل بحث به پسې وغځوو. که څه هم موږ د کره کتنې ډولونو ته په شپږم څپرکي کې اشاره کړې، خو دلته یو ځل بیا غواړو د کره کتنې ځینې ډولونه او د هغو معیارونو ته په لنډ یز سره نغوته وکړو او په دې برخه کې د ځینو ادبپوهانو نظریات هم څرګند کړو:

د افغانستان نامتو کره کتونکی او ادبپوه استاد محمدصدیق روهي د کره کتنې د اصولو او معیارونو په باب وایي: ((ایا په کره کتنه کې جهانشموله (Universel ) معیارونه او اصول شته؟ په دې برخه کې دوه ډوله نظریې لیدل کېږي: ځینې، معیارونه نسبي ګڼي او وایي چې د کره کتنې معیارونه له یوې خوا د شخصي ذوق او ځکې تابع دي او له بلې خوا د هر کره کتونکي معیارونه د هغه له نړۍ لید او د تفکر له څرنګوالي څخه مشتق کېږي. پر دې اساس د ادبي اثارو ارزیابي د جهانشموله قوانینو غېږې ته ځان سپاري او په عندي بڼه پاتې کېږي. ځینې نور د مکلفیت پر خوا دي او ادعا کوي چې سربېره پر نسبي معیارونو ځینې مطلق معیارونه هم شته چې پر ټولو ادبي اثارو په هر هر ځای کې او هر وخت د تطبیق وړي دي... د مثال په توګه موږ حتی په شلمه پېړۍ کې د (هومر) له حماسې څخه خوند اخلو او له هغې څخه داسې فلمونه جوړوو، چې لګښت یې تر عادي فلمونو زیات دی. د (هومر) د ژوند داستان د روایتونو په غبار کې پټ شوی دی او هېڅوک په یقیني توګه نه پوهېږي چې دی چېرته او څه وخت پیدا شوی دی. په یوه حساب دی له نن څخه نږدې (درې زره) کاله مخکې ژوندی و. خو د ادب په نړۍ کې هېڅوخت نه دی مړ شوی. د (سوفوکلیز) د (اودیپ) ډرامه دومره تاریخي شهرت او ارزښت لري چې د (فیورټي) په اصطلاح یوه کتابتون کتابونه

وربانديږ ليکل شوي دي. همدارنګه د (شکسپير) او (موليير) ډرامې لا تراوسه د نړۍ په اکثرو تياترونو کې ښودل کېږي.

په دې ترتيب موږ ګورو چې يو زيات شمېر کلاسيک ادبي اثار په هر وخت او هر ځای کې د ستاينې او پاملرنې وړ ګرځېدلي دي او د ادبياتو په تاريخ کې لوړ مقام لري. دغسې نامتو اثار هرومرو ګڼ ارزښتمن خصوصيات لري چې د تاريخ پر پيکر باندې د قيمتي غميو په شان ځړېدلي او ځلېدلي دي او خپل ارزښت يې له لاسه نه دی ورکړی، نو ويلای شو چې سربېره پر نسبي معيارونو، ادب ځينې مطلق معيارونه هم لري چې د زمان او مکان له قيودو څخه ازاد دي. ددغو اصولو او معيارونو تشخيص او پلټنه طبعاً مشکل کار دی، خو له موجوديت څخه يې سترګې نه شو پټولای. له بلې خوا د نسبيت د نظريې پلويان همېشه پوښتنه کوي چې ايا د کلاسيکو اثارو کره کتونکي کولای شي يو ډول معيارونه ومني؟ د مثال په توګه (شکسپير) يوه وتلې او نامتو ادبي څېره ده، خو کله چې دده اثار ارزيابي کېږي مختلف کره کتونکي دده د اثارو مختلف اړخونه ستايي، ځينې يې مضمون ته پاملرنه کوي او ځينې يې شکل ته، ځينې يې ټولنيزه قرينه کې ګوري او نور يې د سايکالوجۍ برخه په نظر کې نيسي. ځينې يې د (نړه) هنر په تله کې تلي او نور يې د اخلاقي ارزښتونو له موازينو سره برابروي. پر دې اساس ويلای شو چې د کره کتونکو معيارونه بيا هم نسبي بڼه غوره کوي او نه شو

کولای چې یو مطلق او د ټولو له خوا منل شوی معیار ورباندې تطبیق کړو. له دې پورتنیو کتنو څخه دې نتیجې ته رسېږو چې د کره کتونکو نظرونه یو له بله توپیر لري. ))(۱۵: ۴۱-۴۳).

پوهاند عبدالقیوم قویم چې (نقد ادبي) په نامه یې یو کتاب لیکلی دی او په پوهنتون کې د نقد مضمون تدریسي اثر ګڼل کېږي په دې نظر دی چې: (( کره کتونکی د یوه اثر د ارزونې لپاره بېلابېل معیارونه په پام کې نیسي، خو ښه کره کتونکی همغه دی چې یو معیار مطلق ونه ګڼي. پوهاند قویم د لفظ یا کلمې د کارونې ځرنګوالی د کره کتنې بل معیار دی په دې برخه کې د (لوناچارسکي) یو مثال ورکوي او وایي، چې د (مایافسکي) په شان په هره بڼه چې وغواړي په همغه ډول یې ترکیبوي. د پوهاند قویم په نظر په یو اثر کې د هنري ارزښت ارزونه د کره کتنې بل معیار دی، کره کتونکی یو اثر د هغه د خپل هنري ارزښت له مخې ارزوي. نوښت، ابتکار او نویوالی بل معیار دی چې کره کتونکی یې په پام کې نیسي. ټولنیز پرنسیپونه هم د معیارونو له جملې څخه ګڼل کېږي. ))(۲۱: ۸۰).

په ادبي کره کتنه کې پر مطلقو معیارونو نه توافق او د نسبي معیارونو رنګارنګي او څو اړخیزوالی ددې سبب شوی چې ډول ډول معیارونه رامنځته شي، د کره کتنې هر ښوونځي د یوه اثر د تحلیل او ارزونې لپاره یو لړ معیارونه وضع کړي دي، یو ښوونځی

یو اثر له ښکلا ییز، بل یې له فکري، بل یې له رواني، بل یې له شکلي او بل یې له بل اړخه څېړي، خو ددې ټولو ترمنځ مشترک ټکي هم شته، مشترکات دادي چې د کره کتنې معیار دا معلوموي چې یو ادبي اثر رښتیا هم ادبي اثر دی که نه؟ ادبي جوهر لري او که نه؟ له عادي کلام څخه د ادبي کلام بېلول دا د کره کتنې دنده ده.

ددې لپاره چې د کره کتنې پر معیارونو مو یو څه رڼا اچولې وي، ښه به وي چې دا معیارونه د بېلابېلو ادبپوهانو او د کره کتنې د بېلابېلو ډولونو له نظره هم وګورو چې یو ادبپوه او د کره کتنې یو ډول د یو ادبي اثر د څېړنې او شننې لپاره کوم لید لوري لري:
((اپلاتوني کره کتنه ادبي اثارو ته د اخلاقي او سیاسي هدفونو له نظره ګوري. اپلاتون پر (هومر) او د یونان پر ځینو نورو شاعرانو باندې د اخلاقي ارزښتونو پر بنا ځینې انتقادونه کړي دي او ویلي یې دي، هغه شعرونه دې ماشومانو ته نه لوستل کېږي چې د دروغو، ټګۍ او بې زړه توب درس ورکوي. دی وړاندیز کوي چې د داسې شعرونو ویونکي دې د (اتن) له ښار څخه وشړل شي. نو د اپلاتون د کره کتنې معیارونه د اخلاقو او ګټې پر بنسټ درېدلي دي. لیکن د (ارستو) په نظر د یوه ادبي اثر ارزښت باید د هغه په داخلي جوړښت، منطقي او صوري خصوصیاتو کې وپلټل شي. په بله ژبه، ارستو که څه هم په ادب کې د اخلاقي ارزښتونو په مقابل کې بې تفاوته نه پاتې کېږي، خو دده په عقیده ادبي اثارو ته باید د

ادب له نظره وکتل شي. په حقیقت کې ویلای شو چې د (ادب د ادب لپاره) مفکوره په مستتر ډول د لومړي ځل لپاره د ارستو له خوا وضع شوې ده.

د کره کتنې دوه نور متضاد معیارونه د مطلقیت او نسبیت له مفکورو سره اړه لري. د مطلقیت پلویان وایي که چېرې کره کتنه عندي او ذهني شکل غوره کړي، انارشي او ګډوډي به منځته راشي چې دا کار به ادبیاتو ته ډېر زیان ورسوي. د مطلقیت پلویان ټینګار کوي چې د ادبي اثارو په ارزیابي کې همېشه باید فقط یو ډول معیارونه او اصول تطبیق شي. له بلې خوا نسبیون عقیده لري چې د ادبي اثارو د ارزیابۍ لپاره د جهانشموله او مطلقو معیارونو موندل یو ناشونی او ناممکن کار دی. معیارونه نسبي دي او له مختلفو فلسفي تمایلاتو او نړۍ لیدونو سره اړه لري. د مثال په ډول، یوه طبقاتي ټولنه کې استثماروونکې طبقه ادبیاتو ته یوازې د تفنن او تجمل له نظره ګوري او د هغو په زعم ادبیات باید فقط د سرګرمۍ او تفریح وسیله وي. په داسې حال کې چې استثمار شوې طبقې غواړي چې ادبیات د خلکو د ویښولو، لمسولو او د هغوی د طبقاتي شعور د لوړولو وسیله وګرځي.

د تفسیري انتقاد پلویان ادعا کوي چې کره کتونکی کولای شي په نسبي توګه نا شخصي او بېطرفه معیارونه وضع کړي. د دوی په عقیده، هر ادبي اثر یو سند دی. د کره کتونکي وظیفه داده چې

د دغه سند ماهیت او اصلي کرکتر (اوبژکتیف) ډول وڅېړي او خپل عندي تمایلات په کې داخل نه کړي. کله چې یو ادبي اثر د بېلابېلو تعبیري کره کتونکو له خوا وڅېړل شي د هغه اصلي څېره په روښانه توګه لیدل کېږي.

متني کره کتنه لوستونکی د متن له رموزو او معناګانو او قرینو سره اشنا کوي او د یوه اثر د صحت او سقم په باره کې ژوره څېړنه کوي. د متني کره کتنې هدف دادی چې د مختلفو نسخو له مخې د یوه اثر اصلي متن احیا کړي.

د متني کره کتنې په برخه کې چې تاریخي سابقه هم ولري او یا په اصطلاح د تاریخي متنونو، هغه څه نظم وي که نثر، کره کتنه ډېر دقت غواړي، ددې ډول کره کتنې او دا چې له کومو معیارونو څخه باید په کې کار واخیستل شي، ښه به وي چې د هېواد د یو پیاوړي لیکوال کاندید اکاډمیسین پوهاند محمد رحیم الهام یوه داسې لیکنه را واخلو، چې یو تاریخي متن یې د متنپوهنې او سبکپوهنې میتودونو له مخې ارزولی او پر هغه یې عملي کره کتنه هم کړې ده:

[محمد هوتک او محمد یو شاعر دی که بېل کسان دي؟

سرمحقق زلمی هېوادمل د لیننګراد د ختیځپوهنې د انستیتیوت په خطي کتابونو کې د (فوایدا شریعت) د یوې خطي نسخې په پای کې د ((محمد)) په نامه د یوه شاعر یوه غزله موندلې

ده. ده دا غزلـه ((د پښتـو ادبـي تـاريخ خطي منـابع)) پـه رسـاله کـې رانقـل کـړې او ويلـې يـې دي، چـې ښـايي دغـه ((محمـد)) د ((پټـې خزانې)) مولف ((محمد هوتـک)) وي چـې دغـه يـوه غزلـه يـې پـه دې نسـخه کې نقل او خوندي شوې ده. هېـواد مـل دغـه غزلـه لـه هغـې غزلې سره پرتله کړې ده، چې محمد هوتـک د پټې خزانـې پـه پـای کـې د خپـل شـعر د نمـونې پـه توګـه راوړې ده او دې نتيجـې تـه رسېدلی دی، چې د فوايدا شريعت د قلمي نسـخې غزلـه چـې دده د کتاب ((د پنځمې برخې يوولسـمه نمـره غزلـه ده، لـه محمد هوتـک څخه پرته د بل شـاعر نـه شـي کېدی.)) خـو سره لـه دې هم، ښـاغلی هېوادمـل چـې يـو دقيـق او ځيـرک سـرمحقق دی، غـواړي چـې دغـه مساله نوره هم وسپړله شي چې مبادا ده پـه خپـل دغـه قضاوت کـې اشتباه کړې وي. نو له مانـه يـې هـم وغوښـتل چـې خپلـه رايـه پـه دې باب کې څرګنده کړم، چې که دی په خپل قضاوت کـې تېروتلی وي خپله سهوه اصلاح کړي. ما د سرمحقق هېوادمل دا غوښـتنه ومنلـه او دا دی هڅه کوم چې کـه وکـولای شـم د پرتليـزې سبک پـوهنې د اصولو په رڼا کې دغه مساله وڅېړم.

## سوال:

ایا هغه غزله چې هېوادمل په لیننګراد کې د (فوایدا شریعت) په خطي نسخه کې موندلې ده د پټې خزانې د مولف (محمد هوتک) ده که د کوم بل (محمد) چې لاتراوسه پېژندلی شوی نه دی؟

دې سوال ته د یوتقریبي سم ځواب د موندلو لپاره لومړی د هغه میتود چوکاټونه راوړم چې دلته یې تطبیقول غواړم.

د ځینو پوهانو په عقیده، د سبکپوهنې ساحه پر نهو برخو باندې په دې ډول وېشله کېږي:

۱- سیمه ییز واحد سبک

۲- ملي سبک

۳- په یوه دوره کې د یو ملت د سبک شریکې ځانګړتیاوې

۴- د یو دریځ، مکتب یا نهضت سبک

۵- د یو لیکوال فردي سبک

۶- د یو لیکوال فردي سبک د لیکوالۍ په یوه خاصه دوره کې.

۷- د یو اثر سبک

۸- د یو اثر د یوې برخې سبک

۹- د یو عصر سبک چې پر ټولو یادشوو هنري پوړیو باندې اغېزه کوي.

ددغو دوو غزلونو په برخه کې د دوو فرضیو د اقامې امکان شته:

لومړۍ فرضیه: دا دوې غزلې به د دوو تنو وي.

دویمه فرضیه: دا دوې غزلې به د یوه شاعر وي.

د دواړو فرضیو د ازمویلو لپاره له ورته میتود نه کار اخیستلای شو. زموږ لومړۍ هڅه به دا وي چې په پاسنیو (نه ګونو) ساحو کې هغه چوکاټ پیدا کړو، چې دغه دوه غزلې د قرینې، منطق او کمیت له مخې په کې واچولای شو. پاتې دې نه وي، چې د یوې علمي فرضیې د سموالي او نا سموالي د ثابتولو لپاره د data کمیت ډېر اهمیت لري.

یعنې هر څومره چې data زیاته وي، همغومره د څېړنې نتیجه ډاډمنه وي. خو له بده مرغه data ډېره کمه ده، یعنې صرف له دوو لنډو غزلونو څخه د سبکي عناصرو او ددغو عناصرو دجوړښت د کلیت پشانتیا او بېلوالی په یقیني توګه نه شو معلومولای.

خو موږ به خپله هڅه ونه سپموو.

اوس خپله data رانقلوو: د محمد هوتک غزل:

ساقي، پاڅه، د سرو ملو ډک یو جام را
ستا له غمه نا ارامه یم، ارام را
بې له میوو د سهار ننداري څه کړم؟
پسرلی سو، د خوښۍ ښه پیغام را
دنیا پاته ده، ښادي مو یو ګړۍ ده
یو ګړۍ مې خوښ که، مې کړی انعام را
د بېلتون په تاریکو کې مې زړه شین سو
رڼا لمر د جام د میوو په ظلام را
ناکامیو د دنیا مې کام راتریخ کا
چې مې خوږ کا کام، ترخه و مانا کام را
نه نشاط سته، نه مستي سته، نه رندي سته
چې سم رند هغه او به علی الدوام را
په اوبو مې سور زړګی لږ څه راتود که
محمد ته د اور ډک یو هسې جام را.

د محمد غزل:

نه کړې په هېڅ باندې صرفه هجرانه، ته
یار دې له ما بېل کړ ما په دوه سترګو کاته
دا ترابه ما نه ول چې به یار له ما جدا کا

ځکـه مـې پـه ځيـر د يـار و مـخ وتـه کاتـه
مـه وايـه خنـدان ګـل دې ببـل کـړی لـه بوسـتانه
ولاړه پـــه ارمـــان بلبـــل لـــه ګلـــو الواتـــه
تـور بانـه دې غشـې نـاوکې کـړه مـا پـه وژنـې
ولـې صـرفه نـه کـړې، تـر زړګـې مـې وخاتـه
نجونـه زلمـي واړه تـورو خـاورو لـره درومـي
تـــور اوبـــل و ځنـــې و لحـــد تـــه پرېواتـــه
ولاړه د ... کـــــــره ولاړه نـــــــه ســـــــتنبږې
يـار يـې ځنـې ببـل کـړئ محمـد يـې وناتـه

اوس، راشـئ وګـورو چـې خپلـه data پـه کومـو چوکـاټونو کـې ازمويلای شو:

۱- سيمه ييز واحد سبک: زمونږ data پـه دې چوکاټ کې ځېـړل کېدی شي.

۲- ملي سبک: په دې چوکاټ کې ځېړل کېدی نه شي.

۳- په يوه دوره کې د يو ملت د سبک شريک خصوصيتونه: پـه دې چوکاټ کې هم ځېړل کېدی نه شي.

۴- د یو دریځ، مکتب، یا نهضت سبک: پـه دې چوکـاټ کـې هم نه شي څېړل کېدی.

۵- د یـو لیکـوال فـردي سبک: پـه دې چوکـاټ کـې څېـړل کېـدی شي.

۶- د یو لیکوال فردي سبک د لیکوالۍ په یوه خاصـه دوره کې: په دې چوکاټ کې نه شي څېړل کېدی.

۷- د یو اثر سبک: په دې چوکاټ کې هره غزله لومړی جلا څېړل کېدلای او بیا دواړه سره پرتله کېدی شي.

۸- د یو اثر د یوې برخې سبک: په دې چوکاټ کـې نـه شـي څېـړل کېدی.

۹- د یو عصر سبک چې پـر ټولـو یـاد شـوو هنـري مرحلو بانـدې اغېزه کوي. په دې چوکاټ کې هم څېړل کېدی نه شي.

## لومړی:

د سیمه ییز واحد سبک په چوکاټ کې.

دواړه غزلـې د ژبنیـز جوړښـت لـه مخـې پـه لهجـوي لحـاظ پـه دې لاندینیو پوړیو کې تحلیل او پرتله کوو:

۱- فونو لوژیک جوړښت.

۲- لګزیک جوړښت

۳- مورفولوژیک جوړښت

۴- سنیتا کتیک جوړښت

موږ پوهېږو، چې د محمد هوتک لهجه د کندهار داده، چې په خپله د پټې خزانې د نثر متن یې ثابتوي.

## الف- فونولوژیکه پرتله:

د پښتو په ګرافیمي سیستم کې ددې ژبې ټولې فونتیکي ځانګړتیاوې نه شي منعکسېدی. په غزله کې، سره له دې هم، د پټې خزانې د قلمي نسخې د لیک دود له مخې یوازې یوه کندهارۍ ځانګړنه موندلای شو:

((پسرلی سو، زړه شین سو، نه نشاط سته، نه مستي سته، نه رندی سته، چې سم رند.))

دکندهار په لهجه کې د ((سول)) د مادي ټول مشتقات په (س) ویل کېږي او دغه فونیم په همدې کلمه کې د نورو لهجو له (ش) سره تقابل لري:

| کندهار | نوري لهجې |
|---|---|
| سوم | شوم |

| | |
|---|---|
| سوو | شوو |
| سوی | شوی |
| سواست | شوئ |
| سو | شو |
| سول | شول |

خو د محمد په غزله کې د کندهار د لهجې د فونيميک جوړښت بېلګې نه شته.

## ب- لګزيکه پرتله:

د محمد هوتک پـه غزلـه کې د کنـدهار د لهجې خـاص لګزيکـي عناصر نه ليدل کېږي. خو د محمد د غزلـې د دويـم بيت پـه لـومړۍ مصرع کې د ((ترا)) کلمه او د ((مانه ول)) جمله چې د نـورو لهجـو لـه ((ما نه ويل)) سره تقابل لري، د کندهار د لهجې ځرګندې لګزيکـې بېلګې دي. همدغسې د محمد دغزلې په مقطع کې چې وايي:

يار يې څنې ببل کړئ محمد يې وناته

د کندهار د لهجې دوه نورې بېلګې شته دي: ((کړئ)) او ((ناته)).

په کندهار کې د ((کړئ- کی)) شکل (چې مورفولوژيک خصلت هم دی) د واحد غايب د صيغې لپاره د نورو لهجو له ((کړ- که)) سره تقابل لري او ((ناته)) د ((نتل)) له مادې څخه ما په خپله په نورو لهجو کې نه دی اورېدلی او زما له پوهې سره سم دغه شکل هم د کندهار د لهجې مميزه ګڼل کېدی شي.

## ج- مورفولوژيکه پرتله:

د محمد هوتک په غزله کې د ((کا)) او ((را)) شکلونه د ((کړ)) او ((راکړه – راکه)) پر ځای؛ ((پاته ده)) د ((پاتې ده))؛ ((دبېلتون په تاريکو کې)) د ((بېلتانه په تاريکيو کې)) پر ځای ((کاته، الواته، وخاته، پرېواته، وناته)) د ((کوت، الوت، وخوت، پرېووت، وکوت (چې مانه دی اورېدلی) پر ځای او ((وما ناکام را)) د ((ما ناکام ته راکه)) پر ځای ټول د کندهار د لهجې مورفولوژيک مميزات ثرګندوي. په دې غزله کې ((کا)) او ((کړ)) دواړه راغلې دي. په همدې توګه ((نجونه زلمي واړه)) بايد د نورو لهجو په شان ((نجونې زلمي واړه)) وي.

نو د مورفولوژيک جوړښت له مخې د محمد شعر د کندهار د لهجې خورا زيات مميزات لري.

## د- سنتاکتيکه پرتله:

د محمد هوتک په غزله کې ((یو ګړی دی)) د ((یوه ګړی ده)) پر ځای؛ او بله پلا ((یوګړی)) د ((یوه ګړی)) پر ځای؛ ((رڼا لمر)) د روڼ لمر)) پر ځای، (( ناکامیو ددنیا)) د ((دنیا دناکامیو)) پر ځای ( چې په پټه خزانه کې ډېر زیات راغلی دی) کاروني د کندهار د لهجې او د محمد هوتک د سبک له ممیزاتو څخه دي.

د محمد په غزله کې (( په دوه سترګو)) د (( په دوو سترګو)) پر ځای؛ (( د یار ومخ وته)) د (( د یار مخ ته) پر ځای ((یار له ما جدا کا)) د ((یار له مانه (څخه شکه) )) پر ځای او ((ولحد ته)) د ((لحد ته)) پر ځای کاروني د کندهار د لهجې د عباراتو د جوړوني ممیزې دي.

له دې پرتلې څخه دا نتیجه لاس ته راځي چې: د محمد په غزله کې د کندهار د لهجې فونولوژیک عنصر نه شته، مګر د لګزیک، مورفولوژیک او سنتاکتیک جوړښتونو او عناصرو له مخې د سیمه ییز واحد سبک دومره کافي ځانګړني لري چې په پوره یقین سره ووایو: (محمد) د (محمد هوتک) په شان کندهاری لهجه لرله او نو ځکه کندهاري دی.

## دویم: د فردي سبک په چوکاټ کې

الف- شکلي جوړښت: په متعارفه مانا دواړه توتې غزلې دي. د محمد هوتک غزله «(۷)» بیته او د محمد دا «(۲)» بیته لري او د وزن له مخې د عبدالحمید مومند د هغې غزلې غبرګون دی چې داسې شروع کېږي:

الـهي د مـحبت ســــوزو ګـــــذار را
په دې اور کې د سهي سمندر ساز را

چې د فاعلاتن فاعلاتن فاعلاتن عروضي وزن لري. خو د محمد غزله بېل وزن او بېله قافیه لري او د مفتعن مفتعن مفتعن فع په عروضي وزن که ده.

د محمد هوتک د غزلې د مطلع لومړۍ مصرع او د مقطع وروستۍ مصرع د «جام» شایګانه قافیه او د محمد د غزلې مطلع او دویم بیت د «کاته» شایګانه قافیه لري. د محمد هوتک د غزلې د دویم بیت دویمه مصرع، یانې «پسرلی سو د خوښۍ ښه پیغام را» د وزن سکته ګي لري او باید داسې ولوستله شي: «پسرلی سو د خوښیه ښه پیغام را». د محمد د غزلې د پنځم بیت دویمه مصرع، یانې:

«تور اوربل و څڼې و لحد ته پرېواته» ګرامري نیمګړتیاوې لري: لومړی دا چې «تور اوربل و څڼې» باید «تور اوربل او څڼې»

ولوستل شي او دویم دا ((پرېواته)) فعل دوه فاعله: ((تور اوربل او ځنې)) لري، خو فعل مفرد دی او د عدد له نظره د جملې ددې دوو توکونو ترمنځ مطابقت نه شته. د ګرامري جوړښت په لحاظ باید دغه مصرع په دې ډول وي: ((تور اوربل او ځنې و لحد ته پرېوتل)).

نو د شکلي جوړښت په لحاظ دواړه شعرونه نیمګړتیاوې لري، په تېره بیا په دواړو غزلو کې له شایګانه څخه د ځان ژغورلو پروا نه ده ساتل شوې.

ب- محتوایي جوړښت: دواړه غزلې لریک خصلت لري؛ خو د دواړو اصلي تیمونه سره توپیر لري. د محمد هوتک په شعر کې، شاعر ساقي ته خطاب کوي او شراب ترې غواړي او ډېر شراب غواړي او مدام یې غواړي او شراب ځکه غواړي چې شاعر د ساقي له غمه غمجن دی، نو په پسرلي کې هم له ښادۍ نه برخه نه لري. د ببلتانه په تاریکو کې یې زړه شین دی. په دنیا کې ناکامه دی، نشاط، مستي او رندي نه لري او دنیا هم بې بقا ده. په شعر کې د عرفاني روحیې سوز او صمیمیت منعکس شوی دی. د غم او ښادۍ د تضاد موضوع د شعر محتوا ته فلسفي رنګ او د دنیا بې بقاتوب ورته دیني، عرفاني پرداز ورکوي، دغه ټوټه که څه هم غزله ده او په غزلو کې عرفاً د موضوع وحدت، چې شراب غوښتل

او ددغې غوښتنې دلایل دي، په ډېره ښه وجه ساتل شوي دي او شعر ته يې منطقي- عاطفي قوت ورکړی دی.

خو محمد په خپل شعر کې ((هجران)) ته خطاب کوي او سر ترپایه دغې موضوع ته انکشاف ورکوي. دغه ټوټه په حقیقت کې ((مرثیه)) ده، ځکه د شاعر محبوبا داسې تللې ده، چې بیا نه راستنېږي: تور اوربل او څنې يې په لحد کې پرېوتې دي. په دغه شعر کې ((هجران)) د ((مرګ)) سمبول دی. شاعر هم د خپلې محبوبې په مرګ کې غمجن دی او هم په خپله خپل ځان ته تسل ورکوي. په دې شعر کې هم عرفاني روحیه منعکسه ده او دا چې وايي نجونې او زلمي واړه تورو خاورو لره درومي د خپل ځان د تسل لپاره منطقي استدلال کوي او د محمد هوتک په شان خپل شعر ته منطقي- عاطفي قوت ورکوي. په دې شعر کې هم د موضوع وحدت او تمامیت ساتل شوی دی. نو دواړه شعرونه په سبکي لحاظ عمومي پشانتیاوې لري او دا فرضیه قوي کوي، چې دواړه شعرونه به د یوه سړي وي.

## درېیم هنري جوړښت:

په دې برخه کې باید ددغو دواړو غزلو د خیال صورتونو (یانې ایماژونو) چې تشبیهاتو، استعاراتو، کنایاتو، اساطیرو،

سمبولونو او تشخیصاتو (یعنې د بېځایه شیانو ذیروح انګارلو) شرحه او پرتله وشي.

د محمد هوتک په شعر کې طباق، تجنیس او استعارې، مګر ډېر لږ راغلي دي، یانې ایماژونه په کې کم دي، خو د شعر ژبه، وزن، د الفاظو انتخاب او رواني په دې حد کې دي، چې دغه ټوټه ماته سهل محتنع غوندې برېښي او په نسبي صورت یو ښه مکمل شعر دی.

خو د محمد غزل ایماژونه ډېر لري. سمبول لري، تشخیص لري، د اشعات صفت په کې شته او په عمومي توګه د محمد هوتک تر شعر هنري بډایتوب لري، مګر د محمد هوتک د شعر په شان رواني نه لري. زه د اختصار د رعایت په خاطر له تفصیل نه تېرېږم.

نتیجه:

۱- محمد هوتک او محمد د یوه سیمه ییز سبک پیروان، یانې دواړه د خپلو شعرونو د فونولوژیک، مورفولوژیک، سنیتاکتیک او لګزیک جوړښتونو په لحاظ بېخي مشارکت لري. نو دواړه د یوې سیمې، یانې د کندهار دي.

۲- دواړه د غزلو په ویلو کې پوره مهارت لري او دواړو د شعر په دې ډول کې د موضوع تمامیت او کلیت سالتی دی.

۳- دواړه په خپلو شعرونو کې په قافیو کې ((شایګان)) لري، یانې په دې برخه کې بې پروا دي.

۴- د دواړو د غزلو په محتوا کې په فکري، عاطفي لحاظ یو ډول طرز لیدل کېږي.

دغه مشترک وجوهات دې فرضیې ته قوت ورکوي، چې ګوندې دغه دواړه غزلې د یوه شاعر وي. یانې دواړه د محمد هوتک د قریحې محصولات دي.

ددې فرضیې قوت عجالتاً په سلو کې اتیاو ته رسېږي، شل په سلو کې نور هغه وخت اثباتېدی یا زموږ دغه فرضیه بالکل نفې کېدی شي، چې د محمد هوتک او د محمد نور منظوم یا منثور اثار هم پیدا شي او زموږ د کمیت د خېړنې لپاره دومره کافي شي، چې د غوڅ قضاوت علمي امکان میسر شي.] (۲: **۵۸-۷۳**).

دا وه د سبکپوهنې او متنپوهنې د اصولو له مخې د یوه تاریخي منظوم متن ارزونه. غواړو اوس د کره کتنې په باب خپل بحث نور پسې وغځوو او دا څرګندوو چې د کره کتنې بېلابېل ډولونه د

کومو بېلابېلو معیارونو له مخې یو اثر ارزوي یانې دا چې د کره کتنې هر ډول د یو اثر د ارزونې لپاره خپل خپل معیارونه لري.

انطباعي (امپریسیونیستي) کره کتنه پر دې اصل ولاړه ده، چې یو ادبي اثر پر کره کتونکي باندې څه ډول اغېزه کوي. دلته کره کتونکی د یوه اثر تر لوستلو وروسته خپل احساس او خپله انطباع څرګندوي.

د (اناتول فرانس) په عقیده، انطباعي کره کتنه: ((د شاهکارونو ترمنځ د یوه حساس روح ماجراجویي ده)). امپریسیونیستي کره کتنه، د ځینو په عقیده، درومانتیک انفرادیت او معاصرې ځان پامۍ زېږنده ده. انطباعي کره کتونکی په دې پسې ډېر نه ګرځي چې واقعیت څه شی دی، بلکې دی تاثرات او برداشتونه انځوروي او د هغو له مخې پر یوه ادبي اثر باندې قضاوت کوي او داسې ښکاري، لکه یو څوک چې پر خلکو باندې د هغو د څېرو له مخې قضاوت کوي.

پر دې اساس انطباعي کره کتنه د افراطي ذهنیګرۍ او (اندیویدو الیزم استازیتوب کوي، لکه پورته چې یادونه وشوه، که د چا له قیافې څخه یې ښه راغلل نو هغه سړی ښه دی او که بالعکس د شخص څېره یې په لومړي نظر خوښه نه شوه نو دا د لیدونکي (امپریسیونیست) تقصیر نه دی، بلکې د لیدل شوي شخص

نیمگړتیا ده چې ولې یې د لیدونکي په ذهن کې په زړه پورې انطباع نه ده پرې ایښې.

د ژبنۍ کره کتنې له نظره، ادب یو داسې هنر دی چې د ژبې له لارې تحقق مومي. له دې امله په هر ادبي اثر کې ژبه څرګند او عمده نقش لري او حتی ویلای شو چې د ادبي اثر تحلیل په واقعیت کې یو ډول ژبنی تحلیل دی. د ژبنۍ کره کتنې پلویان له یوې خوا د یوه ادبي اثر مفهومونه او ماناګانې روښانوي او په دې وسیله د ناسم پوهاوی مخه نیسي. له بلې خوا، دوی لوستونکي د الفاظو او عباراتو له ښکلا او اغېزې څخه خبروي. په ژبنۍ کره کتنه کې ژبه فقط د ژبې په حیث نه ازمایل کېږي، بلکې دلته ژبه په خپله د یوه صنعت او هنر بڼه غوره کوي.

اکثر ادبي اثار ساده او بېطرفه الفاظ په داسې قرینه کې استعمالوي چې هلته یو ارزښت پیدا کوي. یو معنوي پس منظر زېږوي، څو ډوله سیوری پیدا کوي او کله کله خپله کلمه له منځه ځي خو سیوری یې پاتې کېږي. ادبي ژبه له علمي ژبې سره توپیر لري ځکه چې ادبي ژبه غالباً رمزي او سمبولیکه وي او کېدی شي چې په یوه وخت کې تر یوې زیاتې ماناوې پیدا کړي. د (لیو پیپڅر) اتریشي ژبپوه او مورخ په نظر باید ژبپوهنه او ادبي کره کتنه سره یوه شي.

د کره کتنې په ډولونو کې تاریخي کره کتنه خاص مقام او شهرت لري. که څه هم کره کتنه په لرغونو وختونو کې موجوده وه، خو د اکثرو ادبي مورخانو په عقیده، تاریخي کره کتنه له اوه لسمې او اتلسمې پېړیو څخه د هغې په اصلي مفهوم پیل کېږي، چې غوره استازي یې (درایدن) او (جانسن) دي. (درایدن) عقیده درلوده چې هر شاعر تر یوې اندازې په ((یوه عصر)) پورې اړه لري. د (جانسن) په نظر: ((د دې لپاره چې پر اوسني وخت باندې قضاوت وکړو هغه باید له تېرې زمانې سره پرتله کړو.))

سره له دې، تاریخي کره کتنه په نولسمه پېړۍ کې دوو تنو فرانسوي لیکوالو (شارل اکوبستین سن بوو) او (هیپولت ادولف تین) په لیکنو کې تبارز او عمومیت پیدا کوي. (سن بوو) ویل چې دی غواړي د ادبیاتو طبیعي تاریخ ولیکي. ده پر بیوګرافي باندې زور واچاوه او د یوه ادبي اثر ((شخصیت)) یې د لیکوال له شخصیت سره تاړه. دده په نظر موږ تر هغه پورې چې لیکوال په سمه توګه ونه پېژنو دده ادبي تخلیق هم په سمه توګه نه شو ارزیابولای: ((لکه څنګه چې ونه هماغسې یې مېوه.))

د (سن بوو) شاګرد (تین) تر ده یو ګام مخکې ولاړ او د طبیعي پوهنو له مېتود څخه د پیروي په اثر یې د علت مقولې ته پاملرنه وکړه او خپل ادبي تحلیل ته یې د علت او معلول د بیانولو له لارې انکشاف ورکړ. دده په پوهه د ادبي کره کتنې معیارونه: ملي کرکتر،

تاریخي دوره او ټولنیز چاپېریال وو. ویل کېږي چې په راوروسته کې (ټولنیز کلتوري میتود ) هم د (تین ) له نظریې څخه الهام اخیستی دی. د (سن بوو ) او (تین ) نظریو د اروپا په لویه وچه کې ډېر زیات نفوذ وکړ او حتی په هماغه پېړۍ کې یې امریکې ته هم لاره پیدا کړه. اروپایي کره کتونکو د (سن بوو ) او (تین ) په پیروۍ د ادبي اثارو د ارزونې پرمهال کوښښ کاوه چې د لیکوال د تفکر څرنګوالی، دده بیوګرافي، دده تاریخي او ټولنیز چاپېریال او د هغه ادبي منبع وڅېړي. په امریکا کې تر (۱۹۲۰م) کال پورې همدغه تاریخي کره کتنه مروجه وه، خو تر دغې نېټې وروسته د فورمالیزم له مقاومت سره مخامخ شوه او پر (۱۹۲۰م) کال یې دفاعي حالت غوره کړ.

د نوبل د جایزې وړونکی (سن کلو لیویس) پر (۱۹۳۰م) کال د کترې په ډول تاریخي کره کتنې ته د اشارې په ترڅ کې وویل: ((زموږ امریکایي پروفیسوران داسې ادبیات خوښوي چې څرګند ، ساړه تخلیق او بالکل بې روحه وي. که په لنډ ډول ووایو تاریخي کره کتنه د یو ادبي اثر د ارزونې پرمهال کې د متن اصالت، ژبني خصوصیات، کلتوري ارزښتونه، ادبي عنعنې، د لیکوال د ژوند جزییات، د مادي کلتور اغېزې او د هماغه اثر ټول منابع په نظر کې نیسي.))

د اخلاقي، مقايسوي او قضايي کره کتنو له تفصيل څخه تېرېږو، ځکه په اسانۍ سره پوهېدی شو چې په اخلاقي کره کتنه کې يو اثر د اخلاقي ارزښتونو په تله کې تلل کېږي. مقايسوي کره کتنه هم ادبي اثار سره پرتله کوي او زيار باسي چې په دې وسيله د ((عصر روح)) کشف کړي او قضايي کره کتنه هم د يو لړ منل شوو معيارونو پر اساس د يوه اثر ښېګڼه او بدګڼه بيانوي او زياتره اخلاقي بڼه غوره کوي.

صوري يا شکلي کره کتنه (Formalist criticism) په انګلستان او د امريکې په متحده ايالاتو کې ډېر زيات عموميت لري او په دواړو هېوادونو کې په وروستيو څو لسيزو کې يو مسلط مېتود ګڼل کېږي. فورماليزم په ادبياتو کې يو ريالستي ضد تمايل دی، چې پر هغه يو زيات شمېر ادبي مکتبونه، لکه کيوبيزم، نړه هنر، سور رياليزم، دادايزم، پيوريزم، فاويزم، تاچيزم او پريمتيويزم ګډ شوي دي.

ددې ادبي مکتب مشترک خصوصيات دادي چې هنر له واقعيت څخه لرې کوي، شکل ته د مضمون په نسبت ترجيح ورکوي او د شکل خپلواکي او لومړيتوب ته قايل دي. ددې مکتب تيوريکي اصل دادی چې ګويا هنر يوازې له خوند او ښکلا سره اړه لري او بايد له ټولنيزو مفکورو او د خلکو له حياتي اړتياوو څخه لرې وساتل شي. فورماليستي کره کتنه کله کله د (ارستويي کره کره

کتنې ) په نامه هم یادېږي او ددې علت دادی چې د (ارستو ) په نظر یو ثابت، لایزاله او ایډیال شی دی، په داسې حال کې چې ماده نیمګړې او متغیره ده.

(ارستو ) په ادبیاتو کې پر شکل او جوړښت باندې تکیه کوي او هر څومره چې به یوه ادبي اثر کې شکل کمال او بشپړتیا ته نږدې وي، په هماغه تناسب یې بدیعي او هنري ارزښت زیاتېږي. ماده په هغه وخت کې کمال ته رسېږي چې له ایډیال سره عیاره شي. په دې وروستیو وختونو کې ځینې بورژوا فزیک پوهان هم ادعا کوي، چې ماده په خپل نهایي تحلیل او تجزیه کې پر شکل منتهي کېږي او شکل د جهان د پیدا ایښت مبدا ده. دغه فلسفه له علمي فلسفې سره په متضاد قطب کې واقع شوې ده او کوم علمي ارزښت نه لري. جهان له اشکالو څخه نه دی جوړ شوی او نه خالص شکل وجود درلودلای شي.

اوس به راشو د فورمالیستي کره کتنې عمده خصوصیاتو ته. تر ټولو دمخه باید ووایو چې فورمالیستي کره کتنه د تاریخي کره کتنې عکس العمل دی. فورمالیست کره کتونکی وایي چې د یوه ادبي اثر د ارزونې لپاره د لیکوال څېړنه په کار ده. په خپله لیکوال په اثر کې مدغم شوی دی او د خپل تفکر څرنګوالی یې په خپل اثر کې ښوولی دی. په دې ترتیب، فورمالیست نقاد د هغو عواملو له تحلیل څخه ډډه کوي چې لیکوال یې د ټاکلي اثر تخلیق ته مجبور

کېږي یا هڅولي دي. فورمالیست کره کتونکي د اوضاعو او د چاپېریال له تحلیل څخه وېرېږي ځکه چې په دې صورت کې د بورژوا ټولنې خصوصیات رابرسېره کېږي او د فردي ازادۍ او (انډیویډوالیزم) اصلي ماهیت افشا کېږي. فورمالیست هڅه کوي پر ادبي اثر باندې فشار واچوي او هغه د لیکوال له شخصیته بېل کړي او له ماضي څخه یې جلا کړي. داسې ښکاري، لکه چې لیکوال په خلا کې اثر ایجاد کړی وي. نو باید د هغه جوړښت او شکل مطالعه شي. مثلاً باید وکتل شي چې د لیکوال په لیکنه کې تضاد شته که نه؟ د تکرار او نوښت برخه یې څومره ده او داسې نور. د (شیکاګو) مکتب چې د فورمالیستي کره کتنې یو ډول دی پر هر ادبي اثر باندې د خوند او لذت معیار تطبیقوي. یو شمېر نور کره کتونکي پر ادبیاتو باندې احصاییوي قاموس تطبیقوي. ځینې نور، لکه انالوجستان د شعر د جوړښت د څېړنې لپاره هغه ټوټې ټوټې کوي او اجزا یې مطالعه کوي. د فورمالیستي نقد په باره کې ویل شوي چې هغه د ښکلا پېژندنې له نظره کلاسیک، د ټولنیزو او سیاسي تمایلاتو له پلوه ارستوکراتیک او د مذهبي عقایدو له اړخه محافظه کار دی.

د کره کتنې له ډولونو څخه یوه هم ټولنیزه کلتوري کره کتنه (Socio-cultural cri ticism) ده. دا کره کتنه په خپلو معیارونو کې تاریخي کره کتنې ته ډېره ورته ده خو له هغې څخه یو څه توپیر

هم لري. (اډمیونډ ویلسن) په خپله مشهوره مقاله (د ادبیاتو تاریخي تفسیر) کې ټولنیزه کلتوري کره کتنه داسې تعریفوي: ((د اجتماعي، اقتصادي او سیاسي اړخونو له پلوه د ادبیاتو تعبیر او تفسیر)) ټولنیزه کره کتنه، د تاریخي کره کتنې پر خلاف، د لیکوال تاریخي پس منظر او د یو ادبي اثر منابعو، متن، ژبنیو کیفیتونو، ژانر او عنعناتو ته فقط یوه عبوري کتنه کوي او پر همدې موضوعاتو باندې زیات توقف نه کوي.

دلته کره کتونکی د یوه ادبي اثر اړیکي له ژوند سره (په تېره بیا له سیاسي، اخلاقي او کلتوري خواوو سره) مطالعه کوي. د ټولنیزې کلتوري کره کتنې په منځته راتګ کې د (اپلاتون)، (هیګل)، (تین)، (مارکس) او (متیو ارنولډ) اغېزه لیدل کېږي، ځکه چې (اپلاتون) په شعر کې د التزام پلوی دی او شعر ته د اخلاقي او سیاسي هدفونو له مخې ارزښت ورکوي او یا یې نفې کوي. (هیګل) هم د (۲۳-۱۸۲۲) په لکچرونو کې پر دې ټکي ټینګار کړی و، چې ادب د ټولنیز ژوند مظهر او د ټولنې د مسلطو افکارو انعکاس دی. (تین) توصیه کوي چې ادبي کره کتنه باید ملي کرکتر، تاریخي دوره او ټولنیز چاپېریال په نظر کې ونیسي. د علمي نړۍ لید بنسټ اېښودونکو دا ثابته کړه چې تولیدي اړیکي د هر ډول سیاسي، حقوقي، فلسفي او هنري مفکورو او موسساتو بنسټ (زیربنا) ګڼل کېږي او په دې ترتیب موږ نه شو کولای ادبیات د تولید طرز له

چو کاټ ځخه دباندې مطالعه کړو. (متیو ارنولډ) هم په ادبي کره کتنه کې پر اخلاقي، فکري او ټولنیزو معیارونو ډېره لګوي او فورمالیستي کره کتنه ردوي. ځینې بورژوا مفکرین په ساده ګۍ سره ټولنیزه کلتوري کره کتنه (اپلاتوني) بولي او ځینې نور هغه (چپ لاس) ته منسوبوي او پلویان یې په تور لست کې نیسي. مګر حقیقت دادی چې د ټولنیزې کلتوري کره کتنې پلویان مختلفې درجې لري او ټول یو ډول سیاسي تمایل نه لري. ځینې سیاسي او ځینې نور یې ټولنیزو-اخلاقي او کلتوري برخو ته زیاته پاملرنه کوي، خو په عمومي ډول درې واړه له نرږه هنر او فورمالیزم سره مخالف دي. د (ګریبشتاین) په عقیده د ټولنیزې کلتوري کره کتنې عمده خصوصیات دادي:

۱- ادبي اثر په هغه صورت کې په سمه توګه ارزول کېدلای شي چې د چاپېریال او کلتور په غېږ کې دننه مطالعه شي او د یوې ځانګړې او مجردې پدیدې په نظر ورته ونه کتل شي. هر ادبي اثر د پېچلو ټولنیزو او کلتوري عواملو محصول دی.

۲- د یوه ادبي اثر مفکورې د هغه د شکل او تخنیک په اندازه اهمیت لري. شکل او تخنیک په خپله تر یوې اندازې د مضمون او مفکورو په واسطه ټاکل کېږي او له هغه ځخه الهام، اخلي هېڅ عمده اثر تر هغې پورې د ادبیاتو قلمرو ته لاره نه شي پیدا کولای تر څو پورې چې پر ژورو، مهمو او ګټورو مفکورو باندې ډېره ونه

لګوي. سطحي، مبتذلې او له شرارت نه ډکې مفکورې يو اثر ته مقبوليت نه شي ورکولای.

۳- هر ادبي اثر بايد د کلتور اخلاقي او منل شوي ارزښتونه منعکس کړي او له ژوند سره نه بېلېدونکې اړيکې ولري.

۴- په ادبي اثر کې بايد التزام او مسووليت نغښتل شوي وي.

۵- ادبي اثار طبقاتي ماهيت لري او له ټولنيزو غوښتنو او اړتياوو څخه ځان نه شي جلا کولای.

۶- کره کتونکی د تېرو زمانو او اوسنيو ادبياتو په مقابل کې له مسووليت نه ډک چلند کوي او د هر نسل اړتياوې د خپل وخت د معيارونو پر اساس په نظر کې نيسي.

په همدې ترتيب، د کره کتنې ځينې نور ډولونه شته چې اکثره يې يو له بله جزيي توپيرونه لري او يو په بل کې متداخل دي. په عمومي ډول، د بورژوا ټولنې کره کتنه د لوړو او منځنيو طبقو علايق او ذهنيتونه منعکسوي. البته په دغه ټولنه کې ځينې کره کتنې خپل معيارونه له انتقادي رياليزم څخه را اخلي او د کپيتاليستي ټولنې مزمنې ناروغتياوې، استثمار او اقتصادي بحرانونه، مليتاريزم، هېپي ګري، ګانګېستريزم او د ډول ډول جنايتونو شبکې افشا کوي.

د نولسمې پېړۍ له نيمايي نه راپد ېخوا يو شمېر مترقي ليکوالو او هنرمندانو د ټولنيزو، دموکراتيکو ايډيالونو د تحقق او د پانګوالۍ له جغ څخه د خلکو د پرګنو د خلاصون لپاره پراخې مبارزې پيل کړې دي. د انتقادي رياليزم سترو ليکوالو، لکه: (ستاندال)، (بالزاک)، (ډيکنز)، (ګوګول)، (تورګنيف)، (ګنچاروف)، (شيدرين)، (نيکراسوف ليف تولستوی)، (دپين) او نورو د انتقادي رياليزم په پلوۍ د ملاکانو، بورژوازي او بيروکراتيکو اصولو پر ضد بې امانه قلمي مبارزه کړې ده او خپل قهرمان يې له زيار ايستونکو او انقلابي روشنفکرانو څخه انتخاب کړی دی. په راوروسته وختونو کې (چارلي چاپلين)، (همينګوی)، (ګرين) او نورو د خلکو د ازادۍ، سولې او نېکمرغۍ لپاره خپل غږونه پورته کړي دي. يو شمېر کره کتونکي د انتقادي رياليزم په پله روان شوي دي، د هغو هدفونه او معيارونه يې د اثارو د ارزونه په برخه کې تطبيق کړي دي. د ټولنيزې کره کتنې ډېره لوړه مرحله د سوسيالستي رياليزم پر معيارونو باندې ولاړه ده چې عمده پرنسيپونه يې پرولتاري ليکوالو او شاعرانو، لکه: (ماکسيم ګورکي) او (د بيان بيدني) له خوا وضع شوي دي. ددې مکتب عمده اصول د علمي نړۍ ليد له ليدلوري د ژوند د واقعيتونو روښانول، مترقي کارګري ايډيالوژي ته ځان وقفول، د خلکو خدمت، سوسياليستي هيومانيزم، انټرنيشنليزم تاريخي اپټيميزم، د

ذهنیګـــرۍ او فورمـــالیزم ردول، د ســـولې، ازادۍ، برابـــرۍ او نېکمرغۍ لپاره کار کول دي.](**۱۵**: **۴۴**-**۵۵**).

د کره کتنې پورتنیو ډولونو ته په کتنې ویلای شو، چې د کره کتنې هر ښوونځی او هر ډول د یوه اثر د ارزونې لپاره خپل خپل معیارونه لري، نسبي او مطلق معیارونه دواړه موجود دي او ددې ترمنځ بیا هر ښوونځی یا هر ډول خپل خپل معیارونه لري.

# د اووم څپرکي لنډيز

کره کتنه يو علم دی، هر علم خپل ځانګړي اصول او معيارونه لري. ادبپوهانو يو وخت د کره کتنې دوه ډوله معيارونه په ګوته کړي وو.

يوه ته يې (نسبي معيار) ويل او بل ته يې (مطلق معيار). وايه دا چې دا دواړه معيارونه پر يوه اثر د تطبيق وړ دي، په دې برخه کې د ادبپوهانو ترمنځ د نظر اختلاف و او لا هم شته. د شکل او محتوا معيارونه هم مطرح وو او دي، ځينو د يوه اثر د ارزونې لپاره شکلي او ځينو نورو محتوايي مهم ګڼل. د ځينو ادبپوهانو په نظر د ځينو د ارزونې لپاره نسبي معيارونه د تطبيق وړ دي، خو ځينې په دې نظر دي چې په ادبياتو کې يو شمېر داسې مطلق معيارونه هم شته چې د هرې ټولنې پر ادبياتو يو شان د تطبيق وړ دي. ځينې نور معيارونه هم مطرح دي چې هغه هم اکثره د کره کتنې له ډولونو سرچينه اخلي، د ساري په توګه انطباعي کره کتنه پر دې اصل ولاړه ده، چې يوه ادبي اثر پر کره کتونکي باندې څه ډول اغېزه کړې ده.

د ژبنۍ کره کتنې له نظره بيا ادب داسې يو هنر دی چې د ژبې له لارې تحقق مومي، له دې امله په هر ادبي اثر کې ژبه څرګنده او عمده نقش لري او حتی ويلای شو چې د ادبي اثر تحليل په واقعيت کې يو ډول ژبنی تحليل دی. تاريخي کره کتنه بيا خپل اصول او معيارونه لري، اخلاقي کره کتنه په يوه اثر کې اخلاقي مسايل څېړي، صوري يا شکلي کره کتنه خپل، فورماليستي خپل او همداسې هر ډول کره کتنه خپل اصول او معيارونه لري، خو په مجموعي ډول، بې طرفي، بې تعصبي، علميت او دقت د کره کتنې هغه معيارونه او اصول دي چې د کره کتنې په هر ډول کې بايد مراعت شي.

# د اووم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-د کره کتنې نسبي اصول او معیارونه کوم دي؟

۲-د کره کتنې مطلق اصول کوم دي؟

۳-د مطلقیت او نسبیت نظریاتو کې پر کوم یوه ټینګار په کار دی؟

۴-متني کره کتنه کوم مسایل څېړي او معیارونه یې څه دي؟

۵-د سبکپوهنې ساحه پر کومو برخو وېشل کېږي؟

۶-د شکلي کره کتنې ځانګړنې کومې دي؟

۷-ایا یو ادبي اثر پر یو مهال د مطلقیت او نسبیت اصولو په رڼا کې څېړل کېدی شي؟

۸-په کره کتنه کې نړېۍ شموله معیارونه شته؟

۹-د ارستو او اپلاتون د کره کتنیزو نظریاتو ترمنځ توپیرونه کوم دي؟

۱۰-ژبنۍ کره کتنه ادب له کوم لید لوري څېړي؟

# سپارښتنې

- که په دې څپرکي کې د سبکپوهنې د اصولو له مخې پر متن شوی عملي کره کتنه تاسې ته د منلو وړ وه؟، نو علتونه يې وليکئ !
- محصلين دې په خپله خوښه د نظم او نثر يوه ټوټه وټاکي، هغه دې د کره کتنې د يو ډول اصولو په رڼا کې وارزوي او په ټولګي کې دې خپلو ټولګيوالو ته واوروي.

# اتم څپرکی

## د کره کتونکي ځانګړتیاوې

لکه څنګه چې هر علم ځانته خپل اصول، معیارونه او میتودولوژي لري، کره کتنه هم د ادبپوهنې د یوې ځانګړې څانګې او پوهې په توګه ځانګړي معیارونه او اصول لري. کره کتونکی هم د یوه عالم او ادبپوه په توګه مشخص عام او خاص معیارونه لري. که کره کتونکی د کره کتنې لپاره لازم ظرفیت، کیفیت او معیار، ونه لري، نو هېڅوخت سالمه کره کتنه نه شي کولای، د ځانګړتیاوو، وړتیاوو او معیار د نشتوالي په حالت کې کره کتنه له خپل علمي مسیره وځي او خپل پوهنیز خصوصیت له لاسه ورکوي، لکه څنګه چې کره کتنه علم دی، دغسې اجرا کوونکی یا رامنځته کوونکی یې هم باید عالم وي او د علم د خپلې ټاکلې برخې پر ټولو حدودو خبر او واکمن وي. ادبپوهانو د کره کتونکي لپاره یو لړ ځانګړتیاوې او

ځینې خاص صفات ټاکلي دي. هر کتونکی چې دا خصوصیات ولري، کولای شي په تول پوره کره کتنه وکړي؛ له تېروتنو ځان وژغوري، د لیکوال په اثر کې سمون راولي، نیمګړتیاوې یې لرې او لیکوال ته د بریالیتوب مسیر او لاره اسانه کړي. په دې ځانګړتیاوو کې پوهه او بصیرت، عدل او انصاف، ناپېیلتیا، بې تعصبي، پر اصولو ټینګار، زړورتیا، د کره کتنې د ادابو درناوی او ځینې نورې ځانګړتیاوې شاملې دي، دلته به په ترتیب سره پر دې برخو لنډ لنډ بحث وکړو:

## ۱- پوهه او بصیرت:

د کره کتنې په باب دا خبره ثابته ده چې کره کتنه علم دی، نه هنر. کره کتونکی په حقیقت کې عالم دی او لیکوال یا پنځوونکی هنرمند. هغه چاته عالم ویل کېږي چې د پوهې پانګه یا علمي زېرمه ولري. څوک چې ځانته کره کتونکی وایي، د پوهې او بصیرت لرل ورته خورا ضروري دي. کره کتونکی د همدې پوهې په برکت د یوه اثر تیاره او مبهم ګوټونه روښانوي، نیمګړتیاوې یې په ګوته کوي او حل لارې ورته ښیي. د یوه روسي لیکوال (لوناچارسکي) په وینا ((کره کتونکی د شاعر یا لیکوال استاد یا پلار دی، خو که چېرې له کره کتونکي څخه ډېره وړه تېروتنه وشي، نو خبره سرچپه کېږي.))

نو ځکه خو پوهه او بصیرت یا ژورلید د کره کتونکي لپاره یو اساسي توکی دی. کره کتونکی د خپلې پوهې په برکت د یوه اثر د تحلیل، ارزونې او شننې لپاره معیارونه ټاکي. کله چې پر یوه اثر باندې د هغه د تحلیل او شننې لپاره علمي معیارونه تطبیق شي، لیکوال هم ورسره توافق کوي، په دې ډول د ټولنې پرمختګ او د یوه اثر سمون ته لاره اوارېږي.

له پوهې او بصیرت پرته د یو اثر څېړنه او ارزونه په تیارو کې د هدف په نښه کول دي. نه یوازې مطلوبې نتیجې ته نه رسېږي، بلکې معکوس جانبي عوارض هم راټوکوي. د کره کتنې، کره کتونکي او هم ددې عامې پروسې پر وړاندې د مخالف ټوکېدو ته هم لاره اوارېږي. بې پوهې او بصیرته کره کتنه کول اصلاً هېڅ جواز نه لري.

## ۲- عدل او انصاف:

د ژوند په هر ډګر کې د عدل او انصاف ټینګښت د هغې پدیدې د ژوند د دوام او ثبات سبب کېږي. که چېرې د یوې موضوع په حل کې له عدل او انصاف څخه کار وانه خیستل شي، د لنډ وخت لپاره کېدی شي، هغه موضوع ثابته او یا د منلو وړ شي، خو دا ثبات مقاوم او دایمي نه دی. که د یوې ادبي پدیدې په تحلیل، ارزونه او شننه کې هم د عدل او انصاف عنصر کمزوری وي، هغه تحلیل ډېر

دوام نه کوي، په رد کې یې د شنني زیات احتمال راپیداکېږي او همدارنګه ټولو هغو خواوو ته چې په یو نه یو ډول له موضوع سره لېوالتیا لري د منلو وړ نه ګرځي. نو ځکه د کره کتنې اصول کره کتونکي ته توصیه کوي، چې په خپلو تحلیلونو، ارزونو او وروستۍ نتیجه کې له ډېر دقت، عدل او انصاف څخه کار واخلي. که یوه ادبي موضوع له علمي پلوه هم څېړل شوې وي، خو د متواترو دلایلو په لړۍ کې عدالت او انصاف نه وي مراعت شوی، نو بیا هم کره کتنه له ستونزې سره مخامخېږي او کره کتونکي ته هم مشکلات پیداکېدی شي. نو ځکه د پوهې او بصیرت ترڅنګ د عدل او انصاف درلودنه د کره کتونکي یوه ځانګړنه ګڼل کېږي.

## ۳- ناپېیلتیا:

د کره کتونکي یوه بله ځانګړتیا، بې طرفي یا ناپېیلتیا ده. که چېرې کره کتونکي د یوه اثر په ارزونه کې خپله ناپېیلتیا وساتله او خپل شخصي، فکري، عقده یي، سیاسي او نور تمایلات یې د ارزونې په بهیر کې داخل نه کړل، نو ښکاره خبره ده چې د بري پر لوري یې یو ګام پورته کړی دی. ناپېیلتیا ددې زمینه برابروي چې عدالت او انصاف هم تطبیق شي. که چېرې یو کره کتونکی د ناپېیلتیا اصل تر پښو لاندې کوي، نو کولای شي د خپلې پوهې په

زور د يــوه اثــر ښــېگڼې د بــد گڼو کچــې تــه راټيټــې کــړي. د عــام لوستونکي ذهن ډېر نازک دی، هغه د يوه ليکوال او کره کتـونکي پـه شان د يوه اثر په باب هغـومره ژور فکر نـه کـوي، لوسـتونکی يـو اثـر يوازې د خوند او د مالوماتو د زيـاتونې لپـاره لـولي، خـو کـه يـو کـره کتونکی وغواړي، له خپلې پوهې ناسمه گټـه واخلـي، ناپېيلتيـا تـه ژمن نه وي، عدالت هم تـر پښـو لانـدې کـړي، نـو کـولای شـي د عـامو لوستوالو ذهن کږې خواته بوځي. په همـدې خـاطر د کـره کتنـې علـم د کره کتونکي په ځانگړنو او صفاتو کې ناپېيلتيا هم د يو مهـم عنصـر په توگه انگېري او پر هغې ټينگار کوي.

## ۴- ناتعصبي:

له کينې، بغض، تعصب او شخصي غرضونو څخـه ځـان لـرې سـاتل د کــره کتــونکي يــو بــل خصوصــيت دی. تعصــب، عصــبيت چــې د (عصبه) له ريښې سره تړاو لـري، داسـې يـو حالـت دی چـې انسـان پـه کې نورمال نه وي؛ فکري تمرکز يې پرځای نه وي. هر هغـه څـوک چـې عصبي تکليف ولـري، طبعـاً نـاروغ گڼـل کېـږي، عصـبيت يـا تعصـب اکثره وخت د نورو پـر وړانـدې د تـوپيري چلنـد پـه مانـا هـم کـارېږي. تعصبي چلند فکري اساس نه لري، زيات وخت له نامعقول احساس، شخصي اغراضو او ځاني گټو څخـه سـرچينه اخلـي. کـه يـو څـوک پـه

يوه کار کې له تعصب څخه کار اخلي مانا دا چې د تفکر عنصر يې کمزوری دی. يو کره کتونکی که وغواړي د يوه ليکوال يا د هغه د اثر په ارزونه کې له تعصب څخه کار واخلي، هغه کولای شي په يوه اثر کې کوچنۍ نيمګړتيا ډېره غټه وښيي، د اثر په باب د لوستونکي ليدلوري ته هم بدلون ورکړي. دا هڅه نه يوازې د يوه اثر د منفي ارزونې سبب کېږي، بلکې د ليکوال استعداد هم مړاوی کوي، د ليکوال او کره کتونکي ترمنځ د کرکې سبب هم ګرځي، په نتيجه کې د ادبياتو د ودې پر بهير ناوړه اغېز کوي. د ايران يو نامتو کره کتونکی (رضابراهني) وايي: ((د کره کتونکي کار دا نه دی چې بې ځايه ستاينې وکړي او په غرضي ډول د يو اثر بې ارزښته وښيي ، بلکې هغه ادبياتو ته ليدلوري ورکوي، هغه بډايه کوي او له ابتذال څخه يې ژغوري. کره کتونکی بايد د خپل ګټور کار له امله د ادبياتو د نيمګړتياوو په اړه د خلکو ذهن روښانه کړي او د ادبياتو د پنځونې لپاره بايد يو ښه بنسټ کېږدي.)) (۴: ۱۳). موږ په خپله ټولنه کې د کره کتنې په نوم داسې بېلګې لرو چې له سياسي، مذهبي او ان شخصي تعصب څخه يې سرچپه اخيستې. دا ډول کره کتنې د کره کتنې عمومي بهير ته خورا زيان رسوي. د دې ډول کره کتنو، چې د تعصب عنصر په کې شامل و، د يوې عملي بېلګې کيسه به درته وکړم.

((د ډاکټر نجیب الله د حاکمیت پر مهال به په کابل کې د افغانستان د لیکوالو ټولنې، وخت پر وخت د کره کتنې غونډې جوړولې، (د خلکو دیموکراتیک ګوند) د یوه غړي د لنډو کیسو یوه ټولګه چاپ شوې وه، ټاکل شوې وه دا ټولګه کره کتنې ته وړاندې شي. د کره کتنې لپاره د همدې خلک دیموکراتیک ګوند یوه بل غړي دنده اخیستې وه. سره له دې چې لیکوال او کره کتونکی د یوه ګوند غړي وو، خو د یوه ګوند دوو بېلابېلو فرکسیونونو پورې یې اړه درلوده، زړې دښمنۍ او سیالۍ د دواړو ترمنځ ذهني واټن او تعصب رامنځته کړی و. کله چې پر ټولګې ((کره کتنه)) پیل شوه، نو له ورایه د سیاسي تعصب، غچ او نیوکې څرک ترې ولګېد. د کره کتنې ډېرې برخې د سیاسي افکارو تاثیر لاندې وې. په غونډه کې ناست یو شمېر کسان یې پر سیاسي افکارو وویشل، غونډه تاوجنه شوه، یو شمېر ازادو لیکوالو پر (کره کتنې) (کره کتنه) وکړه. غونډه له ستونزو ډکه شوه، ډېره بېخونده او پیکه پایته ورسېده، د لیکوال او کره کتونکي ترمنځ کرکه نوره هم پسې زیاته شوه. زه اوس هم دا دواړه لیکوال پېژنم. له هغې نېټې تر اوسه (ددې اثر تر لیکلو پورې) نږدې (۲۵) کاله تېر شوي، خو بیا هم د هغه (لیکوال) او (کره کتونکي) ترمنځ زړه بداوی دوام لري.))

دغسې کره کتنې چې د تعصب عنصر په کې دخیل وي، کره کتنه له اصلي مسیره اړوي، نو ځکه خو ادبپوهنې د کره کتونکي لپاره دا

ضروري ګڼلې چې په خپل ذهن او فکر کې هېڅ ډول تعصب ته ځای ور نه کړي، له هره ډول تعصب څخه ازاده کره کتنه په حقیقت کې رښتینې کره کتنه ده.

## ۵- پر اصولو ټینګار:

نه یوازې په کره کتنه کې، بلکې د ژوند په هره برخه کې چې اصول او پرنسیپونه تر پښو لاندې شي، توازن له منځه ځي او ګډوډۍ ته لاره اوارېږي. که یو کره کتونکی د کره کتنې پر مهال خپل اصول مراعت کړي، لوستونکو ته ښه نتیجه په لاس ورکوي، لیکوال ترې نه خوابدی کېږي او د ادبیاتو ودې ته هم لاره برابرېږي.

د ارستو په باب دا خبره مشهوره ده، چې پر خپل استاد (اپلاتون) به یې ډېرې نیوکې کولې. ارستو د علم پر اصولو ولاړ سړی و. د حقیقت په لټه کې و، نو ځکه یې د پوښتونکو په ځواب کې ویل چې: ((خپل استاد اپلاتون راباندې ګران دی، خو حقیقت تر هغه هم راباندې ګران دی.)) نو یو څوک چې د حقیقت د اصولو په پام کې نیولو سره هڅه، پلټنه او نیوکه کوي، پر چا ډېر بد نه لګي. خپله لیکوال هم د کره کتنې پر اصولو پوهېږي. اصول او پرنسیپونه د علمي لارښوونو په رڼا کې تنظیمېږي او ټاکل کېږي. کله چې لیکوال وګوري، کره کتونکی د علمي اصولو په رڼا کې کره کتنه

کوي، حساسیت ورسره نه ښیي، دا ډول علمي کره کتنه تر هر چا زیا ته په خپله د لیکوال په ګټه ده، نو ځوک نه غواړي چې ګټه له لاسه کړي. کره کتنه پر خپلو اصولو ټینګار کوي، کره کتونکي ته په کار دي چې د کره کتنې پر مهال دا اصول په پام کې ونیسي، د کره کتنې د نورو اصولو ترڅنګ، همدا پوهه، عدل او انصاف، ناپېیلتیا، بې تعصبي، زړورتیا او نور چې د کره کتونکي د شخصیت رغوونکي توکي دي، دا ټول په حقیقت کې د کره کتنې اصول هم دي، نو که یو کره کتونکی غواړي عادلانه کره کتنه وکړي، بایده دي چې د کره کتنې پر اصولو ټینګار وکړي او هغه عملي کړي.

## ۶- زړورتیا:

انتقاد، ګوتنیونه، نیوکه که په هر نیت وي، په واقعیت کې یې هغه څوک کولای شي چې یو ډول جرئت ولري، نیوکې که مثبتې هم وي، په لومړي ګام کې د مقابل لوري یو ډول حساسیت راپاروي. نیوکې هر ځای سختې وي، په تېره بیا په هغو ټولنو کې چې د تحمل کلتور په کې عام شوی نه وي او د نیوکو ډېره اوږده سابقه ونه لري. په ختیځو ټولنو په تېره بیا زموږ په ټولنه کې د تشدد په اندول د تحمل کلتور ډېر عام نه دی. نو ځکه خو دلته د سمون په نیت نیوکه هم په خپله سمونچاري ته د دښمنۍ مانا لري. دلته دا سې مدبرو او مفکرو اشخاصو ته اړتیا ده، چې د فکر او تدبر ترڅنګ جرئت او

زړورتیا هم ولري. په لومړي ګام کې زړورتیا یو څه ستونزه راولاړوي، خو وروسته یې مېوه خوږه وي. که یو څوک د یوچا پر ټولو نیمګړتیاوو ، په دې خاطر چې حساسیت راولاړ نه شي، سترې پټې کړي، نو د نیمګړتیاوو تسلسل به همداسې وغځېږي. داسې هم نه ده چې په هر ځای کې باید له زړورتیا څخه کار واخیستل شي. زړورتیا هغه وخت یو سړی هدف ته رسي چې له هغې سره معقول تفکر، منطق او پوره علم ملګری وي. کله کله داسې هم وي چې یو لیکوال یا کره کتونکی د یوه اثر پر ټولو نیمګړتیاوو خبر وي، خو د ویلو جرئت یې نه لري، د بې جرئتۍ په وجه نیمګړتیا همداسې پاتې شي. دلته د پوهې او جرئت ترمنځ یو منطقي انډول په کار دی، د استاد الفت په نظر کله کله ډېره پوهه وهم تقویه کوي او ان یو څوک د مضر احتیاط درجې ته پورته کوي. کره کتونکي ته زړورتیا په کار ده، خو معقوله زړورتیا، داسې زړورتیا چې د علم او منطق په ګانه سمبال وي. زړورتیا داسې یو عنصر دی چې که کره کتونکی د کره کتنې نور ټول عناصر ولري، خو چې دا عنصر ورسره نه وي، له هغو یوه څخه هم کار نه شي اخیستلای.

## ۷- د کره کتنې د ادابو درناوی:

یوه کره کتونکي ته په کار دي چې د کره کتنې د اصولو او ادابو درناوی وکړي. که کره کتونکی په خپله د کره کتنې اصول او اداب مراعت نه کړي، نو نورو تطبیقوونکو څخه دې هم د هغو د منلو هیله

نه کوي. زموږ په ټولنه کې اکثره وخت داسې وي چې موږ له نورو څخه د قوانینو او اصولو د تطبیق هیله کوو، خو خپله ورته غاړه نه ږدو، همدا علت دی چې د وینا والو او نورو خلکو ترمنځ واټن رامنځته کېږي او پر ویناوالو د باور کچه راټیټېږي. د کره کتنې په ادابو کې د سپکو سپورو کلمو د کارونې جواز نه شته، د چا تحقیر او توهین لپاره ځای نه شته، یوازې د علمي اصولو له لارې چې د ژبې ټول مهارت او خوږلني ورسره ملګري وي، د مفهوم انتقال ضروري دی. ژبنی تفاهم او د خوږو کلمو کارونه د کره کتنې د ادابو یوه برخه ده، د مقابل لوري د شخصیت خوندیتوب بل عنصر دی چې باید پام ورته وشي.

که چېرې په یوه کره کتنه کې د هغې اداب مراعت نه شي، نو طبیعي خبره ده چې د کره کتنې تطبیقي اړخ ته سخت زیان رسي، نو کره کتونکي ته په کار دي چې د کره کتنې ادابو ته دقیق پام وکړي، د همدې ادابو مراعتول په حقیقت کې د کره کتونکي د شخصیت یوه برخه جوړوي.

د پورتنیو ځانګړنو ترڅنګ ځینو ادبپوهانو، ژبني مهارت، تجربه، عاطفي مشارکت، فردي اصالت، پلټنه، ذهني روښانتیا او نورې ځانګړتیاوې هم د کره کتونکي لپاره ضروري ګڼي او دا ممیزات د هغه د کار په ښه والي کې موثر ګڼي.

# د اتم څپرکي لنډیز

لکه څنګه چې کره کتنه یو علم دی او هره پوهه ځانته خپل معیارونه لري، دغسې د یوه عالم په توګه کره کتونکي ته هم ځینې خاص معیارونه او ځانګړنې په کار دي.

د کره کتونکي د ځانګړنو له جملې څخه یوه دا ده چې دی باید پوهه ولري او په خپله څانګه کې تخصص او تجربه ولري، بې پوهې کره کتنه ممکنه نه ده. له پوهې او بصیرت پرته د یوه اثر څېړنه او ارزونه اصلاً په تیارو کې د هدف په نښه کول دي.

عدل او انصاف د کره کتونکي بله ځانګړنه ده. که یوه ادبي موضوع له علمي پلوه هم څېړل شوې وي، خو که د متواترو دلایلو په لړۍ کې په کې عدالت نه وي مراعت شوی، نو کره کتنه له ستونزې سره مخامخېږي.

ناپېیلتیا او بې طرفي د کره کتونکي بله ځانګړنه ده، چې که کره کتنه کې مراعت نه شي عدالت زیانمنېږي او په نتیجه کې عادلانه کره کتنه نه رامنځته کېږي.

کره کتونکي ته په کار دي چې د کره کتنې پر مهال ځان له هر ډول تعصب، کینې او شخصي بغض څخه وژغوري.

کره کتونکی باید پر خپلو اصولو ټینګار وکړي او د کره کتنې پر مهال هغه عملي کړي. که د کره کتنې اصول مراعت شي، لوستونکو ته ښه نتیجه په لاس ورکوي، لیکوال ترې نه خوابدی کېږي او د ادبیاتو ودې ته هم لاره برابرېږي.

کره کتونکی باید زړور او باجرئته وي، که یو کره کتونکی د کره کتنې پر نورو ټولو اصولو برابر وي، خو چې د هغو اصولو د تطبیق جرئت ونه لري، اصلاً کره کتنه نه شي کولای، نو جرئت د کره کتونکي لپاره خورا ضروري دي.

که یو کره کتونکی دا ځانګړنې ونه لري، هغه د یوه کره کتونکي په توګه اصلاً پېژندل کېدی نه شي.

# د اتم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-له پوهې پرته کره کتنه ولې ممکنه نه ده؟

۲-ایا هر پوهاند کره کتنه کولای شي؟

۳-که په کره کتنه کې له عدل او انصاف څخه کار وانه خیستل شي څه به وشي؟

۴-ناپېیلتیا په کره کتنه کې څه رول لري؟

۵-په کره کتنه کې تعصب د هغې روغتیا ته څه زیان رسوي؟

۶-د سالمې کره کتنې لپاره اصول څومره موثر دي؟

۷-که یو کره کتونکی د کره کتنې ټول معیارونه او ځانګړنې ولري، خو چې جرئت ونه لري، کره کتنه کولای شي؟

۸-د کره کتنې د ادابو مراعتول د کره کتونکي او لیکوال ترمنځ د څه ډول اړیکو سبب ګرځي؟

۹-ایا زموږ په ټولنه کې کره کتونکی پورتنیو ځانګړتیاوو ته پاملرنه کوي؟

۱۰-ایا دا سې لارې چارې شته چې کره کتونکی د کره کتنې اصول او ځانګړنې عملي کړي؟

# سپارښتنې

- محصلین دې د کره کتونکي ځانګړنو څخه په خپله خوښه یوه ځانګړنه غوره او پر هغې دې تحلیلي لیکنه وکړي.
- محصلین دې پر یادو ځانګړنو سربېره ځینې نورې ځانګړنې هم په ګوته او خپلو ټولګیوالو ته دې په لیکني او یا ګړنـي ډول په ټولګي کې تشریح کړي.

# نهم څپرکی

## د کره کتنې ګټې، د ادبیاتو او نورو علومو په وده کې د هغې اغېز

کره کتنې د ادبپوهنې د یوې مهمې څانګې او د یوه تحلیلي علم په توګه د بشري علومو په وده کې خپل رول لوبولای دی. له هرې علمي څانګې سره یې چې کره کتنه ملګرې نه وي او پر هغې څانګې بیا کتنه ونه شي، هغه علمي څانګه مطلوبې نتیجې ته نه رسېږي او له ګڼو تېروتنو سره مخامخېږي. کره کتنه په همدې نیت کېږي چې د نیمګړتیاوو او تېروتنو مخه ونیسي. هر هغه لیکوال یا عالم چې د کره کتنې له محوره وځي او یا کره کتنې ته غاړه نه ږدي، دا مانا لري چې نه غواړي خپل کړی کار یا اثر یې اصلاح شي. کره کتنه علم دی، علم له چا سره شخصي دښمني، کینه او عداوت نه لري، البته کېدی شي کره کتونکی کله کله د شخصي تمایلاتو، غرضونو او مرضونو

تر اغېز لاندې راشي، خو که علم تر دې اغېزو لاندې راغی، هغه نو بیا علم نه دی. د علم او هنر ترمنځ تو پیر په همدې کې دی، چې علم شخصي تمایلات، عواطف، احساسات، کینې او عداوتونه نه مني او یا دې پدیدو ته په کې ځای نه شته. هغه یوه پېښه، پدیده او یا موضوع له دې اړخونو نه څېړي، خو هنر بیا ، چې ادبیات یې هم یوه برخه ده، یوه پدیده د عواطفو او احساساتو له لیدلوري څېړي. نو کره کتنه هغه علم دی چې د یوه علم په توګه یې ګټه هرې برخې ته متصوره ده. دلته غواړو د کره کتنې د عملي او نظري ګټو په باب او دا چې د علم او ادب د ډګر کومو خواوو ته یې څه ډول ګټه رسېږي؟ پر هرې برخې لنډه لنډه رڼا واچوو:

## ۱- عامو لوستوالو ته یې ګټې:

کله چې پر یوه هنري اثر، لیکنې وي که ګړنې یا تصویري، لکه هنري فلم، ډرامه، ستېج ډرامه یا اورېدنې وي، لکه راډیويي ډرامه او یا هم نور، نو که کره کتنه پرې ونه شي، د ډېرو تېروتنو د پېښېدو امکان شته، که کره کتنه تر خپراوي دمخه وشي، نو ګټه یې دا ده چې تر خپرېدو دمخه د تېروتنو مخنیوی کېدی شي، خو که یو اثر نشر ته چمتو وي او د کره کتنې د وړاندیز شویو نظریو د تطبیق امکان په کې نه وي، نو که د نشر پرمهال کره کتنه هم ورسره خپره شوي، له لوستونکي، اورېدونکي او یا هم کتونکي سره ډېره مرسته کولای شي، چې د اثر د خپرېدو پر مهال د هغه په باب سم

قضاوت وکړي. یوه لوستوال ته د یو اثر په باب د کره کتنې ګټه داده چې ((د لوستونکي د زیات وخت د ضایع کېدو مخه نیسي او هغه اثر چې په څو ورځو کې یې نه شي لوستلای، د کره کتنې د لوستنې له لارې یې د ډېر ژر د محتوا پر روح او د لیکوال په موخه او غرض پوهېدلای شي. بل دا چې د اثر په اړه د ګټورو معلوماتو په ورکولو او یا د تیاره ګوټونو د توضیح او تشریح له لارې، د لوستونکي معلوماتي پانګه زیاتوي او د پوهې سطحه یې لوړوي، سربېره پر دې د اثر ادبي ارزښتونه درک او له ښو او بدو اړخونو یې خبرېږي. )) (۲۲: ۳۲-۳۳).

کره کتنه یو عام لوستونکی، کتونکی، لیدونکی یا اورېدونکی له ګڼو تېروتنو ژغوري او د یوه اثر په باب یې قضاوت اسانه کوي. په تېره بیا هغه اثار چې د حقوقي، مذهبي، تاریخي او نورو مسایلو په باب لیکل شوي دي. په حقوقي اثارو کې د یوې کامې(،) ، ندايي (!) او یا هم ټکي (.) بېځایه کارونه ستر حقوقي پرابلمونه پیدا کولای شي. د مذهبي اثارو او افکارو په باب لیکلي اثار او یا هم په هغو کې جزیي تېروتنه لوی عقیدوي بحران ته کولای شي. په همدې خاطر د مذهبي مسایلو په تشریح، توضیح او تفسیر کې خورا دقت په کار دی، حتی یوه چاپي یا ژبنۍ تېروتنه هم کولای شي په ټولنه کې لوی بحران رامنځته کړي. په هنري او ادبي اثارو کې تېروتنه د اثارو ښکلا ته زیان رسوي؛ ډېر غټ ټولنیز بحران نه راټوکوي، خو

په تاريخي، مذهبي، سياسي او حقوقي اثارو کې تېروتنه د لوی ټولنيز او فکري کړکېچ سبب کېږي. د ليکوالو له خوا تېروتنه کېدی شي قصدي وي او يا هم نا شعوري، خو دا د کره‌کتونکي دنده ده چې تېروتنې يې سمې کړي، که کره کتنه د يو اثر تر خپرېدو دمخه وشي، نو ډېره ښه ده، خو دا کار تل ځکه ممکن نه دی چې يو اثر خپور نه شي، نو څنګه به د کره کتونکي او لوستوالو لاس ته ورشي. د اثارو تر خپرېدو وروسته کره کتنه ډېره باب ده، کله چې يو لوستوال يو اثر لولي، نو که همهاله د هغه اثر په باب شوې کره کتنه هم ولولي، نو په اثر کې له شويو تېروتنو څخه به خبر شي او په يوه اثر کې هغه شعوري او ناشعوري تېروتنې، چې کېدی شي د لوستوال ذهنيت کوږ او بلې خواته بوځي، له هغو څخه به خبر شي. کله کله داسې هم وي چې يو لوستوال په بشپړ ډول يو اثر نه وي لوستی، يا يې وخت نه وي پيدا کړی، نو که د هغه اثر په باب سالمه او عادلانه کره کتنه ولولي، نو داسې ده لکه نږدې ټول اثر يې چې لوستی وي. اوسنۍ زمانه، چې وخت په کې رښتيا هم لکه سره زره دی، د اوږدو رومانونو کتنه او لوستنه سخت کار دی، پر هغو باندې شوې کره کتنه او يا د هغو پر شکل او محتوا شوې کره کتنه ددې سبب کېږي چې لوستونکي ته د هغو اثارو په باب ذهنيت ورکړي. کله کله کره کتونکی په خپله کره کتنه کې لوستونکو ته د يوه اثر د هغو برخو په باب چې مانيز يا شکلي مشکلات لري، توصيه کوي چې د

((احتیاط په قید ) سره یې ولولي. تش همدا ټکی هم لیکوال ته دا پیغام رسوي، چې په اثر کې څه مشکلات شته، همدا یو ترکیب دا پیغام رسوي چې لوستونکی د اثر لوستو ته ډېر ځیر شي او په اثر کې پر راغلي محتوا ژر باور ونه کړي. تر هغه پورې چې د دې اثر د تحلیل او ارزونې لپاره د کره کتنې نور مواد ترلاسه شي، لوستونکی هوښیاروي. کره کتنه د یوه اثر روح، محتوا او بڼه ټول تشریح کوي. لوستونکي ته د دې زمینه برابروي چې د مبهمو او پېچلو ټکو د مانا تل ته ورکښته شي، او هغه څه چې د لیکوال هدف دی، هغه ته په اسانۍ سره لاره پیدا کړي. کره کتوکی په حقیقت کې لوستونکي ته داسې یوه غذا تیاروي چې له هر اړخه پاکه، صافه، بې خطره او بې ضرره وي. داسې لکه یو اشپز، چې ډېرې ښې وریجې تیارې کړې وي، ښې خوندورې، خو بیا هم کومه شګه ترې تېره شوې وي، کره کتونکی دې شګې ته هم متوجه دی او لوستونکي ته ښيي چې ګوره د خوندور پلو په منځ کې یوه نیمه شګه هم شته، احتیاط کوه چې د خوراک پر وخت دې تر غاښ لاندې نه شي.

## ۲- لیکوالو ته یې ګټې:

کره کتنه د عامو ګټو ترڅنګ ځینې خاصې ګټې هم لري. د خاصو ګټو په جمله کې یې یوه ګټه همدا خپله لیکوال ته ده، په حقیقت کې که لیکوال لږ هم له زغم څخه کار واخلي، نو د کره کتنې تر ټولو زیاته ګټه خپله لیکوال ته رسېږي. د کره کتنې په واسطه د لیکوال

اثر صفا کېږي، ښکلی کېږي، نیمګړتیاوې یې له منځه ځي او ټولنې ته یو پوخ اثر وړاندې کېږي. کره کتنه کولای شي لیکوال له ډېرو سترو تېروتنو وژغوري. د یوه اثر د ښه والي او پوخوالي نېکنامي او ګټه لیکوال ته منسوبېږي، خو د سمون چارې او زیار یې بل څوک ګالي. کره کتونکی او کتونکی په حقیقت کې هغه پټ خدمتګار دی چې څوک یې نه ویني، خو وړیا کارونه او خدمتونه ترسره کوي. د کره کتنې په حالت کې یو لیکوال د خپل اثر تر چاپ او خپراوي وروسته هم خپلو تېروتنو ته متوجه کېږي او د بیا چاپ په حالت کې هغه سموي او یو بشپړ اثر ټولنې ته وړاندې کوي.

کره کتنه لیکوال ان له سترو عقیده یي، مذهبي، ژبنۍ او ان ملي تېروتنو ژغوري، سره له دې چې لیکوال نه غواړي داسې تېروتنې وکړي، خو کله کله داسې پېښېږي، نو که د یوې لیکنې تر شا د کره کتنې وروستی فلتر موجود وي، ددې ډول تېروتنو مخه نیول کېږي. کېدی شي په دې برخه کې یو دوه عملي بېلګې او تجربې هم وړاندې کړو: ((یو وخت ما (هیله) مجله چلوله، په دې مجله کې مو لیکني او ژبني معیار ته ډېره پاملرنه کوله. د لیکنو په محتویاتو کې مو غرض نه درلود، خو ژبنی او لیکنی معیار مو پر ټولو لیکنو تطبیقاوه. له همدې کبله لیکوالو زموږ له خوا، په لیکنو کې د ژبني او لیکني سمون په اړه ډېر غبرګون نه ښود، خو بیا هم ځینې لیکوال داسې وو چې شدید غبرګون یې ښوده.

يوه ورځ يو ملا صيب، چې نوی ليکوال شوی و، مجلې ته يوه ليکنه راولېږله. ((اسلام د افراط او تفريط په منځ کې)). ليکنه که څه هم د محتوا له پلوه بډايه وه، خو ګڼې املايي او انشايي تېروتنې يې لرلې. دا ليکنه هم په پښتو کې د معمول ملايي نثر په بڼه، چې اکثره په کې مبتدا او خبر وړاندې وروسته کېږي، ليکل شوې وه. نوي ليکوال پر املايي تېروتنو سربېره، ګرامري تېروتنې هم کوي. (له، د، پر، په، سربېره، برسېره، تر دې، له دې) او داسې ګڼ شمېر نور عناصر، چې د يوې جملې د رغښت اساسي توکي ګڼل کېږي، سم نه کاروي. د ملاصيب په ليکنه کې هم دا ډول تېروتنې ښې ډېرې وې. موږ چې معمولاً د هر ليکوال پر ليک د پښتو د معياري املا او انشا قوانين تطبيقول، د ملاصيب پر ليکنه مو هم دا عمليه پلې کړه. په پايله کې د ملا صيب په ليکلي متن کې له شکلي پلوه يو څه بدلون راغی، خو محتوا يې همغه وه، چې ملا صيب غوښتې وه او يا د هغه هدف و. تر هر څه دمخه مو لومړی سرليک سم کړ. ((اسلام د افراط او تفريط په منځ کې.)) مو ((اسلام د افراط او تفريط ترمنځ)) باندې واړوه. څو ورځې وروسته ملاصيب دفتر ته تشريف راوړ او شديد غبرګون يې وښود چې تاسې ولې زما په ليکنه کې لاسوهنه کړې؛ ما يو شی ليکلی تاسو بل شوی ترې جوړ کړی دی. موږ ورته وويل لږ ارام شه ! ټولې ستونزې به په ګډه حل کړو. موږ ملاصيب ته وويل، چې ستاسو ليکنه د محتوا له مخې خورا غني

وه، ایا تاسو نه غواړئ چې ستا لیکنه لکه څنګه چې ستا هدف و، همغسې خلکو ته وړاندې شي. ملا صیب وویل: ولې نه، مورږ وویل مورږ خو همدا کار کړی دی. هغه وویل څنګه؟ عنوان مو ولې بدل کړی؟ مورږ ورته وویل: ستا هدف دادی چې اسلام د عدالت او اعتدال دین دی او هېڅ ډول افراط او تفریط په کې نه شته، نه هم افراط او تفریط ته اجازه ورکوي او دا دواړه د اسلام له نظره مردود دي، هغه وویل، بالکل: مورږ وویل: دلته خو جملې د ترکیب له مخې کاملاً ستاسو د هدف او مقصد معکوسه مانا ورکوي، مانا دا چې خدای مه کړه، اسلام، داسې دین دی چې هم په کې افراط دی او هم تفریط یا هم اسلام په افراط او تفریط او یا د هغو دواړو په منځ کې دی. ملاصیب وویل استغفرالله زما هدف کاملاً ددې برعکس دی. مورږ ورته وویل: اوسنی جوړښت یې ستاسو د اصلي مفهوم افاده کوي. (اسلام د افراط او تفریط ترمنځ) دا جمله دا مانا ورکوي چې اسلام داسې یو دین دی چې د افراط او تفریط ترمنځ یوه منځنۍ او معتدله لاره تعقیبوي. خو هغه ستاسو په بل ترکیب کې یوازې (په منځ کې) ترکیب د ټولې جملې هدفمنه مانا سرچپه کړې ده. (په منځ کې) دا مانا ورکوي لکه یو څوک، شی یا شیان چې د یو بل شي په منځ کې وي. یو سړی یا ډله د سیند یا سیندونو په منځ کې دي، د ډوبېدو احتمال یې شته، خو یو څوک یا ډله د سیند یا سیندونو ترمنځ دي، دا مانا ورکوي چې په یوه ټاپو کې دي، یا د سیند او

وچې ترمنځ دي، د ډوبېدو او له منځه تلو هېڅ خطر يې نه شته، يو سرې د اور اورونو په منځ کې دی، ډېر سخت حالت دی، خو سرې د اورونو ترمنځ دی، د مرګ له خطره بچ دی، نو دلته يوازې (په منځ کې) او (ترمنځ) ترکيب، مانا ته دومره بدلون ورکولای شي، نو کله چې مو ملاصيب ته وويل، ستا هم هدف نېک و او هم محتوا ډېره خوږه وه، خو کوم شکل چې ستاسو د خپل مقصد د افادې لپاره کارولی، هغه شکل يا ترکيب ستا محتوا ته سل په سلو کې زيان رسوه، نو ځکه موږ په کې تغير راوست، ملاصيب توبه وويستله استغفرالله، زه په دې ليکنه نږدې کفر ته پورته شوی وم، خدای دې درسره ښه وکړي چې زما په ليکنه کې دې لاس وهلی.)) تر هغه وروسته ملاصيب موږ سره د پوره قلمي همکارۍ ژمنه وکړه او موږ ته يې واک راکړ، چې د ليکنې په شکلي بڼه کې هر ډول بدلون راوړلای شو. دا د يوه اثر تر چاپ دمخه د کره کتنې عملي بېلګه وه چې ډېره ګټه يې خپله ليکوال ته رسېدلې، لوستونکي هم له اصلاح شوې ليکنې خوند اخيستی، خو هغه چا چې د دې ليکنې په سمون کې ونډه اخيستې، هغه تر دې ليکنې پورې د عامو لوستونکو له نظره پټ پاتې شوی دی. يوه بله عملي بېلګه به هم وړاندې کړو. په همدې (هيله) مجله کې يوه ورځ يوه ليکنه راغله، ليکنه د (مستورې شال) په باب. وه(مستوره شال) د افغانستان يوه تکړه ښځينه ليکواله او شاعره وه. په اويايمو لمريزو کلونو کې يې له دې

نړۍ خپل ابدي سفر وکړ. یوه لیکوال د هغې په اړه یوه لیکنه راولېږله: (( د مستورې شال غمجنه مړینه ) ). په دې لیکنه کې که څه هم محتوایي او انشیایي تېروتنې نه وې، خو دا ډول عنوانونه دومره تکراري او سولېدلي دي، چې نور یې د کلیشې بڼه خپله کړې او لوستونکو ته ډېر خوند نه ورکوي. موږ د دې لیکنې سرلیک بدل کړ: (( مستوره د مرګ په شال کې ) ). دا عنوان هم اهنګین شو، هم نوی شو، هم یې مانا ښکلې شوه. (مستوره ) نوم دی او (شال ) تخلص، خو دلته (مستوره ) د (مرګ ) په (شال ) کې دا سې مستوره شوه؛ مرګ د انسان لپاره پرده او پوښ دی، مرګ د دې پر ده شوه او جملې عاطفي مانا پیدا کړه. دا ترکیب تر هغه اولي جوړښت ډېر خوږ او عاطفي و. تر چاپ وروسته ډېرو لوستوکو دا سرلیک خوښ کړی و.

ډېرو کسانو راته وویل، چې موږ دا لیکنه یوازې د عنوان په خاطر ولوستله، لوستونکو فکر کاوه چې خپله اصلي لیکوال دا عنوان غوره کړی دی. خپله لیکوال له ما څخه ډېره مننه وکړه چې ما یې د لیکنې عنوان ښکلی کړی دی. په دې ډول تر چاپ دمخه کره کتنه او یا په ټولیز ډول کره کتنه لیکوال ته څومره موثره ګټه رسوي. د یو اثر د ښېګڼې امتیاز تر ډېره حده لیکوال ته ځي، خو د سمون د زحمت بار پر کره کتونکي پربوزي، خو دې سره سره بیا هم کم لیکوال دې ته حاضرېږي، چې د کره کتونکو ټولې خبرې ومني. اصلي خبره دا

وي چې يوه ليکنه يا يو اثر د يو ليکوال لپاره داسې وي لکه د هغه خپل اولاد. د يوه اولاد تولد، روزنه او پالنه د مور او پلار خورا زحمت غواړي، هر چاته خپل ماشوم ښکلی او بې عيبه ښکاري، ځوک چې د چا د ماشوم د عيب او بدرنګۍ په باب خبرې او قضاوت کوي، ډېره سخته خبره ده چې مور او پلار يې تولې خبرې ومني، ليکنه او يو اثر هم همداسې دی، ليکوال هغه په ډېر زحمت، د سختو عاطفي او ان ستونزمنو فکري شرايطو تر چتر لاندې تولې وي، هغه ته خپل زحمت او کار ډېر ارزښتناک ښکاري، کله کله ليکوال دومره ستړی وي او پر خپل اثر يې دومره زحمت ګاللی وي، چې د چا د خبرو د اورېدو او سېله هم نه لري، نو ځکه د نقد او ان سالمې کره کتنې پر وړاندې هم غبرګون ښيي. زه د يوه مجلې د ايډېټر په توګه عملاً له ګڼو داسې ستونزو سره مخامخ شوی يم چې ليکوالو په کې منفي غبرګون ښودلی، نو په دې خاطر يو ځل مجبور شوم، د (ليکوال)، (لوستونکي) او (ايډېټر) يا کتونکی په نامه يوه ليکنه وکړم او په هغه کې هغه ټول مسير تشريح کړم، چې دا درې کته ګوری خلک ورسره مخامخ دي. په دې ليکنه کې راغلي چې د يوې ليکنې د ښه والي امتياز ليکوال ته راجع کېږي، محتوا يي خوند او لذت يې لوستونکي ته، خو د سمون زيار او زحمت يې ټول د کتونکي، بيا کتونکي او کره کتوکي پر غاړه وي. دلته کره کتونکی د زحمت هغه قرباني دی، چې په امتياز کې شامل نه دی،

خو په مسولیت کې ورګډ دی، نو په لنډیز سره ویلای شو، چې کره کتنه تر ټولو زیاته خپله د لیکوال په ګټه ده او بیا لوستونکو ته !

## ۳- ادبیاتو ته یې ګټې:

کله چې د ادبیاتو له تعریف سره مخامخېږو، نو بېلابېل تعریفونه مخې ته راځي. نه پر یوه تعریف د نظر توافق شته او نه هم پر بېلابېلو تعریفونو، خو په ټولو کې داسې مشترک ټکي شته چې د ادبیاتو محتوا او ځانګړتیا په کې ښکاره کېږي. د ادب د کلمې د ریښې په باب هم اختلاف شته، دا چې دا کلمه څنګه د جامدو شیانو له شکل څخه معنویاتو ته را انتقال شوه، په دې کې هم د نظر اختلاف شته، یو روایت داسې هم دی چې پخوا یې د مثمرو ونو نامثمر شاخونه له منځه وړل چې مثمرو شاخونو ته د ودې لاره اواره شي، ادبیات یې هم یوازې همغه کلام ته وایه چې سپوره، سپکې او ستغې کلمې په کې نه وې، یوازې خوږې، پستې او داسې کلمې په کې پاتې کېدې چې د انسان پر ذهن، فکر او زړه ښې لګېدې. طبیعي خبره ده چې له سپوره څخه د ناسپوره، له ترخو څخه د خوږو کلمو جلا کېدل اسانه کار نه دی. د لیکوال تر څنګ د کره کتونکي مرستې ته هم اړتیا ده.

کره کتنه تر ټولو د مخه خپله لیکوال دې ته متوجه کوي چې د ادبیاتو په پنځونه کې له ډېر دقت څخه کار واخلي، لیکوال په خپله

په حقیقت کې کره کتونکی شي، مخکې تر دې چې لیکنه یې د کره کتونکي تر نظره ورسي، خپله یې په سمون کې برخه اخلي. کره کتنې په برکت ژبې ته یو شفاف او ګټور ادب وړاندې کېږي، کره کتنه ادبیات له انحرافه ژغوري او لوستونکو ته همغه برخه رسېږي چې نیمګړې او ناګټورې برخې یې ترې لرې شوې وي. کره کتنه د یوه علم او ادبیات د یوه هنر په توګه دواړه یو بل سره نږدې اړیکي لري؛ کره کتنه د ادبیاتو د فلتر کولو او شفافولو یوه ښه وسیله ده، که کره کتنه نه وي، موږ نه شو کولای ټولنې ته ښکلي ادبیات ډالۍ کړو، په دې حالت کې د عادي خبرو او ادبیاتو ترمنځ پولې له منځه ځي. که کره کتنه وي هغه برید چې اوس د کره کتنې د شتوالي له امله د ادبیاتو او عادي خبرو ترمنځ رامنځته شوی، هغه به له منځه لاړ شي، د ادبیاتو هنري جوهر به کمزوری شي او د ادبیاتو اساسي هدف (ښکلا پنځونې) ته به زیان واوړي. نو همدا کره کتنه ده چې ادبیات یې د یوه ژبني هنر په توګه د نا ادبي کلام له ورګډېدو څخه ژغورلي دي.

## ۴- د پوهې پراختیا ته یې ګټې:

کره کتنه یو علم دی او علم همغه څه ته وایي، چې پر تجربې ولاړ وي. پوهه د نورې پوهې د خدمت او پرمختیا سبب کېږي، نن چې نن کوم حد ته رسېدلې، دا د علم او د اوږدو تجربو د تسلسل برکت دی. علم په کره کتنه پخېږي، که پر یوه علم او تجربې، کره کتنه او

بیا کتنه ونه شي، هغه د اثبات او علم پړاو ته نه رسېږي. علم خپله ددې اجازه ورکوي چې دی دې بیا بیا تجربه شي، کره کتنه دې پرې وشي تر هغه پورې چې یو تجربه یې او واقعي حیثیت خپل کړي. که کره کتنه نه وای، علم دومره پراختیا نه موندله. د پوهې هرې برخې ته کره کتنه په کار ده. هم ټولنیزو علومو او هم ساینسي علومو ته. لکه څنګه چې یو ځل د مخه مو یادونه وکړه، د (ارسطو) په باب دا خبره ډېره مشهوره ده چې تل به یې پر (اپلاتون) نیوکې کولې، چا ورته وویل چې اپلاتون دې استاد دی خفه به شي، ارستو ورته وویل: ((اپلاتون راباندې ګران دی، خو علم او حقیقت راباندې تر هغه هم ګران دی.)) دې خبرې کې ډېر غټ مفهوم پروت دی. اپلاتون هم د ارستو په نیوکو نه خفه کېده. د (سقراط) د علم فلسفه هم پر پوښتنو او ګروېږنو ولاړه وه، تر هغه به یې یو انسان پوښته چې هغه یو واقعیت ته ورسوي. سقراط د مرګ تر بریده ورسېد، خو د ټولنې د سمون لپاره یې له کره کتنې ډډه ونه کړه. د سقراط قرباني د علم د پراختیا سبب شوه. د (ګالیله) په ګډون د نړۍ ډېر پوهان د خپلې کره کتنې او تېز نظر له امله قرباني شوي، خو د خپلې قربانۍ په برکت یې علم ته پراختیا ورکړې ده. پر هر عالم چې د بل عالم له خوا کره کتنه شوې، هغه خپلو تېروتنو ته متوجه شوی، د همدغه ټکر او لاربښوونې په نتیجه کې، نوي فکرونه او نوې تجربې راټوکېدلې او علم لا پسې پراختیا موندلې ده.

# د نهم څپرکي لنډيز

کره کتنه نه يوازې د ادبياتو د پرمختيا لپاره يوه ګټوره وسيله ده، بلکې د پوهې او د ژوند د نورو ډګرونو د ودې لپاره هم يوه ګټوره وسيله ده.

کره کتنه د يو اثر د لوستلو لپاره تر ټولو دمخه لوستوالو ته ګټه رسوي. د لوستونکو د زيات وخت د ضايع کېدو مخه نيسي، لوستونکي په اسانۍ سره د يوه اثر پر روح او محتوا پوهېږي، لوستونکي له انحرافه ژغوري، د هغوی معلوماتي پانګه زياتوي او هغو له تېروتنو ژغوري.

ليکوال ته يې ګټه دا ده چې د هغه اثر ښکلی او صفا کوي، نيمګړتياوې يې له منځه وړي او ټولنې ته يې يو پوخ اثر وړاندې کوي. کره کتنه ليکوال ان له سترو عقيده يي، مذهبي، ژبنۍ، علمي او ملي تېروتنو ژغوري. کره کتنه ليکوال دې ته متوجه کوي چې د ادبياتو په پنځونه کې له ډېر دقت څخه کار واخلي.

کره کتنه ادبیات له انحرافه ژغوري او لوستونکو ته یې همغه برخه رسېږي چې نیمګړې او ناګټورې برخې تړې لرې شوې وي. کره کتنه د یو علم او ادبیات د یوه هنر په توګه یو بل سره نږدې اړیکي لري. کره کتنه د ادبیاتو د فلتر کولو او رښولو یوه ښه وسیله ده. که کره کتنه نه وي، موږ نه شو کولای، ټولنې ته ښه ادبیات وړاندې کړو.

په دې حالت کې د عادي خبرو او ادبیاتو ترمنځ پولې له منځه ځي.

کره کتنه د یوه علم په توګه د نورو علومو د پرمختګ سبب کېږي. علم پر تجربه ولاړ دی. که پر یوه علم څو ځله کره کتنه ونه شي، سمون نه رامنځته کېږي. د همدې کره کتنې له کبله د تجربې اړتیا پیدا کېږي او د تجربې د تکرار په نتیجه کې علم د پوخوالي او پرمختیا پړاو ته رسېږي.

# د نهم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-عام لوستونکي ته د کره کتنې ګټه څه ده؟

۲-که کره کتنه نه وي، لوستونکی له کومو ستونزو سره مخامخېدی شي؟

۳-کره کتنه لیکوال ته څه ګټه رسوي؟

۴-که لیکوال کره کتنه ونه زغمي، له کومو زیانونو سره مخامخېدی شي؟

۵-په لیکوالۍ کې جزیي او اساسي تېروتنې د کومو بحرانونو سبب کېدی شي؟

۶-کره کتنه ادبیاتو ته کومې اساسي ګټې لري؟

۷-د پوهې په پراختیا کې د کره کتنې رول څه دی؟

۸-ادبیاتو ته د کره کتنې ګټه څه ده؟

۹-کره کتونکی د لیکوال او لوستونکي ترمنځ کوم رول لوبولای شي؟

۱۰-له کره کتنې پرته ولې موږ په ادبي، ټولنیزو او نورو ډګرونو کې پرمختګ نه شو کولای؟

# سپارښتنې

۱-محصلین دې د کره کتنې د عملي ګټو په باب دا سې یو مثال وړاندې کړي، چې دوی ورسره عملاً مخامخ شوي وي.

۲-هر محصل دې د یوه لوستونکي په توګه، د کره کتنې د ګټو په باب یوه یوه لیکنه وکړي.

# لسم څپرکی

## موږ ولې له کره کتنې ډار یږو ؟

څومره چې زموږ فرهنګي په تېره بیا ادبي شتمني ده، د هغو په اندول د کره کتنې په برخه کې زیات اثار نه لرو. دا کار به ډېر علتونه ولري، له علتونو څخه به یې یو لامل دا وي چې د تاریخ په اوږدو کې زموږ د ادبي شتمنیو یوه درنه برخه همغه ده چې د نالوستو شاعرانو له خوا رامنځته شوې ده. په تېره بیا پښتو ولسي ادب. کره کتنه بیا د لوستو اشخاصو هغه هم د همغو لوستو اشخاصو، چې په دې برخه کې تخصص او مسلکي زده کړې ولري، کار دی. دا ډول اشخاص زموږ د ادبي پانګې د مجموعي ظرفیت په تناسب کم دي. د سالمې کره کتنې نشتوالی بل علت دی چې دلته د کره کتنې پر وړاندې خنډ دی. کله چې په ټولنه کې سالمه کره کتنه نه وي، نو د هغې پر وړاندې د زغم کلتور هم له منځه ځي، د دې زمینه نه برابرېږي چې کره کتنه

عامه شي. دلته به هڅه وکړو چې دې اساسي پوښتنې ته چې، (مورږ ولې له کره کتنې ډاربږو) د څو غټو دلایلو له مخې ځواب پیدا کړو.

## ۱- د کره کتنې ناعاموالی:

د پښتو ژبې په ادبي، ټولنیزاو ان سیاسي چاپېریال کې د هغو د نورو اړوندو پدیدو په انډول کره کتنه ډېره عامه نه ده، نو کله چې یو شی په ټولنه کې عام نه وي، خلک هم ورسره نه روږدي کېږي. همدا ناعاموالی ددې سبب کېږي چې دلته کره کتنه لکه څنګه چې لازمه ده، همغسې وده ونه کړي.

د پښتو ژبې نامتو لیکوال سرمحقق زلمی هېوادمل وایي: (( زموږ په فرهنګي چاپېریال کې یا په عام ډول د پښتنو په ټولو فعالو فرهنګي حوزو کې د کره کتنې څه څرکونه لګېږي، مګر لږه روغه زیاته رنځوره. د پښتنو په فرهنګي چاپېریال کې کره کتنه، لکه د دوی د ګاونډیو چاپېریالونو هسې عامه نه ده. مانا دا چې زموږ د پښتو مطبوعاتو په لمن کې لا کره کتنې ته، لکه څنګه چې ښایي ځای نه شته. کله ناکله یوه نیمه کره کتنه او یا د کره کتنې په نامه ځینې لیکنې موږ په خپلو مطبوعاتو کې وینو.

خو که د پښتنو ګاونډي راواخلو، د ساري په توګه د اردو ژبیو په فرهنګي چاپېریال کې له پاکستانه نیولې تر هنده، بنګاله او حتی سریلانکا پورې چېرې چې د اردو ادب او اردو ژبیو د فرهنګ په

اړه کتاب چاپېږي، له یوه نیولې ان تر لسو پورې نقدونه پرې لیکل کېږي. دا کار دا ښيي چې جامعه کتاب ته ارزښت ورکوي. کره کتونکی له خپل فرهنګ سره مینه لري. د لوستونکو او لیکوالو د بې لارېو مخه نیسي او له خپل رسالت سره دوا ړو ته لارښوونه کوي، خو زموږ په فرهنګي چاپېریال کې ډېر لږ پېښېږي، چې پر یو نشر شوي اثر دې نقد وشي. که کله کېږي هم نو په رنځ یو اخته نقد به وي او سالم نقد خو هسې د طالعو خبره ده.

ددې علت دادی چې سالمې کره کتنې، لکه څنګه چې ښایي زموږ په فرهنګي چاپېریال کې وده نه ده موندلې. ځینې سالم نقدونه که شوي یا کېږي، هغه د ناسالمو پر وړاندې دومره بې اغېزې دي، چې څوک اهمیت هم نه ورکوي. رنځورې کره کتنې زیاتره د شخصي حب او بغض پر محور چورلي. نقاد په کې د یوه کینه کښ او انتقامجو په څېره کې ښکاره کېږي، چې د نورو د تعجیز زیار باسي.)) (۱۵: ۱-۲).

نو د همدغو علتونو له امله کره کتنې زموږ په ټولنه کې پراختیا عام منښت یا عاموالی نه دی پیدا کړی.

## ۲- د زغم کلتور نشتوالی:

په هره ټولنه کې چې اختناق حاکم وي، د فکر وزرونه تړلي وي. انتقاد عام نه وي، هلته د تحمل او زغم روحیه ډېره کمزورې وي. هره نیوکه او نوی فکر د کینې، دښمنۍ او شخصي عقدې په مانا

انګېرل کېږي. هغه ټولنې چې نن د ولسواکۍ پر بنسټ خپلې ژوندنۍ چارې سمبالوي، رسنۍ په کې ازادې دي او سالم انتقاد په کې دود دی، هغوی د زماني له یوې اوږدې تجربې تېرې شوې دي. ګڼ قومیزې، ګڼ سیاسي او ګڼ مذهبي ټولنې د یو بل له زغملو او تحمل پرته بله لار نه لري، یا به د وېشنې او پاشنې خوا ته ځي او یا به هم یو بل زغمي. رسنۍ هم د تحمل د کلتور په عاملو کې ډېر رول لري، رسنۍ پټې نا ویلې خبرې، چې یو وخت پر عقدې او بیا پر فزیکي ټکر او عمل بدلېږي، په ډاګه کوي او له نا ویلو خبرو څخه د عقدو د جوړېدو مخنیوی کوي. البته رسنۍ هم خپل حدوحدود لري او د عقدو د ایستلو په پلمه باید د نورو نویو عقدو د ټوکېدو سبب نه شي. البته که بریدونه او اصول یې تر پښو لاندې شي، نو رسنۍ هم په ټولنه کې د غټې انارشۍ سبب ګرځېدلای شي.

د متحملې یا زغموالې یا نازغموالې ټولنې دوه ځرګندې بېلګې هندي او افغاني ټولنې دي. په هندي ټولنه کې د تحمل روحیه ډېره پیاوړې ده، مذهبي عناصرو، د ټولنې جوې حالت، د نفوسو د شمېر ځومروالی او نورو ټولو عواملو په دې جوړښت کې خپل خپل رول لرلی دی. هندي ازادو او دولتي رسنیو دواړو د تحمل کلتور په عاملو کې خپله ونډه لرلې ده. هند د ازادو رسنیو او ولسواکۍ یوه اوږده تجربه لري. همدا تجربه او د هغې متواتر تکرار، د هندي ټولنې د پرمختګ او پیوستون سبب شوی دی. له یوه هندي عالم څو

ځخه پوښتنه وشوه، چې د هندي ټولنې د بري راز په څه کې دی؟ هغه وویل: ((زموږ د بري راز په دې کې دی چې یو بل مو زغملي او تحمل کړي دي.)) که چېرې په هندي ټولنه کې زغم او تحمل نه وای، نو سلګونو مذهبونو، ژبو او قومونو منسوبو اشخاصو به څنګه یو بل سره د ګډ ژوند ګوزاره کوله؟ د تحمل همدا کلتور دی، چې نن هندي ټولنه د پرمختګ پړاوونه وهي. دلته زموږ په ټولنه کې د رسنیو یوازې دوه تجربې پېښې شوي دي: لومړۍ تجربه د ولسواکۍ لسیزه وه، د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د واکمنۍ پر مهال رامنځته شوه او دویمه هغه همدا (۱۳۸۱-۱۳۹۱ل) کلونه دي. په لومړۍ هغې کې هم خپلې خپلې ستونزې وې او په دویمه کې هم د تصنعي ولسواکۍ، تنظیمي زورواکۍ او نا سالمو رسنیو ستونزې شته، وارداتي دیموکراسي او پېیلو رسنیو نه یوازې د زغم کلتور عام نه کړ، بلکې په ځینو برخو کې یې نوي مشکلات هم راولاړ کړي. د ټولنې نور مدني بنسټونه هم دومره پیاوړي نه دي چې د زغم کلتور عام کړي. لکه څنګه چې په ټولنیز او سیاسي ډګر کې ستونزې وې، داسې په علمي رسنیز او ادبي ډګر کې هم د تحمل کلتور ډېر پیاوړی نه و او نه دی، د تحمل کلتور د سالمې کره کتنې لپاره یو ښه بستر دی. پیاوړی افغان لیکوال، مفکر او کره کتونکی (استاد ګل پاچا الفت) د افغاني ټولنې دې نقیصې ته متوجه شوی، هغه د خلاصون لاره هم په ګوته کړې. د الفت په نظر هره ټولنه چې غواړي

سمون او پرمختګ په کې رامنځته شي، هلته باید پر فکر، نظر او انتقاد بندیز نه وي، کله چې په یوه ټولنه کې فکر ازاد وي، هلته د ډېرو مرضونو لپاره د علاج لاره پیدا کېدی شي. الفت خپله مفکوره د (بې ګناه بندي) په نامه په یوه نثر کې ډېره ښه ځلولې ده، هغه د ټولنې د نجات لپاره ددې بندي د خلاصون هیله کوي، وايي: (( پرېږدئ ! دا بې ګناه بندي پرېږدئ. مه و يې ږي، د ده په ازادولو کې هېڅ خوف او خطر نه شته. فساد او شرارت له ده څخه نه پیدا کېږي.

دده بندي کول لويه ګناه ده.

دی هغه یوسف دی، چې د بې ګناهۍ په سبب په زندان کې لوېدلی دی.

که دی له زندانه راوالوزي ستاسې اینده سنجولای شي او ستاسې د بلې ورځې غم خوړلای شي.

پرېږدئ ! دا بې ګناه بندي پرېږدئ.

که دی خلاص شو ستاسو انتظام به په ډېر ښه شان وکړي. ستاسې ورېي به ماره کړي، ستاسې بربنډ به پټ کاندي.

تاسې دغه ښکلی موجود په تورو ځاګانو کې مه غورځوئ.

په زندانونو کې يې مه اچوئ !

پرېږدئ دا بې ګناه بندي پرېږدئ !

دی بـه ستاسـې د ګـډو وډو او پرېشـانه خوبونـو صـحیح تعبیرونـه وکړي.

ډېرې سختې مبهمې او مجملې غوټې به پرانیزي.

دی د راتلونکي حال پېشبیني کولای شي.

د طبیعت په رمزونو او اسرارو پوهېږي.

د جوي او فلکي اوضاعو اقتضاات ورته معلوم دي.

پرېږدئ ! دا بې ګناه بندي پرېږدئ !

د ده په ازادولو باندې علم او پوهه زیاتېږي.

وطن رڼا کېږي او ړانده بینا کېږي.

دی له خپلو جفاکارو ورونو سره هم ښه سلوک کوي.

دی ډېر پېچومي اوارولای شي.

دی ډېرې کړېږې سمولای او ډېر مشکلات حل کولای شي.

مـا خـوب لیـدلی، چې دا بنـدي خلاصـېږي او د سـلطنت پـه کرسـۍ کېني.

ښه فکر وکړئ !

دا بندي څوک دی؟

پس له ډېر فکره وایم !

فکر دی فکر ! ) ) (۱: ۱۲-۱۴).

د الفت په نظر تر هغه پورې چې په یوه ټولنه کې فکر بندي وي، په ټولنه کې د سمون هیله نه شو کولای. هر هغه انتقاد یا نیوکه چې فکري اساس ونه لري، پر کینې بدلېږي، که موږ غواړو په خپله فرهنګي حوزه کې سالمه کره کتنه عامه کړو، نه یوازې باید خپل فکر ازاد کړو، بلکې پراخ یې هم کړو. خپل فکر نورو ته بیان کړو او د نورو د فکر او نیوکې د زغملو کلتور هم دود کړو.

## ۳- د سالمې کره کتنې کموالی:

زموږ یو زیات شمېر کره کتونکي په دې نظر دي، چې زموږ په هېواد کې کره کتنه عامه نه ده او ان په ځینو وختونو او ځایونو کې ورسره حساسیت هم ښودل کېږي، علت یې دادی چې دلته له پیله بیا تر دې دمه کره کتنه د یو سالم بهیر او سالم مسیر له فلتره تېره شوې نه ده. ځینې کره کتنې د شخصي کینې او انتقام له مخې ترسره شوي دي. سرمحقق زلمی هېوادمل د دې ډول لیکنو په باب وایي: (( د دې ډول کره کتنو، لیکوالان زیاتره د کره کتنې د لیکلو صلاحیت هم نه لري، بلکې د ځینو ځانګړو ملاحظاتو پر بنیاد د نقد په نامه یو څه لیکي، چې د کره کتنې د ادابو بوی هم په کې نه وي. د اثر پر ځای پر لیکوال ډېر ګړېږي. د نقد د داسې یوې ناسالمې فضا د موجودیت په صورت

کې ډېر د ورتیا خاوندان، حتی د سالم نقد لیکلو ته هم زړه نه ښه کوي او دا ځکه چې زموږ په فرهنګي چاپېریال کې په دې اړه ذهنیت ډېر مغشوش دی. پر یو اثر هم سالم نقد ، د اثر لیکوال د خپل ځان لپاره سپکاوی بولي. که څوک د یو چا پر اثر سالم نقد هم ولیکي، د اثر لیکوال د دې پرځای چې له کره کتونکي مننه وکړي، د ځواب په نامه یې ښکنځلو ته متې رانغاړي. ځواب خو ورسره وي نه، بیا نو په اوتو بوتو سر شي او په شخصي تعرضونو، سپکاویو شروع وکړي او تر ټولو یې جالبه دا چې زموږ په فرهنګي چاپېریال کې هم سالم کره کتونکی هم په دې متهمېږي چې د نورو مخه نیسي، هر څه یې ځانته اجاره کړي دي. په همدې اساس زموږ زیاتره د استعداد خاوند کره کتونکی د سالم فرهنګ په ګټه نقد لیکلو ته زړه نه شي ښه کولای.))(**۱۵: ۳**).

سرمحقق زلمی هېوادمل په دې برخه کې یو مثال وړاندې کوي، هغه وایي: (( ښه مې په یاد دي چې د تېرې میلادي پېړۍ د نوییمو کلونو په جریان کې (د پښتو ادبیاتو تاریخ) په نامه یو کتاب په پېښور کې چاپ شو. ډېرو ښاغلو دا کتاب لوستی و، چې ځینې پکې د استعداد خاوندان هم وو. د کتاب پر نیمګړتیاوو یې داسې خبرې کولې چې هم د لیکوال په ګټه وې او هم د لوستونکو لپاره ګټورې وې، خو دغو کسانو یوه هم دا جرات نه شو کولای چې خپلې خبرې

ولیکـي، ځکـه وېرېـدل چـې د دوی د خیـر کـار بـه نـور بـل ډول انګیري.))

سرمحقق زلمی هېوادمل زیاتوي: ((دا خبره باید په زغرده وکړو چې زموږ په فرهنګي چاپېریال او ټولو فرهنګي حوزو کې لـه کره کتنې وېره خپره ده، هم لیکوال او شاعر لـه کره کتنې وېرېږي او هم سالم کـره کتـونکی. همدې وېرې د سالمو کـره کتنـو مخـه نیـولې ده او د فرهنګ خواخوږي دا جرات نه شي کولای، چې علمي، تحقیقي او ادبي اثار د نقد له علمي موازینو سره سم نقد کړي.

دا چې ایا پښتنو عالمانو او د فرهنګ د لارې لارویانو د سالمې کره کتنې د ودې، دودېدو او د نقد پر اصولو او ادابو د کره کتونکیو د سمبالتیا لپاره څه کړي دي او که نه؟ ددې برخې پـه ځواب کې بایـد ووایو چې پـه دې لاره کې څه ګامونـه اوچت شوي دي، خو پاخـه نـه دي. په دې مشخصه ساحه کې موږ څه اثار لرو مګر ډېر نه دي، زمـوږ یو شمېر لیکوالو د تالیف او ترجمې له لارې ځینې اثار وړاندې کړي دي، چې له لوستـه یې سړی د کره کتنې د اصولو او معیارونو، ادابـو او ډولونو پـه بـاب څه معلومات ترلاسه کولای شي. خو کـه څوک د پښـتنو پـه فرهنګي حوزو کې د کـره کتنـې روان جریان لـه نظره تېـر کاندي، نو پوه به شي چې زموږ زیاترو کره کتونکیو د کـره کتنـې پـه باب حتی په خپله ژبه کې موجود اثار هم نه دي لوستي.

د کره کتنې او سنی روان جریان که سړی له نظره تېر کاندي سړی په یقین سره ویلای شي چې دا جریان یو سالم جریان نه دی. ناوړې ډېرې لري او د بدمرغۍ خبره په کې دا ده چې له دې رنځور حالته د کره کتنې د ایستلو لپاره کومه هڅه هم نه لیدل کېږي. د سالمې هغې په پرتله د ناسالمې پیروان هم ډېر دي.))(۱۵: ۳-۲).

د ژبو او ادبیاتو پوهنځي یو بل استاد بریالی باجوړی هم په دې نظر دی او (د کره کتنې ډولونه) اثر په سریزه کې وایي: ((له دغو ستونزو څخه یوه په پښتو کې د کره کتنې د تیوریکو اثارو نشتوالی دی. کوم ځانګړي کتابونه او لیکنې چې ډېر پخوا په دغه برخه کې لیکل شوي دي، د ګوتو په شمار دي، چې د موجودو ستونزو او پرابلمونو ځواب نه شي ویلای.)) (۳۱: ۱).

تر هغه پورې چې پورتنۍ ټولې نیمګړتیاوې پوره نه کړو او د کره کتنې په برخه کې عملي او نظري کار، ونه کړو، د کره کتنې کلتور عام نه کړو، د تحمل کلتور دود نه کړو، نو تر هغه پورې له کره کتنې څخه که هغه معقوله وي، که نامعقوله، د خلکو وېره وي او دا وېره به احساسېږي.

# د لسم څپرکي لنډيز

زموږ په ټولنه کې زيات وخت له کره کتنې سره حساسيت ښودل کېږي. يو زيات شمېر ليکوال زړه نه ښه کوي چې خپل اثر کره کتنې ته وړاندې کړي. دا کار بېلابېل عوامل لري. د کره کتنې ناعاموالى ددې علتونو له جملې څخه يو علت دى. د پښتنو په ادبي، ټولنيز او ان سياسي چاپېريال کې د هغو د نورو اړوند پديدو په شان کره کتنه ډېره عامه نه ده، نو کله چې يو شى په ټولنه کې عام نه وي، خلک هم ورسره نه روږدي کېږي، همدا ناعاموالى ددې سبب کېږي چې دلته کره کتنه لکه څنګه چې لازمه ده، همغسې وده ونه کړي. په پښتو کې د چاپ شويو ادبي اثارو په اندول د کره کتنې اثار زيات نه دي، ان د ادبي اثارو کره کتنيزې اړتياوې نه شي پوره کولاى.

د زغم کلتور نشتوالى بل علت دى، چې دلته يې د کره کتنې د عامولو مخه ډب کړې ده. دلته د زغم کلتور ډېر عام نه دى. کله چې د تحمل کلتور عام وي د کره کتنې عملي تطبيق ته ډېره ښه لاره اوارېږي. هر څومره چې دلته د تحمل کلتور زياتېږي، کره کتنې ته

لاره اواربېږي. کره کتنه د تحمل او زغم کلتور په عاملو کې مهم رول لري.

زموږ په ټولنه کې چې یو شمېر کره کتنې ترسره شوي، په هغو کې کله کله شخصي عقده او کینه هم دخیل شوې ده. دا کینه ددې سبب شوې چې سالمه کره کتنه له ځنډ و خنډ سره مخ شي. کله چې په ټولنه کې سالمه کره کتنه له ځنډ و خنډ سره مخ شي، نو طبیعي خبره ده چې روغه کره کتنه نه رامنځته کېږي. کله چې په ټولنه کې سالمه کره‌کتنه نه وي، نو د کره کتنې د عامېدلو لپاره بستر نه برابرېږي. د سالمې کره کتنې لپاره یو څه ګامونه پورته شوي، خو بیا هم پوره او پاخه نه دي. دغه ټول عوامل ددې سبب ګرځي چې دلته له کره کتنې څخه یو ډول وېره پیدا شي. ددې وېرې د ختمولو لپاره په کار دي، ټول هغه عوامل په دقت سره وارزول شي چې مخکې مو یادونه وکړه او په پوره تدبیر سره د هغو د اوارې لپاره کار وشي.

# د لسم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-د کره کتنې ناعاموالي زموږ کره کتنه له کومو ستونزو سره مخامخ کړې ده؟

۲-که کره کتنه عامه وای، زموږ په فرهنګي حوزه کې به اوس د کره کتنې احتمالي حالت څنګه و؟

۳-د کره کتنې په پراختیا کې د زغم کلتور څه رول لري؟

۴-د سالمې کره کتنې کموالي، د ښې کره کتنې پر وړاندې څه ستونزې ټوکولې دي؟

۵-د استاد الفت په نظر د فکر ازادي د کره کتنې په پراختیا کې څه رول لري؟

# سپارښتنې

- محصلین دې په هېواد کې د کره کتنې د پرمختیا او عاملو لپاره خپل تحلیلي نظر په یوه لیکنه کې وړاندې کړي.
- هر محصل دې د پښتو کره کتونکو له جملې څخه یو تن په خپله خوښه غوره او د هغې د کره کتنیزو نظریاتو په باب دې یوه لیکنه وکړي او په ټولګي کې دې ټولګیوالو ته واوروي.

# يوولسم څپرکی

## په پښتو ژبه
## د کره کتنې چاپ شوي کتابونه

که څه هم په پښتو ژبه ډېر ادبي اثار چاپ شوي؛ د پښتو شعر و ادب لمن ډېره پراخه ده، هم د شکل او هم د محتوا له مخې د پښتو ادب لمن له رنګارنګ غمیو ډکه ده. که د شکل یا شعري فورمونو له مخې پښتو ادب وڅېړو، نو د نړۍ هېڅ ژبه ورسره سیالي نه شي کولای. زیاتره هغه شعري فورمونه چې د نړۍ په نورو ژبو په تېره بیا ختیزو ژبو کې شته، هغه اکثره پښتو راخپل کړي دي. د لویدیز ادب شعري فورمونه په تېره بیا ازاد شعر چې ځینې ورته سپین شعر هم وایي، هم د پښتو ژبې په لمن کې خوندي دي. پښتو د ختیزو ژبو او ادب د یوې ښېلګې په توګه ټول هغه شعري فورمونه چې په عربي ژبه کې دود دي، پښتو ورته په خپله لمن کې ځای ورکړی دی، لکه

غـزل، مثلث، مسـتزاد ، مخمس، قطعـه، ربـاعي، مـثمن، مسـدس، معشر، ترکیب بند ، ترجیع بند او نور...

پښتو ژبې له جاپاني ژبې څخه هم د (هایکو ) شکل راخپل کړی، له دري سره یې دوه بیتۍ کې چې د څلوریزې په شان یو فورم دی، هم مشـترک حالـت لـري، خپلـه د پښـتو ځـانګړي شعري فورمونـه، لکـه لنډۍ، بګتۍ، سروکي، چاربیتې، کـاکړۍ، ببـولالې او نـور یـې خو یې داسې خپـل دي چې د نړۍ پـه نـورو ژبـو کـې یـې سـاری نـه لیـدل کېږي، په تېره بیا لنډۍ چې د پښتو ژبې یـوه امتیـازي پانګـه ده او د نړۍ هېڅ شعر ورسره د سیالۍ جوګه نه دی، خو د پښـتو ژبـې لـه دې پراخې لمن سره سره د کره کتنې اثار بیا دومره زیات نه دي، یو علت یـې شـاید دا وي چـې کـره کتنـې اکثـره د لوسـتو او متخصصـو اشخاصو له خوا رامنځته کېږي، خـو د پښـتو ادب د لمـن د غوړېدو په برخه کې د لوستو لیکوالو ترڅنګ نالوستو شـاعرانو او ناظمـانو هم پراخې هڅې کړي دي. او د پښتو ادب د پانګې یـوه درنـه د همدې نالوستو ولسي ادبیاتو له خوا بشپړه شوې ده، خیر علتونـه ډېر دي، مخکې مو هـم ورتـه نغوتـه وکـړه خو اوس راځـو د کـره کتنـې پـه بـاب چاپ شوي اثارو ته ! دلته به هغو مستقلو اثارو تـه اشـاره وکـړو چـې په افغانستان او پښتونخوا کې د کره کتنې په برخـه کـې لیکـل شـوي او په ځانګړي ډول چاپ شوي دي.

## الف- په افغانستان کې:

په دې برخه کې د هغو لیکوالو مستقلو اثارو ته نغوته کوو، چې په افغانستان کې زېږېدلي دي، په ختېځ افغانان دي، که څه هم د تېرو لسیزو د حوادثو په بهیر کې کوزې پښتونخوا یا لر افغانستان او یا نورو هېوادونو مهاجر شوي او یا یې کتابونه تر هېواده بهر چاپ شوي دي. په دې کې یو شمېر لیکوال داسې هم دي، چې په هېواد کې اوسېدلي، خو کتابونه یې تر هېواد بهر چاپ شوي، دا ګټه ګورو، مو د کتابونو د چاپ د موقعیت له مخې په پام کې نه ده نیولې، بلکې د هغوی د زېږېدنې جغرافیه مو په پام کې نیولې ده. نو ځکه مو د پښتونخوا د پښتنو افغانانو کتنه ګورو، په جلا ډول په پام کې نیولې ده. نو لومړی به د افغانستان مېشتو افغانانو مستقل کره کتنیز اثار معرفي کړو:

### ۱- ادب او ادبي کره کتنه:

دا اثر ښاغلي عبدالمالک همت لیکلی دی، په دې اثر کې د ژباړې او تالیف دوا ړه برخې شاملې دي، لیکوال خورا زیار په کې ګاللی دی، نه یوازې د کره کتنې په باب په کې معلومات راټول شوي، بلکې د ادب، ادبپوهنې، د ادب ښوونځي، د ادبیاتو شننه او څېړنه هم په کې راغلي دي. دا اثر ټول (۲۲۸) مخونه لري. ادب او ادبپوهنه، ادب د اسلامي نظریې له مخې، ادب او ادبپوهنه د

اوسنۍ لویدیزې نظریې له مخې، ادبي کره کتنه، مفهوم او ارزښت، ادبي کره کتنه له پخوا څخه تراوسه، اسلامي کره کتنه، دري کره کتنه، اردو کره کتنه او پښتو کره کتنه یې اساسي سرلیکونه دي. تر دغه هر یو اساسي سرلیک لاندې بیا څو نور ځنګزني سرلیکونه دي، چې هره موضوع یې په هر اړخیزډول څېړلې ده. دا اثر په ښکلي قطع او صحافت پر (۲۰۰۲م)، (**۱۳۸۵**ل) کال په کوټه کې د صحاف نشراتي موسسې له خوا د یو زر ټوکو په شمېر چاپ شوی دی او دا اثر چې اوس لولئ په دې کې هم د همدې اثر (ادب او ادبي کره کتنه) اثر څخه زیاته ګټه اخیستل شوې ده.

## ۲- کره کتنه:

دا اصلاً د هغو بېلابېلو لیکوالو د کره کتنیزو لیکنو یوه ټولګه ده، چې په زېري جریده کې په متواتر ډول خپرې شوې دي. د (**۱۳۵۵-۱۳۵۲**ل) کلونو په بهیر کې په زیري جریده کې دوه افتراحګانې خپرې شوې، د همدغو افتراحګانو له امله د کره کتنې په برخه کې بېلابېلو لیکوالو یادې جریدې ته خپلې لیکنې ورولېږلې، زېري جریدې دا لیکنې په خپلو پاڼو کې خپرې کړې. دې لیکنو ځینو دوديزه بڼه درلودله او ځینې یې د لویدیزې کره کتنې په رڼا کې لیکل شوې وې.

(افضل ټکور) دا لیکنې د زېړې جریدې له پاڼو راټولې او د یوې ځانګړې مجموعې په توګه یې چاپ کړې. دا اثر پر (۱۹۸۲م، ۱۳۶۵ل) کال د افغانستان د قومونو او قبایلو چارو وزارت له خوا په کابل کې چاپ شوی دی. په دې اثر کې د (ادبي نقد) په نامه د عبدالرحیم، (ادبي انتقاد) په نامه د متعمد شنیواري د (نقد او نقد کوونکي) په نامه د غوث خیبري، د (نقد څارنه دې وشي) د استاد بېنوا او ځینو نورو لیکوالو لیکنې راغلي دي.

## ۳- پښتو نثر ته کره کتنه:

دا د علامه پوهاند حبیبي د لیکنو یوه ټولګه ده چې کره کتنیزې لیکنې په کې راټولې شوې دي. دا لیکنې اصلاً استاد حبیبي تر (۱۳۵۷ل) کال دمخه کړې دي او د هېواد په بېلابېلو چاپي خپرونو کې چاپ شوې دي. دا لیکنې د سرمحقق زلمي هېوادمل په زیار راټولې شوي او پر (۱۹۸۱م، ۱۳۶۰ل) کال یې د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا چاپ کړي دي. په دې اثر کې د تاریخ په بهیر کې د پښتو نثر پر لوړ ځوړ خبرې شوي، د (روښاني) پېر پر نثر او د (خوشال) د کورنۍ پر نثر بحث شوی دی. د (ګوهر خان ختک) د (قلب السیر پښتو)، (پښتو نثر په تاریخ مرصع کې) او (ژبې او د تکامل قوانین) په نوم لیکنې هم په دې اثر کې خوندي دي.

## ۴- ادبي څېړنې:

ادبي څېړنې د ادبپوهنې په برخه کې خورا مهم اثر دی. دا اثر کاندید اکاډمیسین محمد صدیق روهي لیکلی دی، لومړی ځل په (۴۲۵) مخونو کې پر (۱۹۸۱م، ۱۳۶۰ل) کال د ننګرهار پوهنتون د ښوونې او روزنې پوهنځي له خوا خپور شوی دی. دا اثر دویم ځل په پېښور کې د دانش کتابتون له خوا هم په ښکلې قطع او صحافت چاپ شوی دی. یاد اثر په عمومي ډول څلور برخې لري؛ په لومړۍ برخه کې یې (ادبي تیوري) په دویمه کې یې (ادبي کره کتنه)، په درېیمه کې یې (ادبي میتودونه، ادبي مکتبونه) او په څلورمه کې یې (ادبي تاریخ) څېړل شوي دي. په ټولیز ډول دا د ادبپوهنې په برخه کې یو خورا جامع کتاب دی، ددې اثر د کره کتنې باب هم خورا غني دی. او په دې برخه کې د ((کره کتنې تاریخي پس منظر او معیارونه)) تر سرلیک لاندې د کره کتنې د پېژندنې، موضوعګانو او مسالو، تاریخي پس منظر، اصولو او معیارونو، ډولونو، هدفونو او دندو په هکله د لویدیز ادب او کره کتنې له اصولو سره سم بحث او څرګندونې شوې دي. د کره کتنې په بحث کې د کره کتنې آداب هم تشریح شوي دي.

## ۵- شعرونه او نقدونه:

شعرونه او نقدونه د تکړه کره کتونکي زرین انځور اثر دی. دا اثر پر(۱۹۸۲م، ۱۳۶۵ل) کال په کابل کې چاپ شوی دی. دا اثر د کره کتنې په تېره بیا د پښتو شعر او هغه هم معاصر شعر په برخه کې د عملي کره کتنې یوه ښه بېلګه ده. لیکوال په دې اثر کې د پښتو معاصر شعر ځینو نمیګړتیاوو ته اشاره کړې، څرګندې بېلګې یې راوړي، د هغو پر نیمګړو برخو یې څرګندې نیوکې کړې او د حل لارې یې په ګوته کړې دي. دې اثر پر خپل وخت عملي تاثیرات هم وشیندل او تر یوه بریده یې د پښتو شعر د شعاري کېدو او انحراف مخه ونیوله.

## ۶- ادبي مسالې:

د کاندید اکاډمیسن پوهاند محمد رحیم الهام اثر دی. په دې اثر کې د پوهاند الهام پنځه عنوانه بېلابېلې لیکنې او دوه بېلابېلې ژباړې شاملې دي. دا اثر پر(۱۹۸۸م، ۱۳۶۷ل) کال په کابل کې د افغانستان د لیکوالو د ټولنې له خوا خپور شوی دی. د مخونو شمېر یې (۲۴۰ ) ته رسېږي. د کره کتنې په دې اثر کې د کینې ایډیالوژۍ د پلوي کره کتونکو او همدارنګه د لویدیځوالو کره کتونکو دواړو نظریات راټول شوي دي.

## ۷- د کره کتنې ډولونه:

د کره کتنې ډولونه د سرمحقق زلمي هېوادمل اثر دی. په دې اثر کې د سرمحقق زلمي هېوادمل هغه لیکنې راغلي چې د کره کتنې په اړه دي. په دې لیکنو کې د پښتو کره کتنې پر تاریخي سوابقو، تیوریکو اثارو، د کره کتنې پر ستونزو او نورو اړوندو مسایلو بحث شوی دی. د سرمحقق زلمي هېوادمل پر لیکنو سربېره په دې اثر کې ځلور هغه لیکنې هم راغلي دي، چې د کره کتنې په اړه دي او دده له خوا له اردو ژبې څخه پښتو ته ژباړل شوي دي. دا اثر په (۱۹۹۱م،۱۳۷۰) کال د افغانستان د لیکوالو د ټولنې له خوا په کابل کې چاپ شوی دی.

## ۸- ادبي او تاریخي سمونې:

دا د پوهاند صدیق الله رښتین کره کتنیز اثر دی، چې پر (۱۹۹۲م، ۱۳۷۱ل) کال چاپ شوی دی. په دې اثر کې د یو شمېر هغو ځانګړو اثارو او متفرقه لیکنو تېروتنو ته اشاره شوې چې چاپ شوي دي. پوهاند رښتین ددې اثارو تېروتنو ته متوجه شوی، د هغو سمون یې ضروري او د ادب په ګټه ګڼلی دی، پر هغو یې بېلابېلې لیکنې کړې او پر خپل وخت یې په مجلو او جریدو کې خپرې کړې دي. تر متفرق چاپ وروسته یې بیا په دې اثر کې راټولې او خوندي کړې دي.

## ۹- منشور (کره کتنه):

منشور (کره کتنه) د مصطفی سالک اثر دی، چې پر (۲۰۰۰م، ۱۳۷۹ل) کال په پېښور کې دانش خپرندویې ټولنې خپور کړی دی. دا اثر ټول (۱۵۰) مخه لري. ددې اثر په لومړیو برخو کې پر ادب، شعر، اخلاقو، ښکلا، تاریخ او ادب، معاني، بیان او بدیع، فلسفه او شاعري، تخلیق او مطالعې باندې بحث شوی دی. په دې اثر کې د ختیزې او لویدیزې کره کتنې آرونه هم بیان شوي دي. (منشور) د یوه تدریسي کتاب په بڼه لیکل شوی، د ادب پوهنځي محصلین ترې د کره کتنې په برخه کې د یوه تدریسي یا مرستندوی درسي اثر په توګه هم ګټه اخیستلای شي.

## ۱۰- د پټې خزانې میزان رښتیا میزان دی؟

دا د زرین انځور او استاد محمد اصف صمیم ګډ اثر دی، چې په پېښور کې چاپ شوی دی. په دې اثر کې د استاد صمیم او زرین انځور یو څو هغه لیکنې راغلي دي، چې د قلندر مومند د هغو نیوکو په اړه لیکل شوي، چې ده په خپل اثر ((پټه خزانه فی المیزان)) کې راوړي دي. دې اثر کې هڅه شوې، د علمي دلایلو له مخې د قلندر مومند یو زیات شمېر هغو انتقادونو ته منطقي ځواب وویل شي چې هغه د پټې خزانې پر ببلا ببلو خواوو څرګند کړي دي.

## ۱۱- ادبي کره کتنه:

دا اثر اجرالدین اقبال له عربي څخه پښتو ته ژباړلی دی. یاد اثر مصري لیکوال ډاکتر محمد مندور مصري لیکلی دی، ټول (۱۳۶) مخونه لري او د (۱۰۰۰) ټوکو په شمېر دانش خپرندویه ټولنې په پېښور کې چاپ کړی دی.

## ۱۲- د پښتو غزل تنقیدي جاج:

دا د ځوان لیکوال طایر ځلاند اثر دی، چې دانش خپرندویه ټولنې په (۱۲۷) مخونو کې د (۱۰۰۰) ټوکو په تیراژ په پېښور کې پر (۱۳۹۱) ل کال چاپ کړی دی. په دې اثر کې تصوف او پښتو نوی غزل، د غزل کره وړه، پښتو غزل کې رواني اړخونه، غزلګو شاعر څوک دی؟، پښتو غزل او علامت نګاري، پښتو غزل او انځورګري، حمزه بابا په پښتو غزل کې د بدلونونو موجد، پښتو غزل په سروتال کې، پښتو غزل په نویو پړاوونو کې، د پښتو نوي غزل تنقیدي جاج او د پښتو غزل راتلونکی، مسایل څېړل شوي دي. په مجموعي ډول دا اثر د پښتو غزل د ارزونې او کره کتنې په برخه کې یو ځانګړی اثر دی.

## ۱۳- د کره کتنې تاریخي پس منظر او معیارونه:

د کاندیـد اکاډمیســین محمدصــدیق روهــي اثــر دی، چــې پــر (۱۳۸۰ل) کال د محمدصدیق روهي فرهنګي ټولنې له خوا په پېښور کې چاپ شوی دی. پـه دې اثر کې راغلي محتویات همغه دي چې اکثره يې په ادبي څېړنې اثر کې راغلي دي، خو دلته د يوه ځانګړي اثر په توګه هم چاپ شوی دی.

## ۱۴- کره کتنه:

استاد پوهنوال عبدالخالق رشید لیکلی او د اتیـا یمو کلونو پـه وروسـتیو کـې د هندوسـتان پـه نوي ډیلـي کـې چـاپ شـوی دی، دا کتاب (۸) څپرکي لري،د کره کتنې تاریخچه په کې بیان شوې، کره کتنـه يـې د يـوه علـم پـه توګـه ارزولـې او همدارنګـه يـې د کـره کتنـې ډولونه په ګوته کړي دي.

## ۱۵- د پښتو شعر او سمهالي بهیر کره کتنه:

د عبدالغفور لېوال اثـر دی، چې پـر (۱۳۸۱ل ) کـال پـه کابـل کـې چـاپ شـوی دی. پـه دې اثـر کـې د پښـتو د اوسـني شـعر پـه تېـره بيـا د طالبانو د واکمنۍ تر ختمېدو وروسته او لیکل شوي ... پورې یو شمېر مخکښو شاعرانو پـر شعرونو باندې کره کتنه شوې، هغه څېړل شوې، شنل شوي او ارزول شوي دي.

## ب- په پښتونخوا کې:

پر افغانستان سربېره په کوزه پښتونخو یا لر افغانستان کې هم د ځو لسیزو په بهیر کې د کره کتنې ځینې مستقل کتابونه چاپ شوي دي. پر خپلواکو اثارو سربېره ځینې نور داسې اثار هم چاپ شوي، چې یوه برخه یې د کره کتنې پر محور راڅرخي، خو نورې برخې یې د ادبیاتو یا ادبپوهنې نورې برخې رانغاړي. دلته به یوازې ځانګړو اثارو ته اشاره وکړو:

### ۱- کتاب الشعر:

دا کتاب اصلاً د یونان د نامتو فیلسوف او حکیم (ارسطو) د بوطیقا (Poetics) پښتو ژباړه ده. دا اثر (مولوي محمد اسرافیل) ژباړلی او د پېښور پوهنتون د پښتو اکاډمۍ مشر (مولانا عبدالقادر) پرې بیا کتنه کړې. یاد اثر پر (۱۹۵۸م، ۱۳۳۷ل) کال په پېښور کې د پښتو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی.

لکه څنګه چې څرګنده ده، بوطیقا د شعر او شاعرۍ په اړه په نړۍ کې لومړنی منظم اثر ګڼل کېږي، دغسې په پښتو کې د دې اثر ژباړه هم د کره کتنې په برخه کې لومړنی ژباړل شوی اثر ګڼل کېږي. د ارسطو په دې اثر کې پر شاعرۍ باندې عمومي او متوازن نظر بښندلی، د شاعرۍ ډولونه یې بیان کړي، جنګي شاعري یې توضیح کړې، د کره کتونکو اعتراض او هغو ته د ځواب ورکولو اصول یې

بیان کړي دي. د ارسطو دا اثر د (نظمیات) په نامه (قلندر مومند) هم ژباړلی دی او پر (۱۹۶۳م، ۱۳۴۲ل) کال یې په پېښور کې خپور کړی دی.

## ۲- ادبي تنقید:

د کره کتنې په برخه کې دا یو وړوکی کتابګوټی دی، چې (میا سید رسول رسا) لیکلی دی، په وړه جیبي کچه په (۱۸۵) مخونو کې په پېښور کې د (یونیورسټي بوک ایجنسي) له خوا چاپ شوی دی. (میا سید رسول رسا) ددې اثر په لیکلو کې د کره کتنې په برخه کې د نړۍ له ډېرو نامتو اثارو څخه ګټه پورته کړې ده. ددې اثر ځینې برخې بشپړې ژباړې دي او ځینې برخې یې د (رسا) خپل تحلیلونه. په دې اثر کې که څه هم د کره کتنې له ختیزو او لویدیزو دواړو اصولو څخه ګټه اخیستل شوې، خو ډېری بحث یې د ښکلو هنرونو، ادبیاتو، شعر او شاعرۍ پر محور راڅرخي. ځینې لیکوال وایي د کره کتنې په اړه ول ددې اثر د ادبپوهنې نورې برخې درنې دي.

## ۳- تنقید:

تنقید د کره کتنې په برخه کې د (قلندر مومند) له خوا ژباړلی شوی اثر دی. دا اثر اصلاً د (ویلیم هنري هډسن) (W.H) Hudson د نامتو کتاب (An Introduction to the study of literature) د یو څپرکي لنډون او ژباړه ده. دا اثر د ماسټرۍ دورې (MA) لپاره یوه

برخه ده او د یوه مضمون په توګه هم تدریسېده، خو د یوه ځانګړي کتابګوټي په بڼه هم پر (۱۹۲۳م، ۱۳۴۲ل) کال په پېښور کې خپور شوی دی. ټول (۸۰) مخونه لري. دا اثر د کره کتنې د مانا او مفهوم، اړتیا، د کره کتنې د ځینو ښوونځیو، د کره کتونکي د دندو او صلاحیتونو، د کره کتنې د تاریخ او ځینو نورو موضوعګانو په اړه ګټور معلومات لري.

## ۴- پټه خزانه فی المیزان:

پټه خزانه فی المیزان د (قلندر مومند) یو انتقادي اثر دی چې د (پټې خزانې) په اړه یې لیکلی دی. دا اثر (قلندر مومند) د نږدې شلو کلونو په بهیر کې لیکلی دی. او بیا په پېښور کې چاپ شوی دی. قلندر مومند په دې اثر کې د پټې خزانې د ((بطلان)) لپاره هڅه کړې او ځینې داسې دلایل یې راوړي چې دده په خپل نظر ده ته مناسب ښکاره شوي دي. یو زیات شمېر لیکوال، ادبپوهان او کره کتونکي بیا په دې نظر دي، چې په دې اثر کې راغلي نظرونه د قلندر مومند د شخصي عقدې زېږنده دي، نو ځکه ورته د کره کتنې یو ناپېیلی اثر نه شي ویل کېدی، پر همدې بنسټ ددې اثر د رد په باب څو بېلابېل اثار ولیکل شول.

## ۵- ادب څه دی؟

دا د (سردار حبیب الرحمن سحر یوسفزي) د کره کتنیزو لیکنو یوه ټولګه ده، چې (۲۵۲) مخه لري، لومړی ځل پر (۱۹۴۷م، ۱۳۲۲ل) کال او بیا پر (۱۹۸۰) او (۱۹۹۲م) کلونو په پېښور کې چاپ شوی دی. په دې اثر کې د کره کتنې په باب بېلابېل معلومات، دغه راز د شعر، ډرامې او نورو ادبي فورمونو په باب توضیحات راغلي دي. د لویدیزو او ختیزو سترو کره کتونکو نظریات هم په کې راغلي دي. له دغه اثر څخه د کره کتنې په برخه کې د یوه تدریسي اثر په توګه هم کار اخیستل شوی دی.

## ۶- پښتو افسانه:

پښتو افسانه یو کره کتنیز اثر دی چې (محمد اعظم اعظم) لیکلی دی. دا اثر په (۱۹۲) مخونو کې، پر (۱۹۷۴م، ۱۳۵۳ل) کال په پېښور کې چاپ شوی دی. په یاد اثر کې لنډې کیسې او ناولونه څېړل شوي او د پښتو لنډو کیسو په باب عملي کره کتنه شوې ده. د (میا سید رسول رسا) په نظر ددې تنقیدي اثر ژبه متوازنه، نغښتې، سکښته او رانښکلې ده، په لنډو موزونو جملو کې یې ډېر څه ویلي او هر څه یې چې ویلي، د موجوده زمانې د تنقید له معیاري اصولو سره سم یې ویلي دي.

## ۷- مقدمه د شعر او شاعرۍ:

مقدمه د شعر او شاعرۍ پروفیسور محمد نواز طایر له اردو څخه پښتو ته ژباړلې ده. د اثر لیکوال د اردو ژبې نامتو کره کتونکي (الطاف حسین حالي) دی. د کتاب پښتو ژباړه د (۱۳۶۰ل،۱۹۸۱م) کال په اپریل کې د پېښور پوهنتون د پښتو اکاډمۍ له خوا چاپ شوې ده. په دې اثر کې د اردو ژبې د ادبیاتو پر ځرنګوالي کره کتنه شوې، د کره کتنې عام اصول بیان شوي دي. د کره کتنې دا اصول اکثره د نړۍ د نورو ژبو پر ادبیاتو هم د تطبیق وړ دي.

## ۸- پټه خزانه تول پارسنګ:

دا د کوزې پښتونخوا د یو نامتو څېړونکي (همېش خلیل) یو کره‌کتنیز اثر دی، چې په پېښور کې چاپ شوی دی. دا اثر اصلاً د (قلندر مومند) د اثر د( پټه خزانه فی المیزان) د هغو شکونو، نیوکو او انتقادونو ځواب دی، چې هغه په خپل دې اثر کې پر (پټه خزانه) څرګند کړي دي. په دې اثر کې یو پر یو د (قلندر مومند) نیوکو ته ځواب ویل شوی دی.

## ۹- د خیرالبیان تنقیدي مطالعه:

دا د قلندر مومند یو اثر دی چې پر (۱۹۸۸م) ، ( ۱۳۶۷ل) کال په پېښور کې خپور شوی دی. د مخونو شمېر یې (**۳۵۲**) ته رسېږي.

قلندر مومند په دې اثر کې د خیرالبیان پر هغه چاپ چې په فوټو افسیټ ډول په کابل کې چاپ شوی او د خیرالبیان پر هغه متن چې په پېښور کې د پښتو اکاډمۍ له خوا خپور شوی دی، پر دې دواړو متنونو بحث کړی دی. د قلندر مومند په نظر هغه متن چې دی یې کره بولي له دغو دواړو متنونو څخه اخیستل شوی، چې د درېیم متن بڼه لري. د (پټه خزانه فی المیزان) په شان د قلندر مومند پر دې اثر هم د نورو کره کتونکو له خوا نیوکې شوي او هغه یې سالمه کره کتنه نه ده بللې.

## ۱۰- د رنګ او بو قافله:

دا د ډاکتر اقبال نسیم خټک اثر دی، چې پر (۱۹۹۱م، ۱۳۷۰ل) کال په پېښور کې چاپ شوی دی. د کتاب د ټولو مخونو شمېر (۴۰۲) ته رسېږي. دا اثر د تحقیق او تنقید یو امتزاج دی یانې دا دوه برخې په کې رانغښتل شوي دي. په دې اثر کې د (عبدالحمید مومند)، (کامګار خټک)، (کاظم خان شیدا) او (علي خان) پر ژوند، شاعرۍ او هنر باندې څېړنه او کره کتنه شوې ده. دا اثر د یوه تدریسي کتاب د معیارونو په پام کې نیولو سره لیکل شوی دی او هڅه شوې چې زده کوونکي ورڅخه د یوه ادبي تدریسي اثر په توګه ګټه پورته کړي. دا اثر د لیکوال د ډېرو کلونو د زیار او کار ثمر دی.

## ۱۱- پښتو ادب کې تحقیق او تنقید:

د صاحب شاه صابر اثر دی، چې پر (۱۹۹۵م)، (۱۳۷۴ل) کال د کوزې پښتونخوا د پښتو ادبي جرګې لـه خوا چاپ شوی دی. صاحب شاه صابر تر دې اثر د مخه د پښتو اکثره هغـه تحقیقي او کره کتنیز اثـار له نظره تېر کړي، چې دده د اثر د لیکلو تـر وختـه پـه پښـتو کـې چاپ شوي دي. ده په خپل دې اثر کې د کره کتنې اړتیا، ګټه او اهمیت پـه ګوته کړي او پر یو شمېر اثارو یې خپل کره کتنیز نظر څرګند کـړی دی.

## ۱۲- خېړنه او کره کتنه:

د داود خان داود اثر دی، چې پر (۲۰۰۳م، ۱۳۸۲ل) کال په پېښور کې چاپ شوی دی. دا اثر اصلاً د کره کتنې په برخه کې د داود خان داود د څو بېلابېلو لیکنو یوه ټولګه ده. پـه دې ټولګـه کې د کـره کتنـې پـر تاریخ خبرې شوي، پر دې بحث شوی چې پښتو ادب کې څه ډول کره کتنه پکار ده؟ د لویدیزوالو او ختیزوالو د نظریاتو پـر بنسـټ او کـه په خپله د پښتني چاپېریال لـه مزاج سره سمه کـره کتنـه؟ پـه دې اثـر کې هغو ستونزو ته هم نغوته شوې چې د کره کتنې په برخه کـې زمـوږ په ټولنه کې موجودې دي.

## ۱۳-ادبي کره کتنه:

(ډايوني سيس لان جانس) ليکلی او حنيف خليل پښتو ته ژباړلی دی. دا اثر پر (۲۰۰۳م، ۱۳۸۲ل) کال په پېښور کې د انش خپرندويې ټولنې چاپ کړی دی.

پر پورتنيو ځانګړو اثارو سربېره يو زيات شمېر پښتانه ليکوال شته، چې په پښتو کره کتنه کې يې خپله ونډه اخيستې، د پورتنيو ځانګړو اثارو ترڅنګ يې د کره کتنې په برخه کې ځينې نورې ليکنې هم خپرې شوي، چې هغه لا په دې اثارو کې شاملې نه دي، خو د هغو ليکوالو ترڅنګ چې مستقل او متفرقه ليکنې يې خپرې کړي، په سلګونو داسې ليکوال نور هم شته چې د کره کتنې په برخه کې يې عملي او نظري کارونه کړي او متفرقه ليکنې يې په بېلابېلو وختونو کې په چاپي رسنيو کې خپرې شوي دي، په دې ليکوالو کې بهرني ليکوال هم شامل دي او خپله پښتانه ليکوال هم.

د پورتنيو ځانګړ اثارو ترڅنګ کېدی شي، د نړۍ په نورو برخو، خپله افغانستان او کوزې پښتونخوا کې په پښتو ژبه د کره کتنې نور ځانګړي اثار هم ليکل شوي او چاپ شوي و او زما لاس ته تر اوسه نه ي رارسېدلي او يا هم زه پرې خبر شوی نه يم، خو دا هغه ځانګړي اثار وو چې ما يې د چاپ او څرنګوالي پر باب معلومات ترلاسه کړي دي.

# د یوولسم څپرکي لنډیز

په پښتو ژبه یو شمېر کره کتنیز اثار چاپ شوي، خو دا اثار د پښتو ادبیاتو په نورو برخو کې له چاپ شویو اثارو سره متوازن او متناسب نه دي. د کره کتنې په برخه کې د لیکوالو پر متفرقه کارونو سربېره هم په افغانستان، هم په لره پښتونخوا یا لر افغانستان او همدارنګه د نړۍ په ځینو نورو برخو کې ځینې کره کتنیز اثار چاپ شوي او همدارنګه یو شمېر کره کتنیز بهیرونه رامنځته شوي دي.

د مستقلو اثارو په لړ کې د عبدالمالک همت اثر (ادب او ادبي کره کتنه)، د افضل ټکور له خوا راټول شوې (کره کتنه)، د پوهاند عبدالحی حبیبي (پښتو نثر ته کره کتنه)، د سرمحقق محمدصدیق روهي (ادبي څېړنې)، د زرین انځور (شعرونه او نقدونه)، د پوهاند محمد رحیم الهام (ادبي مسالې)، د سرمحقق زلمي هېواد مل (د کره کتنې ډولونه)، د پوهاند صدیق الله رښتین (ادبي او تاریخي سمونې)، د مصطفی سالک (منشور)، د زرین انځور او محمداصف صمیم ګډ اثر (د پټې خزانې میزان رښتیا میزان دی؟)،

د اجرالدين اقبال ژباړه (ادبي کره کتنه) او ځينې نور اثار د يادونې وړي دي.

په کوزه پښتونخوا کې د مولوي محمد اسرافيل ژباړه (کتاب الشعر)، د سيد رسول رسا (ادبي تنقيد)، د قلندر مومند (تنقيد)، د سردار حبيب الله سحر يوسفزي (ادب څه دی؟)، د محمد اعظم اعظم (پښتو افسانه)، د صاحب شاه صابر (پښتو ادب کې تحقيق او تنقيد) او ځينې نور اثار د يادونې وړ دي.

# د یوولسم څپرکي پوښتنې او سپارښتنې

۱-په افغانستان کې د کره کتنې په اړه چاپ شوي اثار، زموږ په ټولنه کې د کره کتنې ټولو اړتیاوو ته څومره ځواب ویلای شي؟

۲-په پښتونخوا کې د کره کتنې چاپي اثار له چاپي ادبي اثارو سره څومره انډول برابرولای شي؟

۳-ولې په پښتو ژبه د کره کتنیزو چاپي اثارو شمېر کم دی؟

۴-د نړۍ له مهمو ژبو څخه د کره کتنیز اثارو ژباړې ته څومره اړتیا ده؟

۵-په دې چاپ شویو اثارو کې کوم اثار د عملي کره کتنې ځرګندې بېلګې دي؟

# سپارښتنې

- هر محصل دې د کره کتنې په دې چاپي اثارو کې يو اثر خوښ او هغه دې تحليل کړي.
- محصلين دې د نويو چاپ شويو او يا هغو کره کتنيزو چاپي اثارو په باب خپلو ټولګيوالو ته معلومات ورکړي، چې په دې اثر کې يې يادونه نه ده راغلې.

# وروستۍ پایله

ددې اثر په بېلابېلو برخو کې مو په پښتو کې د کره کتنې د ستونزو په باب رڼا واچوله. دا ستونزې لا هم دوام لري. په کره کتنه کې موږ نه یوازې په محتوایي برخه کې ستونزې لرو، د اثارو څومره والی او څرنګوالی مو لکه څنګه چې باید وای، هغسې نه دی او زموږ اړتیاوې نه شي خړوبولای. دغسې په لیکنۍ یا شکلي برخه کې هم ستونزې لرو.

ځینې مهم نومونه، په تېره بیا، ځینې بهرني نومونه، هغه د اشخاصو وي که د ځایونو، بېلابېل لیکوال یې په بېلابېلو لیکبڼو لیکي. په دې اثر کې هم همدا ستونزه شته. ما چې له کومو اخځونو څخه په دې اثر کې ګټه پورته کړې، د ځینو لیکوالو نومونه په یوه ځای کې په یو بل ډول او په بل ځای کې په بل ډول لیکل شوي دي. د ساري په توګه ځینو لیکوالو ارستو (ارسطو) لیکلی، اپلاتون، (افلاطون، افلاتون، اپلاطون) سوکرات (سقراط، سقرات) او همدارنګه نور نومونه یې په نورو ډولونو لیکلي دي. د اکثرو بهرنیو نومونو په لیکبڼو ستونزه شته، ما کوښښ کړی، چې دنومونو په لیکنه کې یو څه یووالی راولم، خو بیا هم د نومونو بېلابېلو لیکبڼو د ثبت له کبله ستونزه پوره اواره نه شوه. د نومونو ترڅنګ ما هڅه کړې، چې د اصلي محتوا په خوندیتوب سره په ځینو کلمو کې، چې پخوا یو ډول لیکل کېدې او اوس ورو ورو یو واحد معیار ته داخلېږي، په نوې دودیزه بڼه ولیکم. له ځینو (دري) اثارو څخه ما ځینې متنونه ژباړلي، دا ژباړه هم ټکي پر ټکي نه ده، کوښښ مې کړی چې اصلي مفهوم او لنډیز راواخلم.

د دې ترڅنګ مې د ځینو لیکوالو په هغو لیکنو او ژباړو کې هم یو څه ژبنی او لیکنی سمون راوستی، چې یا دوی په خپله کړي او یا یې له نورو ژبو څخه ژباړلې وې، خو په پښتو جملو کې یې د ژباړې کمزوري او لیکنۍ تېروتنې له ورایه ښکارېدې، په هغو کې مې هم په داسې ډول سمون راوړی، چې محتوا ته یې هېڅ ډول زیان ونه رسي.

په دې اثر کې مې هڅه کړې چې څومره ژبه اسانه کېدی شي، همغه ژبه وکارول شي. په اثر کې یو منطقي تسلسل په پام کې نیول شوی دی. هغه اثار چې دلته په پښتو او دري ژبو کې ترلاسه کېدلای شول، له هغو اکثرو ګټه اخیستل شوې ده. خو دې سره سره بیا هم د داسې یو اثر په توګه چې هېڅ نیمګړتیاوې ونه لري او یا ډېرې کمې نیمګړتیاوې لري، هغه حالت ته لا ډېر مزل پاتې دی. کله چې دا اثر خپور شي، د محصلینو، لوستوالو او لیکوالو لاس ته ورشي او یا هم په تدریسي ډګر کې د تدریس عملي بڼه خپله کړي، نو په تطبیقي ډګر کې به یې ګڼې ستونزې او نیګړتیاوې راڅرګندې شي. زه هیله من یم چې قدرمن لوستونکي او ګران محصلین دا نیمګړتیاوې په ګوته او په لیکنۍ بڼه یې ما سره شریکې کړي. د بیا بیا چاپ په حالت کې به دا نیمګړتیاوې یوه په بلې پسې له منځه وړو او تر هغه پورې به دا کار تعقیبوو چې په نسبي ډول، یو معیاري تدریسي اثر ورڅخه جوړ شي.

په درناوي

پوهندوی محمد اسمعیل یون

# اخځونه


۱- الفت، ګل پاچا. د الفت نثري کلیات. د محمد اسمعیل یون په زیار. ۱۳۸۷ل کال. کابل: یون کلتوري یون.

۲- الهام، پوهاند محمدرحیم. د نازو انا یاد. ۱۳۶۹ل کال. کابل: یون کولتوري یون.

۳- انځور، زرین. شعرونه او نقدونه.۱۳۶۵ل کال. کابل: د لیکوالو ټولنه. دولتي مطبعه.

۴- براهني، رضا. طلا در مس. ۱۳۴۷ل کال. ایران: انتشارات زمان.

۵- بهاند، ډاکتر لطیف. ((په پښتو ادب کې د کره کتنې تاریخ)). د دوکتورا ناچاپ تیزس مسکو پوهنتون، ۱۹۹۱م کال.

۶- بېدل، دېوان بېدل. د همېش خلیل په زیار. ۱۹۵۷م کال. پېښور.

۷- حبیبي، پوهاند عبدالحی. د پښتو ادب لنډ تاریخ. ۱۳۸۷ل کال. کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه.

۸- خټک، اشرف خان. د هجري دېوان. د همېش خلیل په زیار. ۱۳۵۸ل کال. پېښور.

۹- خټک، خوشال. د خوشال خټک مرغلرې. د پوهاند حبیبي په سریزه. ۱۳۱۷ل کال. کندهار.

۱۰- خټک، خوشال. د خوشال رباعیات. ۱۳۴۹ل کال. کابل: پښتو ټولنه. دولتي مطبعه.

۱۱- خټک، خوشال. د خوشال کلیات. ۱۳۵۸ل کال. کابل: د افغانستان علومو اکاډمۍ. دولتي مطبعه.

۱۲- خټک، خوشال. سواتنامه. د پوهاند عبدالحی حبیبي په زیار. ۱۳۵۸ل کال. کابل: دولتي مطبعه.
۱۳- رسا، سید رسول. ارمغان خوشال. ۱۹۲۴م کال. پېښور.
۱۴- رفیق، پوهنوال محمد رفیق. د ادبپوهنې بنسټونه. ۱۳۹۰ل کال. کابل: کابل پوهنتون. د لوړو زده کړو وزارت چاپخونه.
۱۵- روهي، کاندید اکاډمیسین محمد صدیق. د کره کتنې تاریخي پس منظر او معیارونه. ۱۳۸۰ ل کال. پېښور: محمدصدیق روهي فرهنګي ټولنه.
۱۶- روهي، کاندید اکاډمیسین محمدصدیق. ادبي څېړنې. ۱۳۶۰ل کال. کابل: دولتي مطبعه.
۱۷- زرینکوب، داکتر عبدالحسین. نقد ادبي، جلد اول و دوم. ۱۳۸۲ل کال. ایران: موسسه انتشارات امیرکبیر. سپهر مطبعه.
۱۸- زرینکوب، عبدالحسین. نقد ادبي. ۱۳۸۰ل کال. ایران.
۱۹- شمیسا، داکتر سیروش. نقد ادبي. ۱۳۸۵ل کال. ایران: انتشارات میترا. تابش مطبعه.
۲۰- صمیم، محمد اصف. ګام پر ګام له خوشال سره. ۱۳۷۸ل کال. پېښور: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه.
۲۱- قویم، داکتر عبدالقیوم. نقد ادبي. ۱۳۸۷ل کال. کابل: انتشارات سعید.
۲۲- کاکړ، پیرمحمد. د پیرمحمد کاکړ دیوان. د استاد عبدالروف بېنوا په زیار. ۱۳۲۵ل کال. کابل: پښتو ټولنه. عمومي مطبعه.
۲۳- لوانی، دولت. د دولت لواني دیوان. د پوهاند رشاد له سریزې سره. ۱۳۵۳ل کال. کابل: پښتو ټولنه. دولتي مطبعه.

۲۴- مومند ، عبدالحمید. د عبدالحمید مومند دېوان. د زلمي هېوادمل په زیار. **۱۳۲۳**ل کال. کابل: پښتو ټولنه. ګوندي مطبعه.
**۲۵**- مومند ، عبدالرحمن. د رحمان بابا دېوان. **۱۳۵۲** ل کال. کابل: پښتو ټولنه. دولتي مطبعه
۲۶- هاشمي، سید محی الدین. ادب پوهنه. ۱۳۸۱ل کال. پېښور: د اریک د ګرځنده کتابتونونو اداره. احمد پرنټنګ پرېس.
۲۷- همت، عبدالمالک. ادب او ادبي کره کتنه. **۱۳۸۵**ل کال. کوټه: صحاف نشراتي موسسه. اکرم پرېس.
۲۸- هوتک ، محمد. پټه خزانه. **۳۹** ۱۳ل کال. کابل: د پوهنې وزارت. د پوهنې مطبعه.
۲۹- هېوادمل، زلمی. ننګیالی د زمانې. ۱۳۸۰ل کال. لاهور: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه. ملت پرنټنګ پرېس.
۳۰- هېوادمل، سرمحقق زلمی. د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغونې او منځنۍ دورې).۱۳۸۰ل کال. پېښور: دانش خپرندویه ټولنه.
۳۱- هېوادمل، سرمحقق زلمی. د کره کتنې ډولونه. ۱۳۷۰ ل کال. کابل: د لیکوالو ټولنه. دولتي مطبعه.
۳۲- ولک، رنه. تاریخ نقد جدید جلد اول. ترجمه سعید ارباب شیراني. ۱۳۷۷ل کال. ایران: انتشارات نیلوفر. دیبا مطبعه.
۳۳- یون، محمداسمعیل. اندیال خوشال. ۱۳۸۷ل کال. کابل: یون کلتوري یون.




# کابل پوهنتون

## ژبو او ادبیاتو پوهنځي

## پښتو څانګه

# کره کتنه

د ژبو او ادبیاتو پوهنځیو په پښتو څانګو کې
د کره کتنې مضمون لپاره

لیکوال

محمد اسمعیل یون



# کتاب پېژندنه:

د کتاب نوم: کره کتنه

لیکوال: محمد اسمعیل یون

لیکوال د خپرونو لړ: (۳۹)

خپروندی: د افغانستان ملي تحریك، فرهنګي څانګه

وېبپاڼه: www.melitahrik.com

ډیزاین: ضیاء ساپی

پښتۍ ډیزاین: فیاض حمید

چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپکال: ۱۳۹۴ ل کال/ ۲۰۱۵م

د تحریك د خپرونو لړ: (۹۴)

# نیو لیک

## سرلیک مخ



# لومړی څپرکی

# دویم څپرکی



# درېیم څپرکی



# څلورم څپرکی

## پینځم څپرکی



## شپږم څپرکی

## اووم څپرکی

# اتم څپرکی



# نهم څپرکی

## لسم څپرکی



## یوولسم څپرکی



# مننه او کور ودانی

د افغانستان ملي تحریک د هېواد پالې او فرهنګپالې اغلې (انیسه عمراني) څخه د زړه له تله مننه کوي چې د دې اثر چاپ ته یې اوږه ورکړه. ملي تحریک وياړي چې د علمي اثارو د چاپ لړۍ يې پيل کړې ده. دا لړۍ به دوام لري. موږ له ټولو درنو هېوادوالو څخه په خورا درنښت هيله کوو چې په خپل معنوي او مادي وس د کتابونو د چاپ دا لړۍ لا پسې وغځوي.

يو ځل بيا د دې اثر له ليکوال او چاپوونکې څخه د زړه له تله مننه کوو چې د دې اثر د ليکلو او چاپولو جوګه شول.

په فرهنګي مينه

د افغانستان ملي تحریک

